بسم الله الرحمن الرحيم

# بدر الفتاوى
## في الفقه الحنفي


د افغانستان د اسلامي امارت د سترې محکمې
قاضي القضاة او د مرکزي دار الافتاء رئیس

مولانا مفتي نور محمد ثاقب
په مشرتابه کې



مكتبة نور القرآن

# بدر الفتاویٰ

## فی الفقه الحنفي

**لومړی ټوک**

دافغانستان داسلامي امارت دستري محكمې قاضي القضاة
او دمركزي دارالافتاء رئيس مولانامفتي

# نور محمد ثاقب

په مشرتابه کي
دافغانستان دمركزي دارالافتاء لخوا صادرشوي مسائل

**مرتب**

## مفتي محمد ابراهيم «خليل»

**همکار**

ابو خالد مولوی عبدالاحد «مجروح»

**ناشر**


**مکتبۂ نور القرآن** النور کتب خانه مارکیټ کاسی روډ کوټه
د موبایل شمیري ۰۳۲۱۲۵۸۹۶۷۳، افغان بیسم: ۰۷۰۲۸۰۶۵۱۵

**کتاب پېژندنه :-**

دکتاب نوم : **بدرالفتاوی فی الفقه الحنفي** لومړی ټوک
تألیف: دافغانستان داسلامي امارت دمرکزي دارلافتاء علماء
ترنظارت لاندي: دافغانستان دستري محکمي قاضی القضاة
اودارالافتاء رئیس مولانامفتي نورمحمد ثاقب
ترتیب: مفتي محمد ابراهیم «خلیل»
همکار :مولوی عبدالاحد «مجروح»
خپرونکي: نورالقرآن خپرندویه ټولنه
النورکتب خانه مارکیټ کاسی روډ کوټه
چاپ ځای : لاهورپاکستان
دخپرېدوکال: ۲۰۱۵میلادی دمارچ میاشت
دچاپ شمیر : ۱۱۰۰عدد

# دبدرالفتاوی نوې کمپیوټري نسخه
## نوی ترتیب

**①نوی فهرس:**
پدې نسخه کې دټولو مسائلو فهرس په ترتیب سره راوړل شوی چې هره مسئله په اسانی سره پیداکیږي-

**②فقهي تبويب :**
دهرباب ټول مسائل په یوه کتاب اوباب کې جمع شوی دي ، چې په اصل اوقلمي نسخه کې داترتیب موجود نه وه-

**③دټولو فتاواؤ حوالې داوسنیو چاپونوسره برابرول :**
دټولو فتاواؤ حوالې داوسنیو چاپونوسره برابرې کړل شوې دي چې حواله په اسانی پکې پیداکیږي لکه رشیدیه ،غفاریه، عثمانیه ،حقانیه اونور چاپونه -

**④مکرر مسائل ایستل :**
مکرر مسائل تري نه ایستل شوي دي، په اصل کې دمختلفو خواؤ څخه استنتاوې راغلې وې اودهغوجوابونه ورکول شوي وو چې بعضې به پکې مکرر وو نو هغه مکرر ورځيني ایستل شوی دي-

**⑤داردو عباراتو ترجمه :**
په قلمي نسخه کې ډيرځایونه دفتاوی دارالعلوم دیوبند ،کفایت المفتي ،امدادالفتاوی اونورو اردو فتاواؤ عبارات رانقل شوي وو چې پدې نسخه کې دهغو ټولو عباراتو ترجمه په لنډ ډول راوړل شوې ده-

**⑥د دارالافتاء مهر اوامضاءګانې :**
پدې نسخه کې دمرکزي دارالافتاء مهر اودمفتیانو صاحبانو امضاء ګانې دهرې مسئلې سره په هماغه شکل راوړل شوي کوم چې په قلمي نسخه کې موجود وو-

# دبدرالفتاوی دمضامینوفهرست

## ددې نسخې په اړه لنډ وضاحت



## باب الاذان



## کتاب الصلوة



## کتاب الزکاة والعشر

# کتاب الصوم



# کتاب الحج



# کتاب النکاح

## باب في حرمة المصاهرة



## باب الرضاع



## كتاب الطلاق

# كتاب الجهاد



# كتاب اللقطه



# كتاب الشركة

# کتاب الوقف



# کتاب الحدود والتعزیرات

# کتاب البیوع

## باب الربا



## كتاب الاجارة



## كتاب الوديعة والعارية

## كتاب الهبه



## كتاب الغصب



## باب الضمان



## كتاب الدعوى

## كتاب القضاء والشهادات

# کتاب الصلح



# کتاب الوکالة



# کتاب الشفعه



# کتاب المزارعة

# کتاب الحجر



# کتاب احیاء الموات والشرب

# کتاب القسمة



# باب الحقوق



# کتاب الصید والذبائح



# کتاب الحظر والاباحة

# كتاب الوصية



# كتاب الفرائض



اللهم اختم لنا بالخير والسعادة والبشارة

والايمان



بسم الله الرحمن الرحيم

# دمرتب وينا

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله وكفى وسلام على عباده الذين اصطفى
دفقه ارزښت او ارتيا د روښانه ورځې په څيرله چاپېټه نه ده ځکه هرانسان ديوه مسلمان په حيث دخپل ژوند په هره شيبه کې دفقه اوشريعت په رڼاکې خپله تګلاره ټاکي ،داځکه چې دضلالت اوګمراهی دتورې اوورکې لارې لاروی پکې سرګردانه نشي ،که داسې وشي نوپايله به ئې ددنيا اواخرت خسران وي ،رحيم اوکريم خدای ﷻ دسمې اوسيده لارې دټاکلو اوورښودلو لپاره په دنياکی دانبياء کرامو عليهم الصلاة والسلام لړۍ پيل کړې ده ،ترڅو پربندګانو خپل حجت بشپړکړی ،دانبياء کرامو عليهم السلام لړۍ پرخاتم الانبياء والرسل ددووجهانو سردارحضرت محمد ﷺ باندې پای ته ورسيده ،خودانبيأء کرامو عليهم السلام دسلسلې دپای ته رسيدومطلب دانه دی چې راتلونکی نسلونه وسمې تګلاری ته اړنه دی بلکه ددې کارذمه واري په ميراث کې دامت وعلماء کرامو ته ورپه برخه شوه چې دقرآن اوحديث په رڼاکې دوی دامت علمی تنده ورماته کړې ځکه دامام ابوحنيفة رحمه الله اووده دګرانوشاګردانورحمهم الله په هڅودامت لپاره يوه داسې ذخيره تياره شوه چې ترقيامته به راتلونکې نسلونه ورځينی مستفيدوی اودی.
اوبل لورې امت هم ودې ته وهڅول شو:چې تاسودخپلې لارې ټاکل علماؤته وسپارۍ په قرآن کريم کې ارشاد دی: (فَاسْأَلُوا أَهْلَ الذِّكْرِ إِن كُنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ) اوبل ځای ارشاددې:
(وَاتَّبِعْ سَبِيلَ مَنْ أَنَابَ إِلَيَّ ثُمَّ إِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ فَأُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ)
علامه بيضاوی رحمه الله فرمايي : وفى الاية دلالة على وجوب المراجعة الى العلماء فيما لايعلم(بيضاوی ) ځکه په دينی ترون کې دهر امتی ذمه واری جوړيږي چې خپله فريضه ترسره کړی ،هسې نه چې د(فان الجحيم هى المأوى ) مصداق وګرزو.(العياذ بالله )
دهمدې ذمه واری په اساس دافغانستان تکړه اومحققينوعلماء کرامو دطالبانو داسلامی دورې په اوږدوکې دمولوی مفتی نورمحمد «ثاقب» صاحب ترمشرتابه لاندی په ډيره لنډه اواضطراری موده کې وامت ته دمشکلاتودحل لاره وښوده:

چې په دې خدمت کې ورسره برخه اخیستونکی علماء کرام په لاندې ډول دی:

①مولوی عبدالحکیم صاحب
②مولوی ندامحمد الحقانی فاضل وفاق المدارس
③ مولوی احمد نوری
④مولوی محمد مسلم حقانی
⑤مولوی محمد اخلاص برکتی
⑥مولوی زمان شاه صاحب
⑦مولوی عبدالله صاحب مشهور په خطیب صاحب اروزګاني
⑧مولوی حمدالله صاحب
⑨مولوی عبدالستار صاحب
⑩مولوی خلیل الله صاحب
⑪مولوی محمود میوندوال صاحب

اوداسی نورتکړه اوجید علماء کرام چې دټولونومونه موږانه خیستل ددوی په کوشش دافغانستان له مرکزي دارالافتاء څخه خپروشویو مسائلودا ټولګه تیاره شوه چې دمرکزي دارالافتاء دمفتیانو لاس لیکونه هم ورباندې ثبت شوی ،خوبنده یواځې په دې فکر ودې علمې ټولګې ته دخپل نمګړی فکرسره سم دترتیب ورکولوهڅې وکړی چې دالله ﷻ په دربارکی دښه نیت اودهمت سره سم هڅوهم ډیرقدروی ،کنه زه دخپلې پوهې له مخې هیڅ کله ددې وړنه یم خوچې داکارنور دامت په ګټه تمام شی ځکه می ددې تبویب یاداردوعباراتوپښتوترجمه پکې اضافه کړل: خوداول ناس اول الناس په اساس په دې ترتیب اوتبویب کې دخطاء رامنځته کیدل هم څه بعیده نه ده ځکه له ښاغلیوعلماؤ کراموڅخه هیله ده چې که کومه داسی خطاپه نظرورشی دهغې موږ ته خبرراکول شی ترڅوپه راتلونکو چاپوکی اصلاح شی په پای کی داله العلمین ذات څخه دادعاده: چې په دې فتاوی کی هرډول سعی کوونکی په خپل مغفرت ونازوی ،اودټول امت دخلاصون ذریعه ئي وګرزوی.امین

دعاغوښتونکی محمدابراهیم خلیل

ولدحاجی ملاعبدالحق مرحوم

# دقلمي نسخي (۲۰۴) مخ



۱۰۳

— ( استفتاء پوښتنه ) —

زما د آ کالو زمکه ورکړې نوم د دري کالو په اجاره اوس چې د آ کالو پوره شوي نه
نو موږ زمکه راګرځوو د زمکې د دوو کالو حاصلات لې د دوی خوړلي دي ددې په
مرګ سره اجاره باطلیږي که یا -

( الفتوى )

بسم الله الرحمن الرحيم

للجواب ومنه الصدق والصواب

اجاره په مرګ د هرچا چه عقد د اجارې ده د پاره شوی وي که مؤجر وي یا مستأجر
فسخ کیږي چه ضرورت نوي لکه مرګ د مستأجر په لارکې د مکې او دلته د عدم ضرورت
موجود نه دی سبب د دې لاندې مسئلې

(وتنفسخ) بلا حاجة الى الفسخ (بموت احد عاقدين) عندنا لا بجنونه مطبقا
(عقدها لنفسه) الا لضرورة كموته في طريق مكة ولا حاكم في الطريق الخ الدر المختار مع الشامي ص ۵۷/۵۹
كل من وقع له عقد الاجارة اذا مات تنفسخ الاجارة بموته ومن لم يقع له العقد
لا ينفسخ العقد بموته الفتاوى الهندية ص ۴۴۳/۴۹۰ والله تعالى اعلم

۳۲۹

ثاقب

مولوي نور محمد ثاقب -
رئيس دار الافتاء مرکزي
دولت اسلامي افغانستان -



العبد الاحقر ... احمد

# باب الاذان

## په مسجدكي اذان اوپه سپيكركي خطبه څه حكم لري ؟

پوښتنه: ماحكم الاذان سوى الاذان فى وقت الخطبة فى داخل المسجدهل له كراهية ام لا؟ وماحكم الخطبة فى لاوډسپيكر (مكبرالصوت) هل لها كراهية ام لا؟بينواتوجروا .

المستفتى: (الحاج مولوى محمدنورخطيب جامع مسجد محمدافضل خان )

الجواب: بسم الله الرحمن الرحيم په مسجدكى دننه اذان كول څه پروا نه لري اوداچي د فقهې دځينوكتابونوله عباراتوڅخه كراهيت معلوميږي هغه په اعتباردنه پوره والى د مقصود داذان دى چي هغه تبليغ اورسول دآوازدى ،غيرحاضرينوته لكه دبيان څخه چي ددغولاندى عباراتومعلوميږي اوكه مقصودداذان پوره كيدى په داخل دمسجدكى هم لكه اذان په لاوډسپيكرسره بياكراهيت نشته ،اوهرچي خطبه په اسپيكر كى ده هغه جائزده مكرونه نه ده اودعلماء اتفاق دى پرجوازدلمانځه اوامامت اواذان په اسپيكركي نوچي لمونځ اوامامت جائزدى خطبه په طريقه اولى سره جائزده ،په اعلاء السنن پنځم توک مخ(۲۳۵۱ ،۲۳۵۲ ، ) کي ئي ليکلي دي:

واعلم ان الاذان لايكره فى المسجد مطلقاً كمافهم بعضهم من بعض العبارات الفقهية وعمّوه هذ ا الاذان (الاذان بين يدى الخطيب) بل مقيدبماذاكان المقصوداعلام ناس غيرحاضرين (الى قوله ) فى الجلابى انه يؤذن فى المسجداومافى حكمه لافى البعيدمنه قال: الشيخ فقوله فى المسجد صريح فى عدم كراهة الاذان فى داخل المسجدوانماهوخلاف الأولى اذامست الحاجة الى الاعلان البالغ وهوالمرادبالكراهة المنقولة فى بعض الكتب ،

اوپه جديدفقهى مسائل جلد١ص۵۲کي ئي ليکلي دي:

لاوڈاسپیکر کے ذریعہ نماز درست ہے یا نہیں ،ابتداء میں ہندا وبیرون ہند علماء کے درمیان اس مسئلہ میں اختلاف تھا،بعض حضرات کی رائے تھی کہ لاوڈسپیکر کی آواز بعینہ امام کی آواز نہیں بلکہ اس آواز کی بازگشت ہے اس طرح آواز پر مقتدیوں کی نقل وحرکت گویاامام کی بجائے ایک دوسری آواز کی بناء پر ہوگی اور یہ بات جائز نہیں ہے ،کہ مقتدی امام کی بجائے کسی اور کی آواز پر نقل وحرکت شروع کردیں اس کی مقابلے میں کچھ لوگوں کاخیال تھاکہ اس کے باوجود نماز کیلئے لاوڈسپیکر کا استعمال صحیح ہے ،اور شریعت میں اس کی نظیر موجود ہے کہ نماز کے باہر کے ایک شخص کی تلقین پر نمازیوں نی نقل حرکت کی چنانچہ جب بیت المقدس کے بجائے خانہ کعبہ کوقبلہ بنایا گیا اور مدینہ کے

مضافات کی بعض مساجد میں جهاں.بیت المقدس ہی کی طرف رخ کر کے لوگ نمازادا کرر ہے تھے قبلہ کی تبدیلی کہ ایک شخص نی اطلاع دی اور سبھوں نے اپنارخ بدل لیاظاھر ہے یہ نقل وحرکت ایک ایسی شخص کی آواز پر عمل مین آئی جونمازسی باہر تھا اب یہ بات پایہ تحقیق کو پہنچ چکی کہ لاوڈسپیکر کی آوازامام کی نقل اوراس کاچربہ نہیں ہے ،بلکہ بعنیہ امام کی وہی آواز ہے جواس کی زبان سی نکلتی ہے اس طرح اب لاوڈ سپیکر سی نماز وامامت کے جواز پر علماء کااتفاق ہوچکا ہے (۱) واللہ اعلم وعلمہ اتم



مولوی نور محمد ثاقب دافغانستان داسلامی امارت دوارالافتاء رئیس

---

[1] زباره :دسپیکرپه ذریعه لمونځ صحیح دی اوکنه ؟ په پیل کی دهنداوله هنده بهرعلماؤ ترمنځ په دې مسئله کی اختلاف ؤ: دځینوبناغلیورأیه داوه چي دسپیکر آوازبعینه دامام آوازنه دی ،بلکه دده دآواز ازانګه ده په دې ډول په دی آوازباندی به دمقتدیانونقل اوحرکت ګواکی دامام پرځای دیوبل آواز په وجه وی ،اوداخبره جائزنه ده چي مقتدی دامام پرځای دکوم بل چاپه آوازنقل اوحرکت وکړی ،د دوې په مقابل کی دځینوخلکوخیال داوو، چي سره له دې دلمانځه لپاره دسپیکر کارول صحیح دی اوپه شریعت کی د دې نظیروجودلري ،چي له لمانځه دباندی دیوه سړی په تلقین لمونځ کوونکونقل اوحرکت وکړ،څکه کله چي دبیت المقدس پرځای بیت الله شریفه قبله وګرزول شوه اودمدینی په شاوخواکی په ځینومسجدونوکي چیری چي دبیت المقدس پرلورپه مخ کولوخلکولمونځ کاوودقبلې دبدلیدویوه سړی خبرورکړی اوتولوخهل مخونه وارول بنکاره خبره ده دغه نقل اوحرکت دیوداسی سړی په آوازپه عمل کی راغلی کوم چي له لمانځه دباندی ؤ ،اوس داخبره په تحقیق رسیدلی ده چي دسپیکر آواز دامام نقل اودهغه عکس نه دی بلکه بعینه دامام هم هغه آوازدی کوم چي دده ترخوله راوزي ،په دې ډول اوس په سپیکر سره دلمانځه اوامامت پرجوازدعلماؤ اتفاق راغلی دی (مرتب)

# کـــتاب الصــلوة

## دوهم جماعت اوجمعه څه حکم لري ؟

پوښتنه:دوهم جماعت اودوهمې جمعې په هکله مفتیان صاحبان څه حکم کوی،جواز یاثواب لري که چیري ئې لري په کوم صورت کې ئې لري؟ (ریاست ارشادواوقاف )

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب: بعون ملهم الصدق الصواب :

دیوه ښارپه ځومسجدونوکی دجمعې دلمانځه تعدد جائزاوصحیح دی ،اوپه یوه مسجد کې تکراردجمعې دلمانځه مکروه دی:

تعددجمعه ایک شهر میں دومسجدوں میں یازیاده میں عندالحنفیه درست ہے کمافی الدرالمختارالخ لیکن ایک مسجد میں تعدد جماعت مکروہ ہے پس دوسری جماعت جمعه کی اس صورت میں مکروہ ہے جیساکه تمام نمازوں کی جماعت ثانیه کواس مسجد میں جس مین امام ومؤذن مقررهوں فقهاء نی مکروه لکھاہے اورخصوصاً جمعه پڑنی کی بعدجامع مسجدکو بند کردینی کاحکم دیاہے(**) شامی میں ہے:

والظاهر انه یغلق ایضاً بعداقامة الجماعة لئلایجتمع به احدبعدها۔

(فتاوی دارالعلوم دیوبندج۵ص ۸۱،ج۳ ص۳۹)

اوددوهم جماعت په باره کی علماء داسی وایي: چي هغه دمحلی مسجدچي خپل امام اومؤذن ولري هلته دوهم جماعت مطلقاً یعنی که اذان اواقامت وی اوکه نه که تغیر د هیئت سابقه وی که نه وی مکروه دی تکرارجماعت درمسجدمحله که امام ومؤذنش معین باشند ،اگرچه بلااذان واقامت وبتغیرهیئت باشد مکروه است کمافی الشامی الخ عزیزالفتاوی ص۱۹۰وهکذافی فتاوی دارالعلوم دیوبندج۳ ص۳۵۔ اوپه فتاوی دارالعلوم دیوبند ج۳ص۳۹کی یې په ډیرودلائلوکراهت ثابت کړی دی ،حضرت مولانامفتی رشیداحمد صاحب دامت برکاتهم په خپله رساله (الوصیة الاخوانیة فی حکم

(**)تعددجمعې په یوه ښارکی په دوو یازیاتومسجدونوکي عندالحنفیه صحیح دی کمافی الدرالمختارخوپه یوه مسجدکي تعدد دجماعت مکروه دی نودجمعې دوهم جماعت په دی صورت کی مکروه دی لکه چي دټولولمونځونودوهم جماعت په هغه مسجدکی چي پکی امام اومؤذن مقرروی فقهاء مکروه لیکلی دی اوپه تیره بیاچي ترجمعې کولو وروسته دجامع مسجددبندولوحکم کړی دی ،په شامی کی دی: دمحلی په مسجدکی دجماعت تکرارچې تاکلی امام اومؤذن لري که څه هم بیله اذان اواقامته اودهیئت له بدلولو سره وی مکروه دی۔(مرتب)

الجماعة الثانية ) کي لاندی توضیحات کړی دی؛
اول.دوهم جماعت (۷) صورته لري (۱) دلاری مسجد یعنی چي تاکلی امام یامقتدی و نه لري (۲) هغه مسجدچي خپل امام اومؤذن نه لري (۳) هغه دمحلي مسجدچي بیګانه خلګوتر مخه جماعت پکښي کړی وی (۴) هغه مسجدچي دمحلی خلګوبی اذانه یابې اعلانه داذان جماعت کړی وی (۵) هغه مسجدچي دمحلی خلګوجماعت سره له اعلانه داذان کړی وی اودوهم جماعت له اذانه سره اداکړل شی (۶) چي دوهم جماعت بیله اذانه اداکړل شي اماپرهیئت داوّل جماعت وی (۷) چي دوهم جماعت بیله اذانه اداکړل شی سره له تغیره په هیئت کي داول جماعت: په اولوخلوروصورتوکي دوهم جماعت جائزځه چي افضل دی اتفاقاً اوپه پنځم اوشپږم صورت کي مکروه تحریمی دی اتفاقاً اوپه اووم صورت کي اختلاف دی امام صاحب رحمه الله یي مکروه بولی ،اوامام ابویوسف رحمه الله ئي جائزبولی.

دوهم: مراد دتغیرڅخه دهیئت اولی لیري کیدل دی له محاذاة څخه دمحراب صرف لیري کیدل له محراب څخه اوبیرته دریدل پرمحاذاة دمحراب کفایت نه کوي (دریهم) دامام صاحب رحمه الله اوامام ابویوسف رحمه الله دقولونوپه منځ کي تطبیق دادی، چي دامام صاحب دکراهت له اثبات څخه مرادی کراهت تنزیهی ،اودامام ابویوسف رحمه الله له قول څخه نفی دکراهت مراددہ دکراهت تحریمی نوددواړوشیخینومراد یودی چي ثبوت دکراهة تنزیهیه دی.

(من الوصیة الاخوانیة فی حکم الجماعة الثانیة المطبوعة فی احسن الفتاوی ج۳ص۳۲۱) والله اعلم وعلمه اتم



مولوی احمدنوری مولوی نذاحمداسحاقی مولوی نورمحمدثاقب رئیس دارالافتاء مرکزی امارت اسلامی افغانستان

## دمسجدامام په کوم وخت کي بايدځواب شي ؟

پوښتنه : دمسجدامام په کوم وخت کي دامامت څخه جواب کيدای شي چي دمقتدی اقتداءورپسی څرنگه وی ؟

(دارشاداواوقافوریاست )

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون ملهم الصدق والصواب:

کوم امام چي دامامت قابل وی که په یو مسجد کي امام شي هغه وخت ځواب کیدای شی چي یوخیانت ،فسق اوفساد ځینی ښکاره شي اوکه داشیان نه وی پکښي نوبيائې عزل صحت نه لري اوکه دکلی خلگوله ده څخه کراهة کاوونوداکراهة که په یوشرعی وجه ؤ هم دده عزل کیدای شي ،اوکه له شرعی وجې پرته وونوبياصحت نه لري ،مطلب:

لايصح عزل صاحب وظيفة بلاجنحة وعدم اهلية (ردالمحتارج۳ص۴۲۳ط رشیدیه ) رجل امّ قوماوهم له كارهون فان كان الكراهة لفسادفيه اولانهم احق بالامامة منه كره له ذالک و ان كان هواحق بالامامة لايكره لان الجاهل والفاسق يكره العالم والصالح (فتاوى قاضيخان بهامش الهندية ج۱ص ۹۲ط دارالاشاعت قندهاروهكذافى فتاوى الهندية ج۱ص ۸۷ ط دارالاشاعة قندهار وردالمحتارج۱ ص۴۱۳ط رشیدیه )

## له مسجدڅخه دملاامام عزل په کوم وخت کي کیږي ؟

پوښتنه :جناب محترم فضیلت مآب دمرکزي شوری رئیس صاحب السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته ا محترمه ا ماپه ۲۱/۴/۱۱ دخپل محلی په موافقه لیکلی تصدیق اودوخت دمحکمی دقاضی په استیذان اوبرعلاوه دطالبانو کرامودتحریک دلومړی قاضی الحاج مولوی پاسنی په حکم اوتائیدیوه ،جامع اومدرسه می په دولتی ځمکه کي چي ځمکی دغه ځمکه خرڅول کیده ماوکرزوله اوپه لوواله کي واقع ده جوړه کړه اوپه شخصی تلاش اوسعی می غیرددغه محلی دهمکاری دمختلفو منطقودخلگوپه مرسته دخدای جل جلاله په فضل پرېښوودروله اوفعلا په هغه جامع کی په سلگونومصلیان فرض لمونځ اداکوي اوهم (۱۵۰) تنه طالبان اوملکان تدریس کوی دزیاتوخلگودسهولت سبب وگرزیدی الحمدلله لیکن اوس دځینو خود غرضوخلگواومعاندولخواچي په محلی کی محدوددی اومځکی هم لیکلی اسنادلرم ځینی مشکلات رامنځته کوي اوغواړی چي زماتصرف اوو ظیفه ته خنډواقع کړی اوماله دغه ځایه

څخه ليرې کړي ،څنگه چي زه يوملاامام عالم يم اودتحريک غړى يم نه غوارم چي غيرشرعى اقدام وکړم نوپه همدغه لحاظ ستاسومحترم اومدبرانه حضورته عارض اواحترامانه توقع لرم چي په دى باب ماته شرعى فتوى راکړئ اوزمادغه درخواست ومحترم رئيس صاحب ته ددارالافتاء تقديم اوراجع کړئ چي ددغه اسنادواواوصافوپه لرلوسره زه دنوموړي حقيت لرم کنه ؟په دى باب کى زماسره همکاري وکړئ.(ومن الله التوفيق )

(قاري عبدالباقى دهيئت دخريداري دشعبى عضو )

ملاحظہ شد

جناب فضيلت مآب رئيس صاحب دارالافتاء السلام عليكم! درموردموضوع مذكورابرازنظرشرعى فرمايدوالسلام

الحاج مولوى عبدالودوداخند
رئيس شورى مرکزي علماء۲۲/۳/۱۴۷۲

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمدلاهله والصلاة على اهلها

امابعد:فنقول ومن الله التوفيق محترموڅرنگه چي امامت اوجوړول دمدرسى اوتدريس په امردقاضى صاحب دوخت وونوداماموريږ وخت له خپلې وظيفى څخه څوک نشى معزولولاى ترهغه وخته چي په ده كي كوم خيانت ،فسق اوفسادنه وى پيداشوى اوكه خيانت فسق اوفسادپكي پيداشونودى مستحق دعزل دى كه څه هم اميرمقرركړى وى ،اوامام دمحلى چي عالم باعمله وى فاسق اوبى دينه نه وى اهل دمحلى يې نشى معزول كولاى اوامام چي فاسق فاجر نااهل وى بيانوحق دعزل لري ځكه چي امامت يې مكروه تحريمى دى ،په سبب دلاندينى مسئلي:

**تنبيه**:قال:فى البحر وا ستفيدمن عدم صحة عزل الناظربلاجنحة عد مهالصاحب وظيفة فى وقف بغير جنحة وعدم اهلية الخ وفى آخر الفن الثالث من الاشباه اذاولى السلطان مدرساليس باهل لم تصح توليته لان فعله مقيد بالمصلحة خصوصاً ان كان المقرر عن مدرس اهل فان الاهل لم ينعزل وصرح البزازى فى الصلح بان السلطان اذااعطى غيرالمستحق فقدظلم مرتين بمنع المستحق واعطائه غيرالمستحق (ردالمحتارج۳ص۴۲۳،مطلب لايصح عزل صاحب وظيفة بلاجنحة وعدم اهلية ـ كتاب الوقف ط رشيديه ) وان اختاربعض القوم لهذاوالبعض لهذافالعبرة

لاجتماع الاكثر رجل امّ قوماً وهم له كارهون فان كان الكراهة لفسادفيه اولانهم احق بالامامة منه كره له ذلک وان كان هواحق بالامامة لايكره لان الجاهل والفاسق يكره العالم والصالح .
(فتاوی قاضیخان بهامش الفتاوی الهندیة ج۱ص۹۲کتاب الصلوة ط دارالاشاعة قندهار وكذافی الهندية ج۱ص۸۷کتاب الصلوة ط دارالاشاعة العربیه قندهاروکذافی ردالحتارج۱ص۴۱۳کتاب الصلاة ط رشيديه ) فان اختلفوافالعبرة بمااختاره الاکثر. قال فی شرح المشکوة لعله محمول علی الاکثرمن العلماء اذاوجدوا والافلاعبرة لكثرة الجاهلين قال تعالى : ولكن اكثرهم لايعلمون وان قدمواغيرالاولى فقدأساؤا ولكن لايأثمون كذافى التجنيس وفيه لوامّ قوماً وهم له كارهون فهوعلى ثلاثة اوجه ان كانت الكراهة لفسادفيه اوكانوااحق بالامامة منه يكره.
قال الحلبی: وينبغی ان تكون الكراهة تحريمية لخبرابی داؤد: ثلاثة لايقبل الله منهم صلوة وعدّ منهم من تقدم قوماً وهم له كارهون وان كان هواحق بهامنهم ولافسادفيه ومع هذايكرهونه لايكره له التقدم لأن الجاهل والفاسق يكره العالم والصالح وقال ﷺ : ان سركم ان تقبل صلوتكم فليؤمكم علمائكم فانهم وفدفيمابينكم وبين ربكم وفی رواية : فليؤمكم خياركم (حاشية الطحطاوی علی مراقی الفلاح شرح نورالايضاح ،فصل فی بيان الاحق بالامامة : ص۲۴۴ط انصاری کتب خانه افغانستان) والله اعلم بالصواب



مولوی نذاحمد احقانی مولوی احمد نوری عفی عنہ مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء مرکزی امارت اسلامی افغانستان

## له راديوڅخه سماع دسجده تلاوت څه حکم لري

پوښتنه:بخواندن آیت سجده ازطریق رادیو سجده واجب میشود یانی بینواتوجروا
(بهاحترام برادرشماعبدالواحد )

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب والله الموفق للصواب
که په راديوکی قاری دسجدی آیت تلاوت کړی نوایاپرسامعینوبه دتلاوت سجده لازمیږي کنه ؟
خلاصة الجواب :ظاهره ده چي دا آله په دی حال اوزمانه کي ايجادشوی ده ددې حکم په صريحو

الفاظو کي دفقهي په کتابونو یا په نصوصو دکتاب اوسنت کي نه پیداکیږي، قواعد او اصولو اونظائرو څخه ددې حکم معلومیږي دفقهاؤ په کلام کي ددی یو نظیر دامذکوردی چي صوت صدی یعنی اوازبازګشت چي دځه ګنبدې یاکوهي څخه اوریدل کیږي داآواز خپله دمتکلم اصلی آوازنه دی بلکه دهغه عکس دی چي دیوغیرذی شعورشئ په ذریعه انسان ته رسیږي ،ځکه فقهاء داتلاوت نه دي ګرزولی ،اودوجوب سجده دپاره تلاوت صحیحه شرط دی ځکه چي سجده تلاوت چي دبازګشت په ذریعه واوریدل شي پراوریدونکی یې سجده نه لازمیږي ـ ولاتجب اذاسمعهامن طیرهو المختار وان سمعهامن الصدی لاتجب علیه (الفتاوی الهندیه ج۱/ص۱۳۲ ط دارالاشاعة العربیه قندهار) لکن احتیاط دادي: چي سجده تلاوت وکړي. (آلات جدیدة ص ۱۲۲) والله اعلم



مولوی نذاحمد الحقانی مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء مرکزی امارت اسلامی افغانستان

**په کوم مسجدکي دجمعي لمونځ کیدای شي ؟**

پوښتنه: دجمعې لمونځ په کومو مساجدو کي کیدای شي په کومو شرائطو مشروط دی اوله ښار څخه که فاصله وی لکه هوایي میدان حکم ئي څه دی ؟

(دارشاد اوقافو ریاست)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون ملهم الصدق والصواب:

احکام اوشرائط دجمعي عاموکتابونودفقهي ذکرکړي دی اواختلاف پکښي شته اود فاصلی د مقدار لپاره تاکلی اندازه نشته خوهوائي میدان یانورفوجي یافوجي ځایونه چي دښاردضروریاتو لپاره جوړشوی وی هغه حکم دفناء دمصرلري جمعه پکښي جائزه ده خصوصاً که په امرد امیرالمؤمنین یومسجد پکښي جوړشوی وی چي دابعینه امردی په جمعه سره.

فناء مصر وہ مقام ہے جو شہر کی ضروریات کی لئے متعین ہو مثلاً قبرستان گوڑ اڈالنے یا گھوڑ دوڑ یا جنگی مشق یا فوجی اجتماع

وغیرہ کیئے میدان ہوائی اڈہ اور ریلوی اسٹیشن وغیرہ(۱) (احسن الفتاوی ج ۴ ص ۱۲۳)

فی فتاوی الدیناری: اذابنی مسجدفی الرستاق بامرالامام فهوامربالجمعة اتفاقاً علی ماقال السرخسی آه والرستاق القری (ردالمحتار: ج۱ص ۵۹۰ ط رشیدیه کوئټه) والله اعلم



مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء مرکزی امارت اسلامی افغانستان

**په هوائي ډګرکي دجمعي اواخترانولمونځ جائزدی کنه ؟**

پوښتنه: په هوايي ميدان کی دقندهارلمونځ دجمعي اواختر روادی کنه ؟

توجيبواوتوجرواجزاکم الله تعالی خيرالجزاء

(المستفتی ملااخترمحمد «منصور»)

بسم الله الرحمن الرحيم

الفتوی بعون الملک العلی الاعلی

کله چي يوشرط له شرطونوڅخه دلمانځه دجمعی (مصر) يعنی ښاراويافناء دښاروه يعنی شاوخوادښارچي جوړه کړای شوی وی دښاردګټولپاره نوپه همدې اساس هوائي ميدان دقندهارفناء دښار بلل کيږي ،لمونځ دجمعی اواخترپکښي روادی دښاردفناء دليريوالی اونژديوالی هيڅ فرق نه راځي ،لکه په الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ج۱ص ۵۹۱ کي ليکل شوی دی

(اوفنائه) بکسرالفاء (وهوما) حوله (اتصل به) اولاکماحرره ابن الکمال وغيره (لاجل مصالحه )کدفن الموتی ورکض الخيل والمختارللفتوی تقديره بفرسخ ذکره الولوالجي.

اودفناء دتقدير په اړه په فرسخ يابل څه سره صاحب دردالمحتار هم په دغه ذکرشوی

---

(۱) ژباړه: فناء دمصرهغه ځای دی کوم چي دښاردارتياوو لپاره ټاکل شوی وی ،مثلاً هديره ،دانباراچولوځای يادآسانوزغلولوځای يادجنګی مشق ،يادفوجی غونډی اونورولپاره ميدان ،هوائي اډه اوريل ګاډی استيشن اونور(مرتب)

صفحه کي ليکلی دی :چي خلاصه دهغه عدم اعتباردتقديراوتحديد دی په باره دفناء کښي : اعلم ان بعض المحققين اهل الترجيح اطلق الفناء عن تقديره بمسافة وكذامحرر المذهب الامام محمدوبعضهم قدره بهاوجملة اقوالهم فی تقديره ثمانية اقوال اوتسعة غلوة ميل ميلان ثلاثة فرسخ فرسخان ثلاثة سماع الصوت ،سماع الاذا ن والتعريف احسن من التحديدلانه لايوجد ذلك فی کل مصر وانماهوبحسب كبرالمصر وصغره الخ وهكذا په احسن الفتاوی ج۴ص۱۳۳کښي په عنوان دسوال اوجواب کي ذکرشوی دی:

فناء مصر وہ مقام ہے جو شہر کی ضروریات کی لئے متعین ہو مثلاً قبرستان گور اڈانی یا گھوڑدوڑیا جنگی مشق یافوجی اجتماع وغیرہ کیئے میدان ہوائے اڈہ اور ریلوی اسٹیشن وغیرہ۔

فناء شہرسے اتصال ضروری نہیں اورنہ ہے اس کی مسافت اورروسعت کی کوئی تحدید ہے بلکہ شہر کی حیثیت کی مطابق اس کی فناء مختلف ہوگی[1]۔

اوبل علاوه پردغه ذکرشوی بيان داخبره هم ده کوم مسجد چې ميدان هوايي کی جوړدی غالبا په امردامير المؤمنين سره به وی اوکله چې په امردامام سره مسجد په يوکلی کی جوړشي دغه امردی په جمعی سره لکه په ردالمحتار ج۱ ص۵۹۱ کښی ليکلی شويدی:

وهذااذالم يتصل به حكم فان فی فتاوی الدينارى اذابنی مسجد فی الرستاق بامر الامام فهو امر با لجمعة اتفاقا على ماقال السرخسی آه فافهم والرستاق القرى كمافی القاموس والله اعلم بالصواب.



مولوی احمدنوری عفی عنہ مولوی عبدالحکیم عفااللہ عنہ مولوی نورمحمد ثاقب وافغانستان د اسلامی امارت د دارالافتاء رئیس

[1] زباره : فناء دمصرهغه ځای دی کوم چي دښاردارتياوو لپاره ټاکل شوی وی ،مثلاً هديره ،دانباراچولوځای يادآسانوزغلولوځای يادجنګی مشق ،يادفوجي غونډی اونوروليپاره ميدان ،هوائي اډه اوريل ګاډی استيشن اونور دفناء اتصال له ښارسره ضروری نه دی اونه ددې مسافی اووسعت (فراخی ) کوم تحديدشته ،بلکه دښاردحيثيت سره سم به دهغه فناء مختلف وی (مرتب )

## په دوونژدې جامع مسجدونوکي دجمعي لمونځ څه حکم لري ؟

پوښتنه :پخواني مسجد جامع وو په بالاکرزکي چي دجمعي لمونځ په کي کيدی بیاهغه جامع مسجدخراب شو ،اوس هغه ته نژدې مسجد چي هغه هم پخواخراب شوی وو اوس جوړشوی دی دجمعي لمونځ په کي شروع شویدی اياوس دغه دجمعي لمونځ صحت لري کنه ؟(المستفتی معلم عبدالله )

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب: حامداً ومصلياً

مسئله داده: چي دوه مسجدان چي هغه هم سره متصل وی اودواړه هم نژدی سره واقع وی نودجمعي لمونځ پکښی صحيح دی.

(وتؤدی فی مصرواحدبمواضع كثيرة )مطلقاً على المذاهب وعليه الفتوى (مطلقا) قوله ای سواء كان المصركبيراًاولا وسواء فصل بين جانبيه نهر كبير كبغداداولا وسواء قطع الجبسر اوبقى متصلاً وسواء كان التعددفى مسجدين اواكثرهكذايسفاد من الفتح ومقتضاه انه لايلزم ان يكون التعددبقدرالحاجة كمايدل عليه كلام السرخسى( الدرالمختار وردالمحتار ج١ص٥٩٥ طالبانو رشيديه ) وتجوزالجمعة فى موضعين فى مصرواحدفى قول ابى حنيفة رحمه الله وابى يوسف رحمه الله(الفتاوى الخانيه بهامش الفتاوى الهنديه ج١ص١٧٦(سئل) فى صلاة الجمعة هل تؤدى فى مصرواحدفى مواضع كثيرة (الجواب ) نعم كماذكره فى التنويروقال السرخسى : هوالصحيح من مذهب ابى حنيفة رحمه الله وبه نأخذالخ (الفتاوى الكاملية ج١ص٧ وهكذافى فتاوى دارالعلوم ديوبندج٥ص٥)

احمدنوری عفی عنہ

## داول خط جنګي طالبان به قصرکوي که پوره لمونځ ؟

پوښتنه :ددارالافتاء ومحترموعلماء کراموته السلام عليكم ورحمة الله وبركاته وبعد : دجنګ داول خط طلباء کرام چي په حالت دقراراوفرارکي دی که دوی نيت داقامت وکړي آياددوئ دغه نيت صحت لري اوکنه ؟ دوي به دلمانځه اتمام کوي اوکه قصر موږ ته صحيح معلومات راکړئ

(دڅهارآسياب داول خط دمسئولينواوطالبانوله طرفه )

به مقام محترم ریاست دارالافتاء تحریک اسلامی
دچهارآسیاب زړورو دسنگرغښتلیو طالبانو کراموپه عاجله توګه داسی فتوی غوښتي ده څرنگه چي موږ په سنگر کي قرارلرونوبعضی وایي چي خپل لمونځونه په مسافرانه صورت اداکړئ اوبعضی وائي چي دمقیم په توګه ئې اداکړئ نوموږ ته په دی باره کي شرعی فتوی راکړئ چي خپل لمونځونه څرنگه وکړو ،دادي موضوع موتاسی ته راجع کړه چي دګرانو طالبانو دلمونځوپه باره کي ژرترژره فتوی راکړئ. والسلام علیکم
(مولوی محمداعظم عضو دیوان امنیت عامه تمیز)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب: رمنه الصدق والصواب:
هغه ځایونه چي اول خط بلل کیږي هغه ځایونه داقامت نه دی که طالبان داقامت یعنی د(۱۵) شپونیت وکړي دغه نیت ئې صحت نه لري ،لمونځ به قصرکوي که په حال دجنگ کښي وی اوکه په حال دمحاصري دکلی یا قلعه کي وی دکلی له داخیلیدو وروسته اوپه مځکه دکفرکي وی اوکه په مځکه داسلام کي وی دباغیانوسره اودامحاصره په مصرکي وی اوکه په غیرمصر کی ځکه حال ددوئ مخالف ده دقصداوعزم ددوي سره حال ددوي کله پرمختنګ وی کله پرشاتګ وی اوکله پرځای پاته کیدل وی ،داحکم دلاندی ذکر کیدوونکو کتابونو څخه معلوم دی:

حاصر قومٌ مدينةً في دارالحرب اواهل البغى فى دارالاسلام فى غيرمصر ونووا الاقامة خمسة عشر يوماً قصروا لان حالهم متردد بين قرار وفرار فلاتصح نيتهم وان نزلوا فى بيوتهم كذافى التمرتاشى (الفتاوى الهندية ج۱ص۱۴۰ ط:دارالاشاعة العربية قندهار) فنقول: انماتصح نية الاقامة اذاكان الموضع الذى نوى الاقامة فيه محلاً للاقامة حتى ان اهل العسكر اذانووا الاقامة فى دارالحرب خمسة عشريوماً اواكثر وهم محاصرون اهل مدينة لاتصح نيتهم وفى المضمرات وقال: زفر رحمه الله ان كانت القوة والشوكة للغزاة صحت نية الاقامة منهم والافلا وقال: ابويوسف رحمه الله ان كانوانزلوافى الابنية صحت وان كانوافى الخيام لم تصح والاصح ماقلنا۔ اهل البغى اذاامتنعوافى دارالبغى وحاصرناهم لاتصح منّا الاقامة.... الخ (الفتاوى التاتارخانية ج۲ص۹ :قديمى كتب خانه كراچى)
(قوله واذادخل العسكر ارض الحرب فنووا اقامة خمسة عشريوماً لم يتموا) ظاهر هذاولوكانت الشوكة لهم لانّ حالهم مبطل عزيمتهم لانّهم بين ان يغلبوفيقروا وبين ان يُغلبوفيفروا وافلم يكن داراقامة كالمفازة الخ (الجوهرة النيرة ج۱ص۱۰۳ ط مکتبه حقانیه ملتان)

اګرچې په فتاوى هنديه كي قيدد«غيرمصر» ذكرشوخواوس به مورِ هغه كتابونه ذكركړو چي داقيدنه معتبروي:

په الطحطاوى على الدر المختارج۱ص ۳۳۳ ط دار المعرفة بيروت ) كښي ئى ليكلي دى : قال فى الشرنبلالية معزيا للعناية التعليل يدل على ان قوله فى غير المصر ليس بقيدحتى لونزلوامدينة اهل البغى وحاصروهم فى الحصن لم تصح نيتهم ايضاً لان مدينتهم كالمفازة عندحصول المقصودلا يقيمون فيها ...الخ.

اوپه ردالمحتارج۱ص۵۸۲ ط رشيديه كوئته ) كښي ليكلي دي:

ثم اعلم ان التقييد بغير المصروقع فى الجامع الصغيروالهداية والكنزوغير هاوهويو هم صحة نية الاقامتو لونزلوافى المصروحاصرواحصناً فيه قال فى المعراج لان اطلاق ماذكرفى المبسوط يدل على انه ليس كذلك واطال فى بيانه وكذانص فى العناية على انه ليس بقيدكمايقتضيه التعليل الآتى وذكرعبارته الشرنبلالى ومشى عليه فى متنه (قوله للترد د بين القراروالفرار) الاول بالقاف والثانى بالفاء اى فكانت حالتهم تنافى عزيمتهم والاطلاق شامل لمااذاكانت الشوكة لعسكرنالاحتمال وصول المدد للعدواوجودمكيدة كمافى الفتح الخ.

اوپه منحة الخالق على هامش البحرالرائق ج۲ص ۲۳۴ طرشيديه كوئته) كي ليكلي دي:

(قول المصنف اوحاصرواهل البغى فى دارنافى غيره ) اى غيرالمصرظاهره انه لوحاصروهم فى المصر لايقصرون ووقع التقييد به ايضاً فى الجامع الصغيروالهداية والدررومواهب الرحمن وعبارة الهداية وكذلك اذاحاصرواهل البغى فى دار الاسلام فى غير مصراوحاصروهم فى البحرلان حالهم مبطل عزيمتهم آه وقدصرح بهذا المفهوم العينى فى شرح هذاالمختصربقوله واماناذا حاصروهم فى مصر من امصارالمسلمين تصح نيتهم للاقامة بلاخلاف آه وصرح فى النهرايضاً بانهم يتمون ولم يتعرض له الزيلعى والمقدسى كالمؤلف لكن قال فى العناية :قوله لان حالهم مبطل عزيمتهم يشيرالى ان المحل وان كان صالحاًلكن ثمه مانعاًآخروهوانهم انمايقيمون لغرض فاذاحصل انزعجوافلاتكون نيتهم مستقرة وهذاالتعليل يدل على ان قوله فى غيرمصروقوله فى البحرليس بقيدحتى لونزلوامدينة اهل البغى وحاصروهم وهم فى الحصن لم تصح نيتهم ايضاً لان مدينتهم كالمفازة عندحصول المقصودلا يقيمون فيهاآه وفى معراج الدراية هم التقييد بقوله فى غير مصروفى البحر يوهم انهم لونزلوامدينة اهل البغى وحاصروهم وثم فى الحصن تصح نية الاقامة لكن اطلاق ماذكرفى المبسوط يدل على انه ليس كذلك فانه قال وكذااذاحاربواهل البغى فى دار الاسلام اماالتعليل فيشمل المفازة والمدينة الا انه قيد فى الجامع الصغيربغير المصر وبالبحر لانه فى عدم الجوازأبَعَدُعن توهم الجوازفى غير المصراو البحرثم بسط الكلام فى التوجيه فراجعه وقداطلقه فى السراج والذخيرة والحاصل ان المفهوم من عبارات المتون كالهداية ان عسكرنالوحاصراهل البغى والعسكرداخل المصرمن ديارالاسلام تصح نيتهم للاقامة والمفهوم من اطلاق

المبسوط والسراج والذخيرة وهومقتضى التعليل انها لاتصح وظاهر كلام العناية والمعراج اختياره وبه جزم الشرنبلالى فى نورالايضاح. والله اعلم.



مولوی محمد اخلاص برکتی مولوی زمان شاه صاحب مولوی احمد نوری

مولوی نور محمد ثاقب دافغانستان داسلامی امارت دمرکزی دارالافتاء سرپرست

## دقروى امام امامت داهل اخبيه لپاره جائزدى كنه ؟

پوښتنه : بعضى ملايان قروى امامت داهل اخبيه وپه مفازاتوكي كوى داصحت لري او كنه اومفازاة كوم ځاى ته ويل كيږي كوم حدلري اوكنه ؟

(المستفتى ملاشاه ولى ـ له هلمندولايته )

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون الملک الوهاب

دقروى امام امامت داهل اخبيه لپاره صحيح دى ځكه صحت دامامت پرقروى اوغير قروى پوري اړه نه لري لكن كه اهل اخبيه نيت داقامت وكړي په داسى مفازاة كښي چي اوبه اوواښه دومره كافى كيږي چي مدة داقامت وى نومقيمين ګرزي اوقروى مسافردى كه ئې نيت داقامت كړى وى هم اعتبارنه لري ،نودغه قروى امام به قصر كوي او اهل اخبيه مقتديان به ئې اتمام كوي : په الدرالمختارعلى هامش ردالمحتارج١ص٥٨٣ ط رشيديه ) كي راغلى دى:( بخلاف اهل الاخبية ) كعرب وتركمان( نوواها)فى المفازة فانها تصح (فى الاصح )وبه يفتى اذاكان عند هم من المآء والكلاء مايكفيهم مدتها لان الاقامة اصل الااذاقصدواموضعاً بينهمامدة السفر فيقصرون ان نوواسفراً والا لا ولونوى غيرهم الاقامة معهم لم يصح فى الاصح. په البحرالرئق ج٢ص ٢٣٥ ط رشيديه كوئته ) كښي راغلى دى:

وقيد باهل الاخبية لان غيرهم من المسافرين لونوى الاقامة معهم فعن ابى يوسف رحمه الله روايتان وعندابى حنيفة رحمه الله لا يصيرون مقيمين وهو الصحيح كذافى البدائع.

په فتح القدير ج۲ص ۳۹۹ ط دارصادربيروت كښي راغلى دى:
امامن ليس من اهل البادية بل هومسافرفلايصير مقيماً بنية الاقامة فى مرعى اوجزيرة .
مفازه هغه ځاى ته ويل كيږي چي ګمان دهلاكت پكښي وى يعنى له ابادى څخه دومره ليرى وى چي ګمان دچولا وه كيدلو پكښي كيږي.
په حاشية دطحطاوى على الدرالمختارج١ص ۳۳۳ ط دارالمعرفة بيروت ) كښي راغلى دى:
(قوله فى المفازة) هى الموضع المهلک مأخوذمن فوّزبالتشديداذامات لانهامظنة الموت وقيل من فازاذانجاوسلم سميت به تفاؤلاً بالسلامة . والله اعلم بالصواب



مولوی عبدالحکیم عفی الله عنه مولوی محمود میوندوال مولوی ندا محمد استانی مولوی نور محمد ثاقب دافغانستان داسلامی امارت دمرکزی دارالافتاء مشر

## دوطني امام داقامت نيت دكوچيانوسره صحيح كيږي كنه ؟

پوښتنه :وحضورته دمحترم رئيس صاحب دارالافتاء اوهمكارانوته السلام عليكم بعداً:
دكوچيانوداقامت نيت خوپه دښت اوصحراكي هم صحيح كيږي اماكه امام ئي وطنى سړى وى ددغه امام وطنى نيت په دغوكوچيانوسره په دښت كي صحيح كيږي كنه ؟
(المستفتى ملااحمدشاه دمركزي محكمى محرر)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون الملک العلى الاعلى:
محترم مستفتى صاحب وطنى اوقروى سړى چي امام ودريږي دكوچيانوسره په يوداسى دښت اوصحرى كي چي دهغونيت داقامت صحيح كيږي په هغه صحرى كي ددغه قروى اووطنى امام نيت داقامت ورسره نه صحيح كيږي بلكه دى مسافر بلل كيږي كه مسافه دسفركي ووپه الدرالمختاربهامش ردالمحتار ج١ص ۵۸۳ ط رشيديه كوئته) كښي راغلى دى:
(بخلاف اهل الاخبية) كعرب وتركمان (نوواها)فى المفازة فانها تصح (فى الاصح )وبه يفتى اذاكان عند هم من المآء والكلاء مايكفيهم مدتها لان الاقامة اصل الااذاقصدواموضعاً بينهمامدة

اذاكان عند هم من المآء والكلأء مايكفيهم مدتها لان الاقامة اصل الااذاقصدواموضعاً بينهمامدة السفر فيقصرون ان نوواسفراً والا لا ولونوى غيرهم الاقامة معهم لم يصح فى الاصح.

په البحرالرئق(ج۲/ص۱۲) كښې راغلي دي:

وقيد باهل الاخبية لان غيرهم من المسافرين لونوى الاقامة معهم فعن ابى يوسف رحمة الله عليه روايتان وعندابى حنيفة رحمة الله عليه لايصيرون مقيمن وهو الصحيح كذافى البدائع.

په فتح القديرج۲ ص ۳۹۹ ط دارصادربيروت كښې راغلي دي:

امامن ليس من اهل البادية بل هومسافر فلايصير مقيماً بنية الاقامة فى مرعى اوجزيرة. والله اعلم.

احمدنوری مولوی محمودمیوندوال مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

# كتاب الزكاة والعشر

## چي زكاة نه وركوي ياني غنيانو(مړو) ته وركوي دهغوئ څه حكم دى ؟

پوښتنه: كوم خلک چي مالداروى اوخپل زكاة اغنياؤته وركوى اويائي نه وركوي ،په دې باره كى به موږ ته دشرعى احكامو له رويه فتوى راكړئ. والسلام

(ملامحمدحسن رحماني دكندهاروالى)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون الملك العلى الاعلى:

مالدارخلک چي خپل زكاة مالدارو اوغنيانوته وركوي ،هغه اغنياء چي پرهغوئ زكاة نه كيږي لكه دسوال ظاهرچي هم دغسى دي دالكه نه وركړه ده څكه چي داټولو متونودفقه شريفي اوفتاواوو ليكلى دى: چي غنى ته زكوة قصداً وركړي زكوة يي نه كيږي.

فى البحرالرائق من المجلدالثانى باب المصرف ص ۴۲۶ ط رشيديه كوئټه (قوله وغنى يملك نصاباً) لايجوزالدفع له لحديث معاذ رضي الله عنه المشهور خذهامن اغنيائهم وردّهافى فقرائهم.

باقى تاركين دزكاة چي زكاة نه وركوي كه نه وركوونكي دزكاة داموال ظاهره وو وى نواسلامى حكومت اوامام دمسلمانانوته اجازه ده دشريعت له طرفه څخه چي په زور

اوجبرئي ځيني واخلي كه په رضائي نه وركوى لكه تاسودالبحرالرائق اوله حواله وكوړئ چي په صراحت سره ذكردى چي ابوبكرصديق رضي الله عنه قتال اعلان كړى وو دمانعينودزكاة سره اوكه نه وركوونكي دزكاة داموال باطنه وو وي نوبياپس له پوره معلوماتوڅخه چي دى تارک دزكاة دى نودى مرتكب دمعصيت بلل كيږي ،حكم ئي داسى دى لكه حكم دتارك الصلوة اوخوړوونكى دروژې بې له شرعى عذره چي هغه تعزيردى په بندى كولوسره ياپه بل شى سره چي ترڅوتوبه وباسى.

فى الفتاوى الكاملية : (ص۴۷) فائدة : قال فى الاشباه كل مرتكب معصيةٍ لاحد فيها ففيها التعزيرآه ونقله فى الدرونقل محشيه ابن عابدين عن الفتح انه يعزرمن شهد شرب الشاربين ويعزر من معه ركوة خمر والمفطرفى رمضان وكذاالمسلم يبيع الخمر ويأكل السرباوالمغنى والمخنث والنائحة يعزرون ويحبسون حتى يحدثواتوبة ،ومن يتهم بالقتل والرقة يحبس ويخلد فى السجن الى ان يظهر التوبة وكذامن قبّل اجنبية اوعانقها اومسّها بشهوة وذكر فى البحران الحاصل وجوبه باجماع الامة لكل مرتكب معصية ليس فيها حدمقدرآه . والله اعلم



مولوى احمدنورى مولوى نورمحمدثاقب

## دكورد نفقي پرټكټرياموټرباندى زكوة شته اوكنه ؟

پوښتنه:كه څوک ټكټرياموټردكوردنفقى (خوارى ) لپاره واخلى اومزدورى په كوى آياپه دغه ټكټركي ياموټركي زكاة شته كنه ؟

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب حامداً ومصلياً

په ټكټراوموټركي چي مزدورى په كوي دفروش لپاره نه وى اګركه يې په نيت كي فروش وى په آخيركي زكوة نشته اذااشترى جوالق بعشرة آلاف درهم ليؤاجرهامن الناس فحال عليهاالحول فلازكوة فيها لانه اشتراها للغلة لا للتجارة فان كان فى نيته انه يبيعها آخرافلاعبرة لهذاوكذلک الجواب فى ابل الحمالين وحمرالمكارين (التاتارخانية ج۲ص ۱۸۲ ط قديمى كتب

لهذاوكذلک الجواب فی ابل الحمالین وحمر المكارین (التاتارخانیة ج۲ص ۱۸۲ ط قديمی كتب خانه كراچی ،وخلاصة الفتاوی ج۱ص۲۴۰ ط رشيديه كوئته ) والله اعلم .



مولوی محمداخلاص برکتی مولوی احمدنوری مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان داسلامي امارت دمرکزی دارالافتاء رئیس

## له یوه ځای څخه بل ځای ته دزکوة انتقال (وړل) څه حکم لري ؟

پوښتنه:بحضورمحترم رئيس صاحب دارالافتاء قندهارالسلام عليكم ورحمة الله وبركاته ا بعد:درياست عمومی عشروزکوة لـه طرفـه وتولومربوطه ولاياتوتـه دعشررئيسان مقرر اومعرفی شوی چي خپلوحوالی اواطرافوڅخه دعشراصناف راجمع کړی دقندهار د ولايت نقدي پيسی هغه اندازه چي دمحل دامامانودضرورت څخه اضافه وی ورياست عشرته تحويل شوي چي په نتيجه کي مبلغ (۱۲) زره لکه افغانی په ظرف دځلورو مياشتو کي دټول افغانستان دولاياتو مسکينانو ، معيوبينوګوډيانو يتيمانو اوبيوزلوته توزيع شوی تنهاوتنهاپه ولاياتوکي غنم پاته دی چي دهغوپه انتقال اوتوزيع کي ستاسو امرته سترګي پـه لاره يـوچي هلتـه توزيـع اويامرکزتـه راوړل شـي ،چـي دټـول افغانـستان و مستحقينو ته تقسيم اودتمام تحريک په نفع کي مصرف شي بااحترام.

(ملاحميد الله اخندزاده رئيس عمومی عشر تاريخ ۱۵/۸/۱۳۷۵)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب حامداً ومصلياً

محترم رئيس صاحب دعشر اوزکوة بايدخپله مصلحت ته وګوری چي ايامصلحت به داوی چي په هغوولاياتوکي چي غنم پکښي جمع شوی دی تقسيم شی اوکه مرکزته را انتقال شی اودمرکزله طرفه تقسيم شی ،دمشرانوترنظارت لاندی. هرچي مسئله دانتقال دزکوة ديوه ځايه بل ځای ته ده حکم ئي دشريعت له نګاه په لاندی ډول دی :نقل زکوة اوعشرديوه ځايه وبل ځای ته مکروه تنزيهی دی لکن که چيری واقرباؤ محتاجانوته وی اويااومحتاجينوفقيرانوته وی چي تردغه ځای ترفقيرانواحوج وی اويااواصلح ته

تردغواویاواورع ته تردغواویاوانفع للمسلمین ته تردغواویاوطلباؤته دعلم اویا ورکول دزکوة مخکي تروخت ۋ اویادارالحرب څخه ودارالسلام ته وه په دغوصورتونوکي مکروه نه دی په غیرددغوصورتونوکي جائزدی لکن مکروه دی.

وکره (نقلها الاّالی قرابة اواحوج )اصلح اواورع اوانفع للمسلمین( اومن دارالحرب الی دارالاسلام اوالی طالب علم )وفی المعراج التصدق علی العالم الفقیرافضل (اوالی الزهاداوکانت معجلة )قبل تمام الحول فلایکره خلاصة (الدّرالمختارعلی هامش ردالمحتارج۲ص۷۵ ط رشیدیه کوئته ،الفقه الاسلامی ج ۳ص ۱۹۷۷ ط رشیدیه،والدّرالمنتقی علی هامش مجمع الانهرج۱ص۳۳۳ ط مکتبه غفاریه کوئته ) قوله :( وکره نقلها الی بلدآخر لغیرقریب واحوج) اما الصحة فلاطلاق قوله تعالی [انما الصدقات للفقرآء ] من غیرقیدبالمکان واماحدیث معاذ﵁المشهور خذها من اغنیآئهم وردهافی فقرآئهم فلاینفی الصحة لان الضمیرراجع الی فقرآء المسلمین لاالی اهل الیمن اولانه ورد لبیان انه علیه الصلوة والسلام لاطمع له فی الصدقات ولانه صح عنه انه کان یقول لاهل الیمن ائتونی بخمیس اولبیس وهماالصغارمن الثیاب آخذه منکم فی الصدقة مکان الشعیروالذرة اهون علیکم لاصحاب رسو ل الله صلی الله علیه وسلم فان کان فی زمنه فهوتقریر وان کان فی زمن ابی بکر﵁ فذا ک اجماع لسکوتهم عنه وعدم الکراهة فی نقلها للقریب الجمع بین اجری الصدقة والصلة وللاحوج لا ن المقصودمنهاسدّ خلة المحتاج فمن کان احوج کان اولی ولیس عدم الکراهة منحصراً فی هاتین لانه لونقلها الی فقیر فی بلدآخراورع واصلح کمافعل معاذ﵁ لایکره ..ولایکره نقلها من دارالحرب الی فقرآء دارالاسلام وکذالایکره نقل الزکوة المعجّلة مطلقاً ...والمعتبرفی الزکوة مکان المال فی الروایات کلّهاآه البحرالرائق ج۲ص ۴۳۶ ط رشیدیه کوئته ) وفی منحة الخالق علی البحر الرّائق بعدنقل قول الزیلعی اقول یؤخذمنه انها کراهة تنزیهٍ آه (ج۲ص ۴۳۶) والله اعلم



مولوی احمد نوری مولوی زمان شاه مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان داسلامی امارت دمرکزی دارالافتاء رئیس

## بل ولایت ته دعشراوزکاة انتقال جائزدی کنه ؟

پوښتنه :دطالبانو د اسلامی تحریک ددارالافتاء محترم مقام ته ! څرنګه چي دطالبانو اسلامی تحریک غواړي عشر اوزکاة له ځینی مستعدوولایاتوڅخه هغوولایاتو ته چي داقتصاد په لحاظ کمزوري وي انتقال کړی داچي داموضوع دشریعت له نکاه څنګه ده ؟
(المستفتی حافظ عبدالمجید رئیس شهداء ومعلولین )

بسم الله الرحمن الرحیم

نحمده ونصلی علی رسوله الکریم

الجواب باسم ملهم الصواب

دعشراوزکاة انتقال له یوه ښاره بل ښارته له ضرورت پرته مکروه تنزیهی دی اوښاء پرضرورت جائزدی بیله کراهته یعنی دبل ښارفقرآء دزکاة ورکوونکي دښارترفقرآؤ ډیراړ وي یاقریبان وی یاصالحین اوتقوی داره وی ،یابې نفعه ومسلمانانوته ډیره رسیږي بلکه دضرورت له مخې دغه انتقال اولی اوبهتردی

ویکره انتقال الزکوة من بلدالی بلد – الا ان ینقلها الانسان الی قرابته اوالی قوم هم احوج من اهل بلده لمافیه من الصلة اوزیادة دفع الحاجة ولونقل الی غیرهم اجزاه وان کان مکروهالان المصرف مطلق الفقرآء بالنص. الهدایه ج۱ص ۱۹۰ ط رشیدیه کوئته ) (قوله الاان ینقلها) استثناء من کراهة النقل (فتح القدیرج۲ص۲۱۷) قوله هم احوج من اهل بلده ) وکذلک اذاکان الفقیر الذی فی بلدآخر اورع وانفع للمسلمین بتعلیمهم شرائع الاسلام الاتری ان معاذﷺ کیف نقلهامن الیمن الی المدینة لهذه المعانی (الکفایةمع الفتح القدیرج۲ص۲۱۷) واما الی قوم هم احوج من اهل بلده فلان المقصودسدخلة الفقیر فمن کان احوج کان اولی وقدصح عن معاذﷺ انه کان یقول بالیمن ائتونی بخمیس ولبیس آخذه منکم فی الصدقة فانه ایس علیکم وانفع للمهاجرین بالمدینة والخمیس

الثوب الصغیر طوله خمسة ازرع واللبیس الخلق (العنایة علی هامش فتح القدیرج۲ص۲۱۷) وکره (نقلهاالاالی قرابة... اواحوج) اواصلح اواورع اوانفع للمسلمین (الدرالمختار) ( قوله وکره نقلها) والمتبادرمنه ان الکراهة تنزیهیة تأمل فلونقلهاجاز (ردالمحتارط رشیدیه ج ۲ص ۷۵) فامااذالم یکن فقراء تلک البلدة محتاجین للحال اوکانوامحتاجین الاان فقراء بلدة اخری اکثر حاجة فالصرف الی فقراء بلدة اخری اولی (التاتارخانیة ج۲ص ۲۸۲ ط قدیمی کتب خانه کراچی ) ویکره نقل الزکوة من بلدالی بلدالاان ینقلها الانسان الی قرابته اوالی قوم هم احوج الیهامن اهل بلده (الهندیه ج۱ص۱۹۰ط دارالاطاعة العربیة ،بحرالرائق ج۲ص ۴۳۶ ط رشیدیه کوئته ،والاختیارج۱ص۱۴۲،والفقه الاسلامی وادلته ج ۳ص ۱۹۷۷ ط رشیدیه ،وامدالمفتین ج۲ص ۴۶۶،واحسن الفتاوی ج۴ص۲۲۵،ومجمع الانهر فی شرح ملتقی الابحروعلی

هامش الدر المنتقى فی شرح الملتقى ج۱ص ۲۲۶-۲۲۵

مولوی نذاحمد فاضل وفاق المدارس مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان د اسلامی امارت دمرکزی دارالافتاء رئیس

معلومی محمد اخلاص برکتی

## ایادزکوة وکیل خپلوقریبانوته دغه زکوة ورکولای شي کنه ؟

پوښتنه:محترم رئیس صاحب دارالافتاء السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته !

محترم حاجي رئیس صاحب زه غنی یم یوسړی دزکاة پیسی راکړی دی .زه یې خپل مسکین پلار یامسکینی موریا بالغ زوی یالورته چي مسکینان وی ورکولای شم کنه ؟ په دي اړه درخخه فتوی غواړو (المستفتی عبدالله )

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون الملک الوهاب:

وکالة په زکاة کي صحیح دی لکن وکالة پردوه قسمه دی: یووکالة په روکولوکي دزکاة عام وی یعنی وهرچاته چي یي ورکوي په دغه صورت کي ئي وهرمسکین ته ورکول صحیح دی اوضمان پروکیل نشته اودوهم صورت دادي که ئي وکیل ته معین شخص ورښودلی وی په دې صورت کي ځوک وایي ضمان پروکیل باندی شته اوځوک وایي ضمان نشته دا چي ضمان شته ترجیح لري اودترجیح قول صحیح دی.

هکذافی الفقه الاسلامی ج ۳ص ۱۹۷۶ ط رشیدیه کوئته ) وان امره بالدفع الی شخص معین فدفعما الوکیل لغیره ففیه قولان عندالحنفیة قول بانه لایضمن آه وقولٌ رجحه ابن عابدین یضمن... آه.

هغه دول وکالة کي چي عام وي وهرمسکین ته ورکول دزکاة روادی که څه هم زوي یالوردوکیل وي اویائي زوجه وي.

هکذافی الفقه الاسلامی ج ۳ص ۱۹۷۶ ط رشیدیه ) ،وردالمحتار ج۲ص۱۲ط رشیدیه کوئته ) وللوکیل ان یدفع الزکاة لولده الفقیر وزوجته الفقیرة اذالم یأمره بالدفع الی شخص معین آه . والله اعلم وعلمه اتم

احمدنوری العبدالاحقر نذاحمد مولوی محمود میوندوال

## دګمرک اوټرانسپورټ عوائدچاته باید ورکول سي ؟

پوښتنه: ویتیمانواومعیوبینوته په قانونی شکل له ګمرک اوټرانسپورټ څخه تقسیم صحت لري اوکنه ؟

(المستفتی حافظ عبدالمجید دشهداؤاومعلولینورئیس )

بسم الله الرحمن الرحیم

نحمده ونصلی علی رسوله الکریم

الجواب باسم ملهم الصواب:

دغنیمت پنځمه برخه یادمعدن اورکازمبلغ په یتیمانوباندی مصرف کیدلای شي اوهغه شیان چي پیدا شوی وی چي هغه ته اللقطات وایي یاددا سی شخص ترکه چي دهغه وارث نه وی پاته شوی په معیوبینوباندی مصرف کیدلای شي نو که دګمرک اوترانسپورټ مبلغ دمذکوره اشیاؤڅخه وی نوپه یتیمانواومعیوبینومصرف کیدای شي خومعیوبین به فقراء وی اوهم دنفقی برابرولو قریب به نه لري

(والثانی) خمس الغنائم والمعادن والرکازویصرف الیوم الی ثلاثة اصناف الیتامی والمساکین وابن السبیل (الهندية ج۱ص۱۹۰ط دارالاشاعة العربیه قندهار ،وبدائع الصنائع ج۷ص۱۲۴ ط ایچ ایم سعیدکراچی ) قوله المال المستخرج من الارض له اسام ثلاثة الکنزوالمعدن والرکاز، فالکنزاسم لمادفنه بنوآدم والمعدن اسم لماخلقه الله تعالی فی الارض یوم خلق الارض والرکازاسم لهماجمیعاً (العنایة علی هامش فتح القدیرج۲ص۱۷۹)

(والرابع)اللقطات وماخذمن ترکة المیت الذی مات ولم یترک وارثا... وهذا النوع یصرف الی انفقة المرضی وادویتهم وهم فقراء... والی نفقة من هوعاجزعن الکسب ولیس له من تجب علیه نفقته (الهندية ج۱ص۱۹۱ط دارالاشاعة قندهار ،وبدائع الصنائع ج۲ص۶۹ ط ایچ ایم سعیدکراچی ) والله اعلم



العبدالاحقرنذاحمد مولوی نورمحمد ثاقب

دافغانستان داسلامی امارت دمرکزی دارالافتاء مشر

## ایاپرعاموسلمانانو،معیوبینودشهداؤ وارثانودتحریک پرفقراءمسئولینواوتعلیم اوتربیه بیت المال مصروفولای شي؟

پوښتنه :جناب محترم رئیس صاحب دارالافتاء اوستاسو ملګرو علماء کراموڅخه ددې فتوی غوښتونکی یوچې کوم عشراوزکوة دبیت المال حق ده دبیت المال څخه مصرف په دغوڅلوروفریقوجوازلري اوکه ئي نه لري:(۱) عام مساکین (۲) دوهم معیوبین دجهاداو وارثین دتحریک دشهداؤ(۳) دریم مسئولین دتحریک چې فقیران وی (۴) تعلیم اوتربیه

(المستفتی عبدالمجیددشهیدانواومعلولینودریاست رئیس)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب وهوملهم الصواب

په استفاء کې چې اول اودریم فریق دی یعنی عام مساکین اودتحریک مسئولین چې فقراء وی دوي مصرف دعشراوزکوة دی یعنی ورکول دعشراودزکوة دوي ته بې شکه صحیح ده ،اوهرچې دوهم اوڅلورم فریق دی یعنی معیوبین دجهاداودتحریک د شهیدانو وارثان اوتعلیم اوتربیه دا مصرف دخراج (مالیه ) اودجزیې دی ،که څه هم دامام (باچا ) لپاره جائزده چې دبیت العشرڅخه قرض وکړي بیت دخراج اوجزیې لره ئې ورکړي اوداسی بالعکس اودا قرض په څلوروواړوبیوت دمال کښې صحیح کیږي.

زیات تفصیل به دلاندی عباراتوڅخه معلوم شي

په( الدرالمختاراوردالمحتارج۳ص۳۰۲- ۳۰۷ ط رشیدیه کوئته )کې په بیان دمصرف دخراج اوجزیه وغیرهماکې لیکلی دی:

(وکفایة العلماء) والمتعلمین تجنیس وبه یدخل طلبة العلم فتح (والقضاة والعمال) ککتبة قضاة وشهودقسمة ورقباء سواحل (ورزق المقاتلة وذراریهم) ای ذراري من ذکرمسکین واعتمده فی البحر(قوله وکفایة العلماء) هم اصحاب التفسیروالحدیث والظاهر ان المراد بهم من یَعلم العلوم الشرعیة فیشمل الصرف والنحووغیرهما حموی عن البرجندي ط وفی التعبیربالکفایة اشعار بانه لایزادعلیهاوسیأتی بیانه وکذایشعرباشتراط فقرهم لکن فی حظرالخانیة سئل علی الرازي عن بیت المال هل للاغنیاء فیه نصیب قال لا الاان یکون عاملاً اوقاضیاً ولیس للفقهاء فیه نصیب الافقیهٌ فرغ نفسه لتعلیم الناس الفقه أو القرآن آه قال فی البحر :ای بان صرف غالب اوقاته فی العلم

وليس مرادالرازي الاقتصارعلى العامل اوالقاضی بل اشاربهماالى كل من فرغ نفسه لعمل المسلمين فيدخل فيه المفتی والجندی فيستحقان الكفاية مع الغنى...آه

وفسرالذراری فی شرح دررالبحار بالزّوجة والاولاد- نقل الشيخ عيس السفطى فی رسالته مانصه قال ابويوسف فی كتاب الخراج ان من كان مستحقاً فی بيت المال وفرض له استحقاقه فيه فانه يفرض لذريته ايضاً تبعاًله ولايسقط بموته وقال صاحب الحاوی الفتوی :على انه يفرض لذراری العلمآء والفقهآء والمقاتلة ومن كان مستحقاً فی بيت المال لايسقط مافرض لذراريهم بموتهم آه . قلت لكن قول الملتون الآتی ومن مات فی نصف الحول حرم من العطآء ينافی ذلک الا ان يجاب بان مايجری على الذراري عطاء مستقل خاص بالذراری لاعطاء الميت بطريق الارث بين جميع الورثة تأمل لكن مامرّ عن الحاوی لم أره فی الحاوی القدسی ولافی الحاوی الزاهدی وراجعت مواضع كثيرة من كتاب الخراج فلم آره فيه والله اعلم نعم قال الحموی فی رسالته وقدذكرعلمائنانه يفرض لاولادهم تبعاً ولايسقط بموت الاصل ترغيباً آه وذكرالعلامة المقدسی ان اعطائهم بالاولی لشدة احتياجهم سيماًاذاكانوا يجتهدون فی سلوک طريق آبائهم آه .

وذكرفی( ردالمحتار ج۲ص۶۳ ط رشيديه كوئته ) وقال الشرنبلالی فی رسا لته ذكروا انه يجب عليه (ای الامام ) ان يجعل لكل نوع منهابيتاً يخصه ولايخلط بعضه ببعض وانه اذااحتاج الی مصرف خزانة وليس فيها مايفیٔ به يستقرض من خزانة غيرهاثم اذاحصل للّتی استقرض لهامال يردالی المستقرض منها الاان يكون المصروف من الصدقات اوخمس الغنائم على اهل الخراج وهم فقراء فانه لاير دشيئاًلاستحقاقهم للصدقات بالفقر وكذافی غيره اذاصرفه الی المستحق...آه .

اوداخيری مضمون په فتاوی هنديه (ج۱ص۱۹۱دارالاشاعة العربيه قندهار ) كي اوهم په البحرالرائق ج۵ص۲۰۰ ط رشيديه كوئته كي ذكرشوی دی.



مولوی عبدالحکیم عفی عنه مولوی نورمحمد ثاقب

د مرکزی دارالافتاء سرپرست

**دعشر اوزكوة عاملين چي سيدان وى دزكوة اخيستل ئي څه حكم لري؟**

رياست عمومى عشروزكاة ولايت كندهار

بحضورجناب رئيس صاحب تميزالسلام عليكم ورحمة الله وبركاته !

امابعد: رياست عشروزكاة درولايات وولسوالى هامربوطه خودعاشرين وعاملين برايي فراهم آوردن عشروزكوة مؤظف ومقررنموده كه بعضى افرادآنان سادات ميباشندكه قابضين وآخذين عشرميباشند ومايان درقبض واخذعشر موصوفان مترددميباشم لطفاً مطابق شريعت غرّاء تاامراجراء كاروظيفه شان عنايت فرمائيد احترام (ملاحميدالله اخندزاده رئيس عمومى عشروزكوة )

ملاحضه شد ۱۸/۵/۱۳۷۵

رياست محترم دارالافتاء درومورد ابرازنظرشرعى فرمايند !والسلام.

(مولوى خليل الله فيروزي رئيس عالى تميز )

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب ومنه الصدق والصواب:

اگرعاشرين وعاملين سادات وبنى هاشم باشندوامام برايشان رزق مقررنمايدلكن بغيرازعشروزكوة پس درست است وآنجاكه ذكرميشودكه عاشرين وعاملين بنى هاشم وسادات نباشند -مرادآن اينست كه اگرفتن وخوردن براى خوايشن آزان عشروزكوة كه آنهاازمسلمين جمع كردندصحيح نيست زيراكه خوردن آن عشروزكوة براي شان حلال نيست - جهت تنزيه قرابة نبى كريم ﷺ ازشبهه چرک ومراداين نيست كه مقرركردن آنهابوظيفه عاشرين وعاملين درست نيست بلكه درست است وبراى ايشان رزق ازديگرحصه بيت المال مقرركردد-

اعلم ان هذالشرط اعنى كونه غيرهاشمى عزاه فى البحرالى الغاية ولم ارمن ذكره غيره وهومخالف لماذكره فى النهاية وغيرهافى باب المصرف انه اذااستعمل الهاشمى على الصدقة لاينبغى له الاخذمنهاولوعمل ورزق من غيرهافلابأس به آه . ومراده بلاينبغى لايحل كماعبّربه الزيلعى هناک وهذاكالصريح فى جوازنصبه عاملاً فيحمل ماهناعلى انه شرط لحل آخذه من الصدقة ويدلّ عليه تعليل صاحب الغاية وبقوله لمافيه من شبهة الزكاة فان مفاده انه يجوزكونه هاشمياً اذاجعل له الامام شيئاً من بيت المال اوكان لايأخذ شيئا مما يأخذه من المسلين وسنذكرفى باب المصرف تمامه. (ردالمحتارج۲ص۴۲ ط رشيديه كوئته)

فلاتحل للعامل الهاشمى تنزيهاً لقرابة النبى ﷺ عن شبهة الوسخ وتحل للغنى لانه لايوازي الهاشمى فى

كمابسطه فى الفتح قال فى النهر وفى النهاية استعمل الهاشمى على الصدقة فأجرى له منها رزق لاينبغى له اخذه ولوعمل ورزق من غيرهافلابأس به قال فى البحر وهذايفيدصحة توليته وان اخذه منهامكروه لاحرام آه . والمرادالكراهة التحريم لقولهم لايحلّ لكن مامرّ من ان شرائط الساعى ان لايكون هاشمياً يعارضه وهذا للذى ينبغى ان يعول عليه آه . مافى النهر اقول الظاهر ان الاشارة فى قوله وهذا الى ماذكرهنامن صحة توليته ووجهه ان ماذكروه هناصريح فى عدم حل الاخذمماجمعه من الصدقة لامن غيره فلادليل حينئذعلى عدم صحة توليته عاملاً اذارزق من غيرهاوقد منا ان اشتراط ان لايكون هاشمياً نقله فى البحرعن الغاية ولم آره لغيره على انه فى الغاية علّل ذلک بقوله لمافيه من شبهة الزكاة كماعلّلوابه هنافعلم ان ذلک شرطٌ لحل الاخذمن الصدقة لالصحة التولية فلايعارض ماهناكماقدمناه هناک والله تعالى اعلم (ردالمحتارج۲ص ۶۴ ط رشيديه كوئته) فان عمل الهاشمى عليهاورزق من غيرهالابأس به –هكذافى الخلاصة –(الفتاوى الهندية ج۱ص۱۸۸ ط دارالاشاعة قندهار)



مولوی محمد مسلم حقانی مولوی عبدالحکیم مولوی نورمحمد ثاقب دمرکزی دارالافتاء رئیس

## اياعاشربه دظاهري اوباطني مالونودوارو زكوة راټولوى ؟

پوښتنه- ددارالافتاء محترمي اداري ته ! السلام عليكم ورحمة الله وبركاته
دهغوكسانوزكوة چي مالداروي مثلاً دترياكوتجاران يادنورموادو تجاران چي له هغوي سره نغدي روپۍ وى آيازكوة ئي عاشران تولوي دمقدس شريعت له نكاه څخه څنګه دى ؟
(المستفتى ملامحمد حسن رحمانى دكندهاروالى)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون ملهم الصدق والصواب
ظاهرى مالونه لكه حيوانات دامفوض دى دمسلمانانوامام لره هغه كه په ښاركي وى كه په كليوكي وى اوكه په صحراء كي وي اوزكوة دباطنى مالونوپه شهركي اوكه په كليوكي وركول ئې په خپلومالكانوپوري تعلق لري هرچاته چي يي وركوي وركولاى يي شى چي مصرف دزكوة وي حكومت ئي په زورنشى څينى اخيستلاى اخيستونكى دزكوة داموال

ظاهرو چي داسلامی حکومت لخوامقررکړل شوي وي ،په علم فقه شریفه کي ورته ساعی ویل کیږي اوعاشرهغه چاته ویل کیږي چي امام دمسلمانانويي نصب کړی په پولارباندی په صحراء کي چي زکاتونه دهغوتجارانوڅخه واخلی چي مالونه تیروی پردغه لارباندی دغه عاشرته بیاحق شته داخیستلودزکوة دهرقسم مالونوکه اموال ظاهره وي اوكه باطنه اواموال باطنه لكه سره زراوسپين زر.

فی مجمع الانهرمن المجلدالاول (ص ۲۸۷ ط مکتبه غفاریه کوئته ) (ولامدیون مطالب) ولو بالجبر والحبس طلباًواقعاً (من العباد) وهواما الامام فی الاموال الظاهرة ای السوائم اوالملاک فی الاموال الباطنة فان الملاک نوابه لان حق الاخذکان للامام فی الاموال الظاهرة والباطنة الی زمن عثمان ﷺ ففوض الاموال الباطنة الی اربابهاخوفاً علیهم من السعاة السوء۔

وایضاً من هذاالمجلد(ص ۳۰۹ ط مکتبه غفاریه کوئته ) (باب العاشر) (هومن نصب) ای نصبه الامام (علی الطریق )احترازاً عن الساعی وهوالذی یسعی فی القبائل لیأخذصدقة المواشی فی اماکنهافلایصح ان یکون عبداً ولاکافراً لعدم الولایة فیهما ولاهاشمیاً لمافیه من شبهة الزکوة وبه یعلم حکم تولیة الکافرفی زماننا علی بعض الاعمال ولاشک فی حرمة ذالک (لیأخذصدقات التجار) المارین باموالهم علیه فیأخذمن الاموال الظاهرة والباطنة وهذابان لایکون فی المصرولا فی القری بل فی المفازة قالوانماینصب لیأ من التجارمن اللصوص ویحمیهم منهم۔ فیستفادمنه انه لابدان یکون قادراً علی الحمایة لان الجبایة الحمایة وانماسمی بالصدقة تغلیباً لاسم الصدقة علی غیرها۔ وایضاً من هذا المجلد( ۳۱۰ ط مکتبه غفاریه کوئته ) (اوادعی الاداء بنفسه الی الفقراء فی المصر) لان الاداء کان مفوضاً الیه فیه وولایة الاخذبالمرورلدخوله تحت الحمایة وانماقال فی المصرلانه لوادعی الدفع الیهم بعدالخروج من المصرلایقبل (فی غیرالسوائم ) لان حق الاخذفی السوائم للامام فی المصروغیره ثم اذالم یجزالامام دفعه یضمن عندناقیل الزکوة هوالاول والثانی سیاسة وقیل هوالثانی والاول ینقلب نفلاً هوالصحیح.

وفی البحرالرائق من المجلدالثانی باب العاشر(ص ۴۰۳ ط رشیدیه کوئته ) وحاصله ان مال الزکوة نوعان ظاهروهوالمواشی والمال الذی یمربه التاجرعلی العاشروباطن وهوالذهب والفضة واموال التجارة فی مواضعها اماالظاهرفللامام ونوابه وهم المصدقون من السعاة والعشارولایة الاخذ للآیة (خُذۡ مِنۡ اَمۡوَالِهِمۡ صَدَقَةً) ولجعله للعاملین علیهاحقاً فلولم یکن للامام مطالبتهم لم یکن له وجه ولمااشتهرمن بعثه ﷺ للقبائل لاخذالزکوة وکذا الخلفاء بعده حتی قاتل الصدیق مانعی الزکوة

(خُذْمِنْ اَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً) ولجعله للعاملين عليهاحقاً فلولم يكن للامام مطالبتهم لم يكن له وجه ولمااشتهرمن بعثه عليه السلام للقبائل لاخذالزكوة وكذالخلفآء بعده حتى قاتل الصديق مانعى الزكوة ولاشك ان السوائم تحتاج الى الحماية لانهاتكون فى البرارى بحماية السلطان وغيرهامن الاموال اذاخرجه فى السفراحتاج الى الحماية بخلاف الاموال الباطنة اذالم يخرجها مالكها من المصر لفقد هذالمعنى .



مولوی احمدنوری مولوی محمداخلاص برکتی مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء مرکزی دولت افغانستان

## په اجاره كي زكوة پرمؤجردى كه پرمستأجر؟

پوښتنه:-له محترموعلماء كراموڅخه داپوښتنه كوم چي يوسړى په اول پسرلي كى چمن اجاره كړي مثلاً په (٢٠) لكه اوكټه (٢٩٠) لكه شي زكوة يي پرمؤجردى كه پرمتسأجر؟

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب حامدا ومصليا

مځكه چي اجاره كړائى شى نوكه په اجرة كامله يعنى اجرمثل سره وى چي هغه د دغې زمكې پوره اوموافق اجر وى نوعشربيي پرمؤجريعنى مالك دزمكې دى اوكه اجاره په اجرمثل سره نه بلكه په كم سره وى نوعشربيا پرمستاجر يعنى اجاره داردي.

هكذافى ردالمحتار ج٢ص٦٠ ط رشيديه كوئته وتنقيح حامدية ج١ص١٠) فان امكن اخذالاجرة كاملةيفتى بقول الامام والافبقولهمالمايلزم عليه من الضرر الواضح الذى لايقول به احد.

مولوی نداحمد اسحاقی

## داجارې زكوة پرمؤجردى كه پرمستأجر؟

پوښتنه- كه زمكه اجاره كړله شى دحاصلوپه وخت كي عشرپرچاباندي دى آياپرمؤجردى كه پرمستأجر؟

(المستفتى مولوى احمدالله فانى)

پوره اوموافق اجر وی نوعشربي پرمؤجریعنی مالک دزمکې دی اوکه اجاره په اجرمثل سره نه بلکه په کم سره وی نوعشربیا پرمستأجر یعنی اجاره دارِدی.

هکذافی ردالمحتار ج۲ص۶۰ ط رشیدیه کوئته والفتاوی تنقیح الحامدیة ج۱ص۱۰) فان امکن اخذالاجرة کاملة یفتی بقول الامام والافبقولهما لمایلزم علیه من الضرر الواضح الذی لایقول به احد . والله تعالی اعلم .



مولوی احمدنوری عفی عنه مولوی محمداخلاص برکتی مولوی عبدالحکیم عفی عنه مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان داسلامی امارت دمرکزی دارالافتاء رئیس

## داهل ذمه په املاکوکي عشردی که خراج ؟

## دولتي یاغیردولتي املاک چي په اجاره ورکول شي عشريي پرمؤجردی که پرمستأجر؟اودولتي املاک چي حکومت پخپله کرلي وی عشرلري اوکنه ؟

پوښتنه جناب محترم دتمیز عالی رئیس صاحب السلام علیکم

موردعشر دټولولو اداره دلاندی موضوعاتو سره مخامخ یوکه لطفا دهغوی په باب شرعی فتوی راکړئ ډیر ممنون به سو هغه املاک چې داهل ذمه وویعنی (هندوانو) دی په هغوکی عشرسته اوکه خراج اوکه دوار اندازه ئ څومره وی هغه شخصی املاک چې په اجاره ورکول شو ی وی آیا عشرئ پرمؤجراوکه پرمستاجردی هغه املاک چې دولتی وی او بیا په اجاره ور کول شوی وی عشرئ پرچا دی همدارنګه هغه املاک چې دولتی وی اودولت پخپله کرلی وی آیا عشرلری که نه اوڅومروی که لطفاد دغه درو ګونو موادو په باب شرعی فتوی راکړی ډیره به ښه وی والسلام-

(الحاج ملا حمید الله اخندزاده دعشرمسؤل)

ریاست دارالا فتاء درمورد فتوی شرعی بدهند والسلام

(مولوی خلیل الله رئیس عالی تمیز ۱۱\۵\۷۵)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون الملک الوهاب

هغه املاک چې داهل ذمه (هندوانو) دی په هغو کی خراج ده بیاخراج په دوه قسمه ده یو خراج مقاسمة ده چې واجب بعض د هغه مال خارج وی لکه خمس وغیره بل خراج موظف ده چې واجب یو شئ وی پرذمه باندی چې واجب وی په مجرد قدرت علی الا نتفاع بالارض سره اگرکه خارج موجود نه وی هم حضرت عمررضی الله عنه په خراج موظف کښی وضع کړی وه په هرجریب چې اوبه ورته رسیږی یوه پیمانه دغنمو اویودرهم اویایوه پیمانه دور بشو اویو درهم اوپه هر جریب دتر کاری وضع کړی وی پنځه روپی اوپه هرجریب دونو دخرماد انګور وغیره چې ونی یو بل ته متصلی ولاړی وی وضع کړی وی لس روپی (عشرة دراهم ) اوپه هغو اشیاء کښی چې مقرری دحضرت عمررضی الله تعالی عنه نه وی نوپه هغو کښی به مطابق دطاقت خراج وی اوغایه دطاقت نصف دخارج ده پس زیادة په نصف باندی په هغو اشیاء کي او هم په خراج مقاسمة کی جائز نده اوهمدارنګه جائز نده زیادة په مقرری دحضرت عمررضی الله عنه باندی په هغو اشیاء کي چې هغه مبارک مقرری کړی ده هغه املاک چې په اجاره ورکول شی عشرئ پر مؤجرده که ده پوره اجرة اخستلو اوپرمستاجرده که مؤجر کم اجرة څنی اخستلو هغه املاک چې دولتی وی او په اجاره ورکول شی په هغو کښی اجرة ده چې دغه اجرة بیاپه حق کی دامام خراج ده که دراهم وي خراج موظف ده اوکه بعض خارج وی نوخراج مقاسمة ده۔ هغه املاک چې دولتی وی اودولت پخپله کرلی وی په هغو کښی عشرشته؛

( قوله وخراج ان اشتری ذمیّ ارضا عشرية من مسلم)ای یجب الخراج لان فی العشر معنی العبادة والكفر ينافيها ولا وجه الی التضعيف لان الكلام فی غير التغلبی بخلاف الخراج لانه عقوبة والاسلام لاينافيها كالرق وبه اندفع قول ابی يوسف من تضعيف العشر عليه وقول محمد ببقاء العشر البحر الر ائق ج ۲ ص ۴۱۶ ط رشيديه كوئته )

(وهو) ای الخراج (نوعان خراج مقاسمة ان كان الواجب بعض الخارج كالخمس ونحوه وخراج وظيفة ان كان الواجب شياء فی الذمة يتعلق بالتمكن من الا نتفاع بالارض كماوضع عمر رضی الله عنه علی السوادلكل جريب )هوستون ذراعا فی ستين بذراع كسری سبع قبضات وقيل المعتبر فی كل بلدة عرفهم وعرف مصر التقدير بالفدان فتح وعلی الاول المعول بحر (يبلغه الماء صاعا من بر او شعير ودرهما)عطف علی صاع من اجودالنقود زيلعی (ولجريب الر طبة خمسة دراهم ولجريب الكرم اوالنخل متصلة )قيد

فيهما (ضعفها ولما سواه ) مماليس فيه توظيف عمر( كزعفران وبستان ) هو كلّ ارض يحوطها حائط وفيها اشجار متفرقة يمكن الزرع تحتها فلو ملتفة اى متصلة لا يمكن زراعة ارضها فهو كرم ( طاقته و غاية الطاقة (نصف الخارج) لان التنصيف عين الانصاف( فلايزاد عليه) فى خراج المقا سمة ولافى الموظف على مقدار ماوظفه عمر رضى الله تعالى عنه الخ( الدر المختار على هامش ردالمحتار ص٢٨٤ ط رشيديه كوئته )فان امكن اخذالاجرة كاملة يفتى بقول الامام والا فبقولهما لما يلزم عليه من الضرر الواضح الذى لايقول به احد والله تعالى اعلم ١٢( ردالمحتار ج٢ ص٦٠ ط رشيديه كوئته ) اودغه تطبيق په مابين دقول دامام صاحب اودقول دصاحبينو كښى په امدادالفتاوى ج٣ ص٥٨ كښى هم ذكرشوى د ى قلت وهذانوع ثالث يعنى لاعشرية ولاخراجية من الاراضى تسمى ارض المملكة واراضى الحوز وهومامات اربابه بلا وارث وال لبيت المال او فتح عنوة وابقى للمسلمين الى يوم القيامة وحكمه على مافى التاتارخانيه انه يجوز للامام دفعه للزراع باحد طريقين اما باقا متهم مقام الملاک فى الزراعت واعطاء الخراج واما باجارتهالهم بقدرالخراج فيكون المأخوذفى حق الامام خراجا ثم ان كان دراهم فهو خراج موظف وان كان بعض الخارج فخراج مقاسمة واما فى حق الاكرة فاجرة لاغير الخ( ردالمحتار ج٣ص٢٨٠ ط رشيديه كوئته )فى التاتارخانية السطان اذدفع أراضى لامالک لها وهى التى تسمى الاراضى المملكة الى قوم ليعطوالخراج جاز وطريق الجواز احد شيئين اما اقامتهم مقام الملاک فى الزراعة واعطاء الخراج اوالاجارة بقدرالخراج ويكون الماخوذمنهم خراجا فى حق الامام اجرة فى حقهم اه( ردالمحتارج٢ ص٦٠ ط رشيديه كوئته ) اودغه عبارة په منحة الخالق على البحرائق ج٥ ص ١٧٨ ط رشيديه كوئته كښى هم ذكر شوى ده په اراضى دبيت المال او آراضى دوقف كى عشر شته په (ردالمحتار ج٣ ص٢٧٩ط رشيد يه كوئته )كى په ډ يرو دلائلو سره عشر په اراضى دوقف كى ثابت كړى ده اوپه الفتاوى تنقيح الحامد يةج٢ص١١٠ ط مكتبه حبيبه كوئته كښى ليكلى:

قدتقرر اواراضى بيت المال يسلک بها مسالک ارض الوقف خيرية من العشر والخراج الخ ١٢



مولوى نورمحمد ثاقب دافغانستان داسلامى امارت ددار الافتاء رئيس

## په بيع وفاکي زکوة پر بائع دی که پر مشتری

پوښتنه: يوه سړی ځمکه په بيع وفا رانيولې د حاصلاتو زکوة يي پر مشتری (رانيونکي) دی او که پر بائع (خرڅونکی) دی

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب حامدا ومصليا

په بيع وفا کي زکوة پر مشتری دی که چيری کښت په کرلی وو او تاوان يي ځمکی ته نه رساوه او که چيری و ځمکی ته تاوان رساوه نو زکوة يي بيا پر اصلی مالک د مځکی کيږی هکذافی ردالمحتار على الدرالمختار ج۲ ص۵۹ ط رشيديه کوټه وفی البزازية بعد التقابض ان لم تنقصها الزراعة فالعشر على المشترى وان نقصها فعلى البائع الخراج والعشر والله تعالى اعلم بالصواب مولوی ندامحمد الحقانی

## دغرونو او صحراګانو په ميوه کي عشرشته او کنه

محترم دتميزرياست!

دليک لرونکی ورور سره دبادغيسی دپسته لغ په باب مفاهمه اوداستفتاء تحريری شرعی فتوی په هکله لطف وکړی- والسلام

(اميرالمؤمنين ملامحمد عمرمجاهد)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب ومنه الصدق والصواب دغرو نو اوصحراګانو په ميوه جاتو کښی عشرشته که حماية کوی امام داهل حرب اوبغاة اوقطاع الطريق څخه اوکه امام ئي حماية نکوی نوبيا پکښی عشر نشته اودابيا پشان دصيدده اوبله خبره داده چې ميوه جات دغرونو مباح دی دټولو مسلمانانو دپاره نو چې کله ورسيږی دامیوه جات نوبيا جائزنه ده، نه امام اونه بل چالره چې منع کړی مسلمانان له دی ميوه جاتو څخه:

(وكذا) يجب العشر (فی ثمرة جبل او مفازة ان حماه الامام) لانه مال مقصود لا ان لم يحمه لانه كالصيد (قوله فی ثمرة جبل) يدخل فيه القطن لان الثمر اسم لشئ متفرع من اصل يصلح للاكل واللباس كمافي الكرماني وفی القاموس انه اسم لحمل الشجر والمشهور مافی المفردات انه اسم لكل مايستطعم من احمال الشجر ويجب العشرولوكان الشجر غير مملوك ولم يعالجه احد وخرج ثمرة شجر فی دار رجل ولو بستانا فی داره لانه تبع للدار كذافی الخانية ط عن القهستانی (قوله ان حماه الامام) الضمير عائد الى المذكور وهو

العسل والثمرة والظاهران المراد الحماية من اهل الحرب والبغاة وقطاع الطريق لاعن كل احد فان ثمر الجبال مباح لايجوز منع المسلمين عنه وقال ابويوسف لاشئ فيمايوجد فی الجبال لان الارض ليست مملوكة ولهما ان المقصود من ملكها النماء وقدحصل آه( الدرالمختارورالمحتارج٢ص ۵۳ ط رشيديه کوئته )صاحب ردالمحتارداخپل عبارت دحاشية الطحطاوى على الدر المختار ج١ ص٤١٨ ط دارالمفرفة بيروت څخه ئ نقل کړی ده اوطحطاوی بیاداعبارت دحاشية الحلبي على الدر المختار څخه رانقل کړی ده ١٢

مولوی عبدالحکیم عفی الله عنه مولوی محمد مسلم حقانی مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان داسلامی امارت ددار الافتاء رئیس

## په لرګیوکي عشرشته اوکنه

پوښتنه :محرم رئيس صاحب دارالافتاء السلام عليكم ورحمة الله محترمه مونږدعشر مسئولينوته د عشر په باب معلومات راکړی چی لرګی چی خرڅ کړل شی په دوه سوه لکه افغانی یادوه لکه کلداری نو عشرپکښی شته اوکنه

(المستفتى ملانعمت الله اخند )

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون الله الملک العلی الاعلی

محترم مستفتی صاحب دعشردمسؤولينو اونورو عامو مسلمانانو دشرعی معلوماتو لپاره دلرګودعشرپه باب به مورږداعرض اوګذارش وړاندی کړو چې لرګی پردوه ۲ ډوله دی یوهغه ډول لرګی دی چې دمځکی څخه واخستل شی اوټول کړی شی چې په هغه لرګوسره قصد اواراده داستغلال يعنی دګټی اونما دمځکی شوی وی نو په دغه قسم لرګوکی عشرلازم دی اوبل هغه ډول لرګی دی چې پردغه مذکور صفت نه وی یعنی چې په هغه سره قصد اواراده داستغلال دمځکی نه وی شوی نوپه دغه دوهم قسم لرګوکی عشرواجب اولازم نه دي داول قسم لرګو مثال لکه په يو مځکه کی نهال شانی وسی په دی غرض اوقصد چې ددغه نهالانو څخه چې غټ شي لرګي به اخستل کيږی او بیا به خرخيږی اويابه په بله فائده راوستل کيږی ددوهم قسم لرګومثال چې عشر پکښی لازم نه دي لکه ديومځکی څخه لرګی ټول کړل شی چې هغه

داسی نه وی داستغلال دمځکی څخه نه شمیرل کیږی بلکه ضمنا اوتبعا په ګټی دمځکی کی راشی لکه ددرختو ښاخلی چې پریکړی شی:

فلاعشر فی الحطب والحشیش والقصب والطرفاء والسعف لان الاراضی لاتستنمی بهذه الاشیاء بل تفسدها حتی لو استنمی بقوائم الخلاف والحشیش والقصب وغصون النخل اوفیها دلب اوصنو بر ونحوها وکان یقطعه ویبیعه یجب فیه العشر کذافی محیط السرخسی( الفتاوی الهندیة ج۱ ص۱۸۶ ط دارالاشاعة قندهار) وایضاً فی هذه الصفحة ولاعشرفیما هوتابع للارض کالنخل والاشجاروکل مایخرج من الشجر کالصمغ والقطران لانه لا یقصد به الاستغلال کذافی البحرالرائق ولوجعل ارضه مشجرة اومقصبة یقطعها ویبیعها فی کل سنة کان فیه العشر( الفتاوی الخانیة علی هامش الفتاوی الهندیة ج۱ ص ۲۷۶ ط دارالاشاعة قندهار ) (قوله حتی لو اشغل ارضه بها یجب العشر )فلواستنمی ارضه بقوائم الخلاف وماشبهه اوبالقصب اوالحشیش وکان یقطع ذلک ویبیعه کان فیه العشر غایة البیان ومثله فی البدائع وغیرها (ردالمحتار ج۲ ص۵۵ ط رشیدیه ) واللّٰه تعالی اعلم بالصواب



مولوی عبدالحکیم عفی الله عنه مولوی نذاحمد احقانی مولوی محمود میوندوال

مولوی مفتی نورمحمد ثاقب رئیس عمومی دارالافتاء مرکزی ومعین قضائی ستره محکمه دولت اسلامی طلباء افغانستان

## په پروړ کې عشرسته اوکنه

پوښتنه جناب محترم رئیس صاحب دارالافتاء هغه مځکی چې دغنموکښتونه کړی دهغه حاصلاتو څخه بیځ عشرونه اخستل کیږی داسی وقت اوزمان راسی چې په اصطلاح پروړ کاوی په پوره قیمت خرخیږی چې دهغه دقیمت څخه عشراخستل کیږی که څنګه هیله ده چې شرعی قاطع امرراعطاءکړی په احترام

(المستفتی ملاحمیدالله اخندمسئول عشروزکوة )

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب ومنه الصدق والصواب

مسئله داده: چې په کښت د خرما کی اوپرورکی زکوة نشته او که پرور مقصود کرځیدلی وونوبیازکوة شته اومقصودوالی دپرور په هغه وخت کی دی چې تردانو ترپخید و مخ کی واخستل شی اوپه ډیر والی دقیمت سره مقصودوالی دپرور نه دي :

ولایجب العشر فی التبن ولافی الحطب والحشیش والقنب والصنوبر والقصب الفارسی ولافی سعف النخل ولافی الطرفاء ولافی الدلب وشجرالقطن والباذنجان ( الفتاوی قاضیخان بهامش الفتاوی الهندیة ج۱ ص ۲۷۶ ط دارالاشاعة العربیه قندهار ) الافیما لایقصد به استغلال الارض (نحوحطب وقصب) فارسی( وحشیش )وتبن وسعف وصمغ وقطران وخطمی واشنان وشجر قطن وباذنجان وبزربطیخ وقثاء وادویة کحلبة وشونیز حتی لو اشغل ارضه بها یجب العشر (قوله وتبن) بالباء الموحدة قال فی الفتح غیر انه لوفصله قبل انعقاد الحب وحب العشر فیه لانه صار هوالمقصود وعن محمد فی التبن اذاییبس العشر( الدر المختار وردالمحتار ج۲ ص۵۵ ط رشیدیه کوئته ) والله اعلم بالصواب



مولوی محمد اخلاص برکتی

احمد نوری عفی عنه مولوی محمود میوندوال

مولوی مفتی نور محمد ثاقب

## عشر دمصارفو تر یستلوو روسته وی او که مخکي

محترم ددارالافتاء مقام ته السلام علیکم پس له سلامه عرض دادی چې غنموجواریواو نورودانوکښی حکم مفتی به په څه شان دی یعنی لود لوګرو اومصرف دماشین کښی هم عشر پر مالک دمخکی دی یااول باید ذکرشوی مصارف تری لیری شی اوبیاعشرورکړی شی په دی حصه کي که رساله چاپ شی نودیر خلک به له تشویش څخه خلاص شی اوخاص که موو سه وی نود شرعی حکم سره موږ پوه کړی والسلام

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب منه والصدق والصواب

مسئله داده دحاصلاتو دکښت عشر چې ورکول کيږي نو اولا به دټول حصلاتو دکښت چې مصارف ئ نه ځني ايستل شوي وي عشربه ورکوي ثانيا به بيا مصارف ورکول کيږي :

(بلا رفع مؤن) اي كلف(الزرع) وبلااخراج البذرلتصريحهم بالعشر في كل الخارج (الدرالمختاربهامش ردالمحتارج۲ ص۵۶ ط رشيديه کوئټه ) وفي مسقى مطر اوسيح اي ماء اودية ... ونصفه (في مسقى غرب اودالية بلا رفع المؤن ) اي يجب العشر في الاول ونصفه في الثاني بلارفع اجرة العمال ونفقة البقرو كرى الانهار واجرة الحافظ ونحوذلک (وبلااخراج البذر ) فان شراح الهداية وغير هم صرحوابو جوب العشر في كل الخارج (دررالحكام ج۱ ص۱۸۷ )ولا تحسب اجرة العمال ونفقة البقر وكرى الانهار واجرة الحافظ وغيرذلک فيجب اخراج الواجب من جميع مااخرجته الارض عشرا اونصفا كذافي البحرالرائق( الفتاوى الهندية ج۱ص۱۸۷ ط دارالاشاعة قندهار ) قال رحمه الله ( لاترفع المؤن اي في كل مااخرجته الارض لاتحتسب اجرة العمال ونفقة البقروكرى الانهارواجرة الحافظ وغيرذلک (تبيين الحقائق ج۲ ص ايچ ايم سعيد) وهكذافي فتح القدير ج۲ ص۱۹۴) والله اعلم بالصواب.







احمد نوری عفی عنہ العبد الاحقر نذراحمد الحقانی مولوی محمود میوندوال مولوی مفتی نورمحمد ثاقب

**عشردمصارفوتراخراجولووروسته وی که مخکي؟**

دافغانستان دعلماءدشورى ددارالافتاء عالي مقام ته السلام عليكم ورحمة الله وبعد محترمه ازه ملاجمعه خان دقشله جديد په مجبورآبادکي ملايم دمحل خلګ ټول دولتي کارکونکي او په دولتي مځکه پراته دي اوهم کومي زراعتي مځکي چې کرى هغه هم دولتي دي نوکله چې دزکاة مسئله مابين ته سى دوى لومړي ټول مصارف ځني وباسى بيا دپاته مبلغ زکاة باسى نو پوښتنه داده چې زکاة بايد دسره څخه ويستل سى او که د

مصارفو څخه وروسته هیله ده معلومات راته راکړی و السلام-(المستفتی ملا جمعه خان)

بسم الرحمن الرحیم

الجواب ومنه التوفیق علی الصواب

هرکله چې عشرورکول کیږی نو مصارف به نه څنی ایسته کیږی بلکه دټوله کښت څخه به عشرورکول کیږی: (بلارفع مؤن)

ای کلف (الزرع) وبلااخراج البذرلتصریحهم بالعشر فی کل الخارج (الدر المختار بهامش ردالمحتارج۲ ص ۵۶ ط رشیدیه کوئټه )ولاتحتسب اجرة العمال ونفقة البقروکری الانهارواجرة الحافظ وغیر ذلک فیجب اخراج الواجب من جمیع ماا خرجته الارض عشر اونصفا کذافی البحر الرائق (الفتاوی الهندیة ج۱ ص۱۸۷ )وهکذا فی الفتاوی تنقیح الحامدیة ج۱ص۱۰ط مکتبه حبیبیه کوئټه )

په دولتی مځکوکی چې دولت پخپله کرلی وی اوپه اجاره یې نه وی ورکړی عشرسته اوکه ي په اجاره ورکړی وی نو په هغه کی اجرة دی چې دغه اجرة په حق کی دامام خراج دی

وکذا ملک الارض لیس بشرط للوجوب لوجوبه فی الاراضی الموقوفة ( الفتاوی الهندیة ج۱ ص۱۸۵ ط دارالاشاعة قندهار ) نعم قدتقرران اراضی بیت المال یسلک بها مسالک ارض الوقف خیریة من العشرو الخراج (الفتاوی تنقیح الحامدیة ج۲ ص ۱۱۰ ط مکتبه حبیبیه کوئټه ) واستدل علی اثبات العشر فی اراضی الدولة فی (ردالمحتار ج۳ ص۲۷۹ ط رشیدیه کوئټه ) بدلائل کثیرة وفی التاتارخانیة السلطان اذادفع اراضی لا مالک لها وهی التی تسمی الاراضی المملکة الی قوم لیعطوا الخراج جازوطریق الجواز احد شیئین اما اقامتهم مقام الملاک فی الزراعة واعطاء الخراج اوالاجارة بقدرالخراج ویکون الما خوذ منهم خراجا فی حق الامام اجرة فی حقهم... آه( ردالمحتار ج۲ ص۶۰ ط رشیدیه پاکستان )و اللّٰه اعلم وعلمه اتم واکمل

مولوی احمدنوری عفی عنه مولوی ندامحمد الحقانی

## خراج له مصارفوڅخه مخکې وی

## که وروسته اودبزګرلپاره له خراج څخه پرته څه شئ شته اوکنه

جناب محترم رئیس صا حب دارلافتاء دتحریک مقدس ترکنترول لاندی په اکثره ولایاتو کی دهندوانو مځکی باغونه جایدادونه وجود لری چې د نوموړو دحاصلاتو څخه د مقاسمی خراج اخستل کیږی هغه مځکی چې مسلمانانو په اجاره څنی اخیستی وی اویا بزګرانوته ورکړه سوی وی اوپه زرولکونو افغانی مصارف ئ په روزنه کی لګیدلی وی خراج دعشر په قیاس دټولو مصارفو مقدم یاځنګه اجراء ات تر سره کړو مفصل واضح

شرعي امر ته انتظار ليدل کيږي همد غه رنګه دبزګر دحصى په هکله معلومات غوارو
چې څه شى څنى علاوه ورڅخه اخستل کيږي که څنګه ؟
(المستفتى ملاحميد الله اخند مسئول عشروزکوة )

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون الملک العلى الاعلى

داولى پوښتنى په جواب کى به موږ داوو ايو په کومک دلوى اوتوانا خداى جل جلا له
سره چې خراج مقاسمه کوم چې تاسو په استفتاءکى ذکر کړي دى داپه ټولو احکاموکى
په مثل د عشر دى نو عشر خو مقدم دى ترټو لو مصارفو نو خراج مذکور په استفتاءکى
هم مقدم دى ترټو لو مصارفو ليکن په يوڅواحکاموکى مخالف دى دعشر څخه يودا چې
مصارف دخراج مغايردى دمصارف دعشر څخه بل دا چې حصص دخراج مفوض دى راى
دامام المسلمين لره او حصص دعشر شرعى دى تعلق په شريعت پورى لرى لکه شارع ئ
تعين کړي دى چې هغه عشر اونصف عشردى اوبل دا چې امام اونائب د ده لره جائزدى
چې خراج معاف کړى ولى په شرط د دى خبرى چې دامعاف کړى سوى به داهل څخه
دمصرف دخراج وى اوکه مصرف نه وى نوبيادى خيرات کړى او په عشر کى هيڅ چا لره
داحق نه دي حاصل چې معاف کړى

قال الخيرالرملى خراج المقاسمة كالموظف مصرفا وكالعشر مأخذالافرق فيه بين الرطاب
والزرع والكرم ونخل المتصل وغيره فيقسم الجميع على حسب ما تطيق الارض من النصف
اوالثلث اوالربع اوالخمس وقد تقرران خراج المقاسمة كالعشر لتعلقه بالخارج ولذايتكرر بتكرر
الخارج فى السنة وايضاً يفارقه فى المصرف فكل شئ يؤخذ منه العشر اونصفه يو خذمنه خراج
المقاسمة وتجرى الاحكام التى قررت فى العشر وفاقاوخلافا ردالمحتار ج۳ص۲۸۴ وهكذا فى
الاختيار لتعليل المختار ج۴ص۱۴۴ وهكذا فى حاشية الطحطاوى ج۲ ص۴۶۵ ط دارالمعرفت
بيروت)وتقديره مفوض الى راى الا مام ردالمحتا ر ج۴ ص۱۸۴) (ترک السلطان) اونائبه
(الخراج لرب الا رض ) بان اخذه منه ثم اعطاه اياه جاز عند الثانى وحل له لو مصرفا والاتصدق به
به يفتى الخ( الدرالمختار على ها مش رد المحتار ج۳ ص۲۸۹ ط رشيديه کوئته )

ددوهمى پو ښتنى په جواب کى داويل کيږي چې دبزګرد حصى دخراج څخه علاوه بل
شى نه اخستل کيږي بس هم دغه دخراج حصه ورلره کا فى کيږي

(ولايؤخذ العشر من الخارج من ارض الخراج ) لانهما لايجتمعان خلا فا لشا فعى الدر المختار على هامش ردالمحتار ج ٣ ص٢٨٩ والله اعلم وعلمه اتم







مولوى احمد نورى عفى عنه مولوى محمود ميوندوال مولوى نورمحمد ثاقب رئيس عمومى دارالافتاء مركزى امارت اسلامى افغانستان

## دموټرانو پرتر ميم اوتيلو اونوروارتيا ودعشر مصرفول څه حكم لري

پو ښتنه څه وايي علماء ددين مبين اومفتيان ددارالافتاء

هغه عشر ونه چې راجمع شي بياځ عاملين اوعا شرين پرهغو شيانو لكه موټر ان اومو ترسي كلان مصرف كولاشي چې هغه په ترميم شي اوكه څنگه ؟اوخريداري دروغنياتود موټرانو په كو لاشي اوكه نه؟اودغه عاملين دخپلو احتيا جاتو په لحاظ په خپلو اوطا قو كنبى مصر ف څينى كولاشي اوكه نه؟اوپه دغه عشر وباندى بغيرد عاملينو دحكومت نور موظفين موټران په رانيو لاى شي او كه نه بينوا وتوجروا

(ملاحميد الله مسئول عمومى عشروزكوة )

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب وهو ملهم الصواب:

مصرف دعشر عين مصرف د زكوة ده چې په مصرف كنبى به هم فقروى اوهم قبض اود موټرانو اوموټرسيكلانو په رانيولواوياد هغه په ترميم كولو كنبى اويادروغنياتو په رانيولو كنبى اويادنور وفوجى وسائلو په رانيو لو كنبى قبض نشته لهذا عشر پدى شيانو خرچ كول درست نه ده اوداشيان مصالح دمؤمنينودى چې په دى كنبى صلاح دمؤمنينوده او په كو مو شيانو كى چې صلاح دمؤمنينووى په هغو شيانو مصرف اوخرچ دخراج اوجزية څخه كيږى نو ځكه پكارده چې په دى ذكر شووشيانو كنبى دبيت المال دخراج اوجزية څخه رقم خرچ شي البته كه رقم دخراج اودجزيه موجود نه وى نوامام له عشر څخه قرض وركولاشي چې خرچ شي په دغه شيانو خودقرض اد ا ضرورى دى او عاملين او عاشرين كه څه هم اغنياء وى بياهم دوى خرچ كولاى شي دعشر اوزكوة څخه په

قدرد كفاية اودعمل( متوسط مقدار) چې كافي كيږى دد وى اود اعوانوددوى دپاره په موده دتلواوراتلو كنبى اوحرام د ه پردوى اتباع دخواهشاتو په خوراكونو كنبى اوپه څنبلوكنبى اوپه لباس كى څكه دامحض اسراف ده اوپه امام باندى ضرورى ده چې داسى اشخاص راه انتخاب كوى ددى كارد پاره چې راضى كيږى په متو سط مقدار بدون داسراف اودتقتير څخه په( الدر المختار على هامش ردالمحتارج٣ص٣٠٢ ط رشيديه كوئته )كنبى په بيان دمصرف دخراج اودجزيه كنبى ليكلى دى:

(مصالحنا كسد ثغور وبناء قنطرة وجسر وكفاية العلماء )وبه يدخل طلبة العلم فتح( والقضاة والعمال) ككتبة قضاة وشهود قسمة ورقباءسواحل (ورزق المقاتلة وذرار يهم )الخ

او په الفتاوى الهند يةج١ ص١٩٠ ط دارالاشاعة العربية قندهار ) كى ليكلى دى:

والثالث الخراج والجزية وماصولح عليه بنونجران من الحلل وبنوتغلب من الصدقة المضاعفة وماأخذه العاشر من المستأمنين وتجار اهل الذمة كذافى السراج الوهاج وتصرف تلك الى عطايا المقاتلة وسدالثغور وبناء الحصون ثمة والى مراصدالطريق فى دارالاسلام حتى يقع الامن عن قطع اللصوص الطرق والى اصلاح القناطر والجسور كذا فى محيط السرخسى والى كرى الانهار العظام التى لاملك لاحد فيها كالجيحون والفرات ودجلة كذافى شرح الطحاوى والى بناء الرباطات والمساجد وسد البثق ( معناه كسرشط النهر ) وتحصين مايخاف عليه البثق والى ارزاق الولاة وأعوانهم والقضاة والمفتين والمحتسبين كذافى محيط السرخسى والمعلمين والمتعلمين كذافى السراج الوهاج ويصرف الى كل من تقلد شيئا من امور المسلمين والى مافيه صلاح المؤمنين كذافى محيط السرخسى ) وقال الشرنبلا لى فى رسالته ذكروانه يجب عليه ان يجعل لكل نوع منهابيتا يخصه ولا يخلط بعضه ببعض وانه اذااحتاج الى مصرف خزانة وليس فيها ما يفى به يستقر ض من خزانة غيرها ثم اذا حصل للتى استقر ض لها مال يرد الى المستقرض منها الا ان يكون المصروف من الصدقات اوخمس الغنا ثم على اهل الخراج وهم فقراء فانه لايرد شيئا لاستحقا قهم للصد قات بالفقروكذا فى غيره اذاصرفه الى المستحق اه ردالمحتار ج٢ ص٦٣ ط رشيديه كوئته )

اودغه اخيرى بيان په الفتاوى الهندية ج١ص١٩١ كنبى اوپه البحرالرائق ج٥ ص ٢٠٠ ط رشيد په كوئته ) كنبى هم ذكرشوى ده:

(قوله والعامل ) تقدم تفسيره فى باب العاشر وعبر با لعامل دون العاشر ليشمل السا عى ايضا وقد

منا الفرق بينهما مايكفيه واعو انه بالوسط مدة ذهابهم وايا بهم مادام المال باقيا الا اذا ستغرقت كفايته الز كاة فلايزاد على النصف لان التنصيف عين الا نصاف قيد نابا لوسط لانه لايجوز له ان يتبع شهو ة فى المأكل والمشرب والملبس لانها حرام لكونها اسرافا محضا وعلى الامام ان يبعث من ير ضى بالوسط من غير اسراف ولاتقتير كذافى غاية البيان البحرالرائق ج٢ ص ۴۲۰ ط رشيديه ) (بقدر عمله )مايكفيه واعوانه بالوسط لكن لا يزاد على نصف ما يقبضه (قوله مايكفيه واعوانه ) بيان لقوله بقدر عمله وقد منا انه يعطى مالم يهلک المال والا بطلت عمالته ولا يعطى من بيت المال شيئا كما فى البحر الخ (قوله بالوسط ) فيحرم ان يتبع شهوته فى المأكل والمشرب لانه اسراف محض وعلى الامام ان يبعث من ير ضى بالوسط بحر (قوله لكن الخ) اى لواستغرقت كفا يته الزكاة لايزاد على النصف لان التنصيف عين الانصاف (الدرالمختار ورد المحتار ج٢ص۶۵ ط رشيديه سرکی رو ډکوټه -

مفتی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء مرکزی

**په فقير دعشر قبض كول اوبياورځيني**

**اخستل جائزدى اوكنه اوفقير كه ټينګ شي عشر ځان ته راوګر ځوى نوځه حكم لري؟**

پوښتنه محترم رئيس صاحب دارالافتاء السلام عليكم
محترم مورډيو مدرسې دپاره عشر ټولوى په امردلوى ملاصاحب نودعشر وركو نكو دغاړى خلا صيد و لپا ره مور داحيله كوله چې يونفر باندى به موقبض كړى هغه به بيا مدرسى ته ورو بخښى آيا په دغه حيله سره دهغو غاړي خلاصيږى او كه يا ؟ اوكه دغه كس پردغه عشرټينګ سى آياحق دغه عامل لره سته چې جبرا ځنى واخلى اوكه يا ؟
(استفتاءازجانب منسوبين مدرسه ناحيه كرز ولايت قندهار)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب حامداومصليا حيله دمصرف كولو دزكاة په مسجد باندى اويادمدرسى جوړولو اوپل جوړ ولو باندى دارنګه ده چې زكوة به اول وار په يو مسكين قبض كوى بياكه مسكين په مسجد او يا په مدرسه مصرف كړل صرف كيدل ئ جوازلرى په زورد مسكين ځخه څوک نسى اخستلاى اوثواب ئې دمسكين كيږى ثواب داصلى مالک نه كيږى اوغاړى داصل مالک په خپل زكاة سره خلاصى دى:
هكذا فى الفتاوى الهندية ج۶ص۳۹۲ وكذالک فى جميع ابواب البر التى لايقع بها التمليک كعمارة

المسجدو بناء القناطر والرباطات لایجوزصرف الزكاة الى هذه الوجوه والحيلة له ان يتصدق بمقدارزكاته على فقير ثم يأمره بعدذلک بالصرف والی هذه الوجوه فيكون للمتصدق ثواب الصدقة ولذلک الفقير ثواب بناء المسجد والله اعلم وعلمه أتم



مولوی نذاحمد مولوی حقانی احمدنوری عفی عنه مولوی محمود میوندوال مولوی مفتی نورمحمد ثاقب رئیس عمومی دارالافتاء مرکزی

# کتاب الصوم

## په رؤیت الهلال کي راډیوته اعتبار سته اوکنه

پوښتنه: محترم رئیس صاحب دارالافتاء واعضای شان السلام علیکم ورحمة الله محترما رؤیت هلال رمضان ویاعید باخبار راډیو اعتبار سته یانه؟

بینوا توجروا باالاحترام

المستفتی برادر شما عبدالواحد

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب باسم ملهم الصدق والصواب

خلاصة الجواب: دسعودی درادیو یانورو اسلامی مملکتونودراديوګانو په اعلان سره موږ کولای شو چې ملت ته دروژې خبرورکړو لکن په مراعاة دځو شرائطو سره یودا چې دغه اعلان اوخبردهغه مملکت به په فیصله دعلماء دهغه مملکت وی اوبل دا چې نشر کونکی به ثقه او معتمد خلق وی یعنی دغه نشرکونکی به بی احتیاط اوبی باکه کسان نه وی اوبل دا چې ددغه مذکوره شرائطو پوره تحقیق اوتفتیش به مخ کی (پخوا) ترقبول اوعمل داعلان وی داځکه چې دشرائطو پوره پوره معلومات وشی امداد المفتین ص ۴۷۷ لکن داختر په باره کی دیوی راډیو په اعلا ن سره اکتفاء نه کیږی ترڅو پوری چې لس شلو یعنی ډیرورادیوګانو اعلان نه وی کړی دمختلف استیشنونو څخه ځکه چې دډیروراډیوګانو اعلانونه په نزددعلماء ددیو بند په خبر مستفیض کښې داخل دی اوپه خبر مستفیض سره ساقطیږی شرائط دشهادت چې هغه شرط دی په لیدلو دمیاشتی داخترکی خو په دی شرط چې دمملکت یاشهر مفتی اوقاضی دغه خبر مستفیض تسلیم کړی صرف دعوامو فیصله نوی امدادا المفتین ص ۴۷۸ والله اعلم



مولوی نور محمد ثاقب رئیس دارالافتاء مرکزی دولت اسلامی افغانستان

**درادیوپه اعلان اودجنتری په حساب روژه نیول څه حکم لری**

د افغانستان داسلامی دولت دد|ر الافتاء ریاست السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته
څرنگه چې دروژی مبارکه میاشت راروانه ده مونږ غواړو چې په لنډوالفاظوسره ستاسو
څخه استفتاء وکړو ۱دسعودی درادیو په اعلان سره مونږکولای سوچې خپل ملت ته
دروژی خبرور کړو ۲ چونکه بعض خلق دجنتری دحسابه یاداحتیاط له کبله روژه نیسی
حکم ئ څه شی دی هغه صحیح قوی حکم که مونږته لطفا روښانه کړی څومونږیې
هیوادوالو ته په لنډو الفاظو کښی نشر کړو والسلام -
(مولوی سالمی رئیس حج واوقاف ۱۳۷۵\۱۰\۱۸)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون الملک الوهاب
(۱)دسعودی درادیو یانورو اسلامی مملکتونو درادیو ګانو په اعلان سره مونږ کولای شو
چې ملت ته دروژی خبرورکړو لکن په مراعات دځو شرائطوسره یو داچې دغه اعلان او
خبردهغه مملکت به په فیصله دعلماء دهغه مملکت وی اوبل داچې نشرکونکی به ثقه
اومعتمد خلق وی یعنی دغه نشرکونکی به بی احتیاط اوبی باکه کسان نوی اوبل دا چې
ددغه مذکوره شرائطو تحقیق اوتفتیش به مخ کی( پخوا )ترقبول اوعمل داَعلان وی
داځکه چې دشرائطو پوره پوره معلومات وشی په امداد المفتین ص۴۷۷ کښی لیکلی:
ہلال رمضان کی باری میں جب تصریحات فقہاء مطلع غبار الود ہونی کی صورت مین صرف ایک ثقہ اور معتبر صادق
کی خبر ثبوت کی لئی کافی ہے باقاعدہ شہادت شرعیہ اوراس کی جملہ شرائط ضروری نہیں اس لی ہلال رمضان کی عام
روت کی خبر یا کسی باقاعدہ قاضی مفتی کی سامنی شہادت گرزنی اوراس کی فیصلہ دینی کی اطلاع اگرکس ریڈیو میں
علماء کی فیصلہ کی مطابق ثقہ لوگوں کی انتظام سی نشر کیجایس جس مین مغالطہ دوربی احتیاطی کاخطرہ نہ رہے

تو دوسری شہروں میں جہاں یہ خبر سنی جائی اس کا قبول کرنا اور اس خبر ثقہ کی بناء پر اپنی بستی میں روزہ کا اعلان کردنا جائز ہے لیکن اس پر عمل کرنی اور قبول کرنی سی پہلی اس کی تحقیق ضروری ہے کہ جن نشر گاہوں سی یہ خبر نشر ہو ئی ہی وہاں اس کا معقول انتظام ہے کہ بدون علماء کہ فیصلہ کی کوئی خبر ہلال کی متعلق نشر نہیں کی جاتی اور جبتک اس کی تحقیق نہو ہلال رمضان میں بھی اس کا قبول کرنا درست نہیں[۱]۔

(روت ہلال میں ریڈیائی خبروں کی شرعی حیثیت) اس کے متعلق جو فتوی میری رسالہ کشف الظنون میں چھپا ہوا ہے وہ ہی صحیح اور معمول بہ ہے ہلال رمضان کی خبر میں چونکہ شہادت شرط نہیں اس لے جس جگہ خبر دینے والی کی آواز پہچانی جائے اور اس کا ثقہ ہونا معلوم ہو یا کسی ریڈیو اسٹیشن کی متعلق یقینی ذرائع سے یہ معلوم ہو کہ اس میں خبر ہلال کی اشاعت علماء کے فتوی اوا شرعی ضوابط کے مطابق نشر کی جاتی ہے تو دوسرے شہروں میں اس عمل جائز ہے[۲]۔

امداد المفتین ص۴۷۸ (بحث ریڈیو) ہاں اگر عام روت ہلال یا کسی قاضی مفتی کے سامنے شہادت گزرنے اور اس کے فیصلہ کی اطلاع مختلف شہروں اور مختلف اطراف کے دس بیس ریڈیو نشر گاہوں سے آجائی تو اصطلاح فقہاء میں یہ خبر مستفیض ہو جائے گی جس میں شرائط شہادت ساقط ہو جاتی ہیں ایسی صورت میں ہلال رمضان وہلال

---

[۱] ترجمه دروژی دمیاشتی په اره دفقهاء دخر گندونی سره سم که پر آسمان گرزوی نو یو اخی دیوه ثقه اود معتبر صادق خبر دثبوت کفایت کوی باقاعده شرعی شهادت اودهغه ټول شرطونه ضروری نه دی ځکه دروژی دمیاشتی دعام رویت خبر یا د کوم باقاعده قاضی مفتی ومخته دشاهدی تیریدو اودهغه دفیصله کولو خبر تیاکه په کومه رادیو کی دعلماء دفیصلی سره سمه دثقه خلکو په انتظام خپره شی چی پکی دمغالطی اودبی احتیاطی خطر نه وی نو په نورو ښارو نو کی چیری چي داخبر واوریدل شی ددی قبلول اوددی ثقه خبر په وجه پخپل کلی کي دروژی اعلان کول جائزدی خوله عملی کولو او قبلولو مخکی ددی تحقیق ضروری دی چي دخپرونی له کومو ځا یونو چی داخبر خپور شوی دی هلته ددی معقول انتظام شته چی بی دعلماله فیصلی هیڅ خبردمیا شتی په اره نه خپریږی اوترڅو چی ددی تحقیق نه وی دروژ ی دمیا شتی په اره هم ددی قبلول صحیح نه دی (مرتب)

[۲] (دمیاشتی په لیدنه کی دخبرونو شرعی حیثیت ) ددی په اره چي کومه فتوی زماپه رساله کشف الظنون کی چاپ شوی ده هغه صحیح اومعمول به ده دروژی دمیاشتی په خبرکی خوشهادت شرط نه دی ځکه کوم ځای چی دخبر ورکونکی آواز ور ورسیږی اودهغه ثقه والی معلوم وی یادکوم رادیو استیشن په اره په یقینی وسیلو دامعلوم وی چی په هغه کي دمیاشتی دخبرخپرونه دعلماء دفتوی اودشرعی دقاعدوسره سم کیږی نوپه نوروښارونو کي په دی عمل کول جائزدی لیکن داختر په باره کی دیوی رادیو په اعلان سره اکتفاء نه کیږی ترڅوپوری چی لس شلو یعنی ډیرورادیوګانواعلانونه نه وي کړي دمختلفواستیشنو څخه ځکه چې دډیرورادیوګانواعلانونه په نیزددعلماء دیوبند په خبر مستفیض کی داخل دی اوپه خبرمستفیض سره ساقطیږی شرائط دشهادت چی هغه شرط دی په لیدلودمیاشتی داخترکی خوپه دی شرط چی دمملکت یاشهرمفتی اوقاضی دغه خبرمستفیض تسلیم کړی صرف دعوامو فیصله نه وی

عیدین دونوں میں ریڈیو کی خبر پر عمل اور اس کے مطابق روزہ رکھنا یا افطار کرنا درست ہوگا بشرطیکہ مفتی قاضی اس چیز پر خبر مستفیض تسلیم کرلیں عوام خود اس کا فیصلہ نہ کریں قال شمس الائمة الحلوانی الصحیح من مذهب اصحا بنا ان الخبر اذ استفاض وتحقق فیما بین اهل البلدة الاخری یلزمهم حکم هذه البلدة انتهی آه رسائل ابن عابدین ص۲۰۲ ج۱ (*)

دجنتری دحسابه روژه نیول اوماتول جائز اورواندی جنتری لره هیڅ اعتبارپه شرع شریف کی نشته په (الدر المختار ج ۲ص ۱۰۰ ط رشیدیه )کښی راغلی دی۔

ولاعبرة بقول الموقتین ولو عدولا علی المذهب قال فی الوهبانیة وقول اولی التوقیت لیس بمو جب وقیل نعم والبعض ان کان یکثر آه په ردالمحتار ج۲ ص۱۰۰رشیدیه کی دی بل فی المعراج لایعتبر قولهم بالا جماع ولایجوز للمنجم ان یعمل بحساب نفسه وفی النهر فلا یلزم بقول الموقتین انه ای الهلال یکون فی السماء لیلة کذاوان کانواعدولا فی الصحیح کمافی الایضاح په مجموعة الرسائل لابن عابدین ج۱ ص۲۵۳ کی ذکردی وانه لایعتمد علی مایخبر به اهل المیقات والحساب والتنجیم لمخالفته شریعة نبیناعلیه افضل الصلوة والتسلیم-

په فتاوی دار العلوم دیوبند کلان ج۲ص۳۷۹ کی لیکلی دی۔

اورجنتری اورتار پر اعتبارنہ کرنا چاہئے (۲)دروژی په باره کی به داووایو چې دشک په ورځ روژه نیول کوم ممانعت نه لری رواده که په قصد اونیت جزما دنفلو سره اوبی دتردد څخه اوبی دنیت دماسوی دنفلو څخه وی بلکه په بعض اوقاتو کی لا مستحب ګرځی روژه نیول په نیت دخالص نفلو سره چې په دغه ورځ موافق شی دده دعادت سره اومرادد خواصو څخه چې فقهاء رحمهم الله ذکر کړی دی هغه څوک دی چې پوهیږی په کیفیت دیوم الشک باندی اوکه نه پوهیده هغه دجملی دعوامو څخه دی۔

په الفقه علی المذاهب الاربعة ج۱ ص۵۵۳ ط داراحیاء التراث بیروت )کښې لیکلی دی۔

وینو ب صومه بنیة التطوع ان وافق الیوم الذی اعتا د صومه ولاباس بصیامه بهذه النیة وان لم

---

(*) ژباړه: (دیری رادیوګانی ) هرکه عام رویت دهلال یادکوم قاضی مفتی ومخته دشهادت تیر بدو اودهغه دلیصلی خبر تیا له مختلفو ښارونو اودبیلا بیلولورو لسو شلو رادیوګانوله خپرونی څا یو نو څخه راشی نودفقهاء په اصطلاح داخبر مستفیض ګرځی چې پکی دشهادت شرطونه ساقطیږی په داسی صورت کی درمضان اواخترانو په میاشته په دوارو کی درادیو په خبر عمل اوله هغه سره سم روژه نیو ل اوماتول صحیح کیږی په دی شرط چې مفتی قاضی پردی شئ خبر مستفیض تسلیم کړی عوام پخپله ددی فیصله ونکړی (مرتب ) (۲) ترجمه: په جنتری اوتارباور نه دی کول پکار

يوافق عادته ويكون صومه باطلا اذاصامه مترددا بين الصوم والافطار الخ اوپه الدر المختار على هامش ردالمحتار (ج۲ ص۹۵ ط رشيديه كوئټه ) كښې ذكردى (ولايصام يوم الشك )هو يوم الثلاثين من شعبان وان لم يكن علة اى على القول بعدم اعتبار اختلاف المطالع لجواز تحقق الرؤية فى بلدة اخرى واما على مقابله فليس بشک ولايصام اصلاشرح المجمع للعينى عن الزاهدى (الا نفلا )ويكره غيره.

او په(ج۲ ص۹۷ )كښي راغلى دى

و(كل من علم كيفية صوم الشک فهو من الخواص والافمن العوام والنية ) المعتبرة هناان ينوى التطوع على سبيل الجزم الخ

اوپه فتاوى دارلعلوم ديوبند كلان ج ۲ ص۳۹۷ كښى راغلى دي:

*اوراگر محض به نيت نفل رکھے تو درست ہے بہر حال اگر چاند کی خبر آگی تو وہ روزہ رمضان شریف کا ہو جاوے گا*[٥]

او په طحطاوى على مراقى الفلاح ص۵۳۴ ط مكتبه انصاريه هرات افغانستنان كښى ليكلى دى:

(وكره فيه ) اى يوم الشک (كل صوم ) من فرض وواجب وصوم ردد فيه بين نفل وواجب( الا صوم نفل جزم به بلاترديدبينه وبين صوم آخر الخ )

داچې ديو مملكت او ښار رويت په بل مملكت اوښار كى معتبرېږى نزدى وى اوكه ليرى وى بناءدى پر مذهب دجمهور علماء چې هغه مذهب مختار او مفتى به دى هغه داچې اختلاف دمطالع لره اعتبارنشته۔

په الفقه على المذاهب الاربعة ج۱ ص۵۵۰ داراحياء التراث بيروت كښى راغلى دى:

اذاثبت رؤية الهلال بقطر من الاقطار وجب الصوم على سائر الاقطار لافرق بين القريب من جهة الثبوت والبعيد اذا بلغهم من طريق موجب للصوم ولاعبرة باختلاف مطلع الهلال مطلقا عند ثلاثة من الائمة وخالف الشافعية فانظر مذهبهم تحت الخط

(۱ ) اوپه الفقه الا سلامى ج ۳ ص ۱۲۵۷ ط رشيديه كوئټه )كښى رغلى دى:

المطلب الثالث اختلاف المطالع اختلف الفقهاء على رأيين فى وجوب الصوم وعدم وجوبه (۱) على جميع المسلمين فى المشارق والمغارب فى وقت واحد بحسب القول باتفاق مطالع القمر اواختلاف المطالع ففى رأى الجمهور يوحد الصوم بين المسلمين ولاعبرة باختلاف المطالع ـ

---

[٥] ژباړه: اوكه صرف دنفلو په نيت ونيسى نو صحيح دى په هر حال كه دمياشتى خبر راغلى نو داروژه درمضان دمياشتى كرځى۔

اوپه ج ۳ ص ۱۲۵۸کښی د ی:

قال الحنفية اختلاف المطالع ورؤية الهلال نهارا قبل الزوال وبعده غير معتبر على ظاهر المذهب وعليه اكثر المشايخ وعليه الفتوى فيلزم اهل المشرق برؤية اهل المغرب اذاثبت عند هم رؤية اولئک بطريق موجب كأن يتحمل اثنان الشهادة اويشهد اعلى حكم القاضي اويستفيض الخبر بخلاف ماااذاخبر اهل بلدة كذ ارأوه لانه حكاية -

اوپه عزيز الفتاوی ص۳۷۲ کښی ليکلی دی:

اوریہ ہی مسلم ہے کہ صحیح اور مختار مذھب کے موافق اختلاف مطالع صوم وفطر میں معتبر نہیں اہل مغرب کی رؤیت سے اہل مشرق پر حکم ہو جاتا ہے اور جبکہ معتبروراجح اورظاھر الروایت ومفتی بہ عدم اعتبار اختلاف مطالع ہے تو پھر اس میں بحث کرنا ھم مقلدین کے لئے بی موقع ہے کیونکہ فقہاء محققین کی توضیح اس کے بارہ میں ہمارے لئے کافی حجت ہے (**) الخ

اوپه اعلاء السنن ج ٦ ص ٢٨٤٢ ط دار الفكربيروت کښی ذکردی:

وفی الدرالمختار واختلاف المطالع ورؤيته نهار اقبل الزوال وبعده غير معتبر على ظاهر المذهب وعليه اكثر المشايخ وعليه الفتوى بحر عن الخلاصة (٢:١٥٢ الدر المختار مع ردالمحتار-

اوپه فتاوی دارالعلوم دیوبند کلان ج٦ ص٣٨٥ کښی راغلی دی:

عند الحنفیۃ اختلاف مطالع کااعتبار نہیں ہے اہل مشرق کی رؤیت اہل مغرب کے لئے لازم ہو جاتے ہے وبرعکس اگر بطریق معتبر ثابت ہو جاوی (***)

(٢) كذافي الشامي الخ اوپه طحطاوی علی مراقی الفلاح ص٥٤٠ ط مکتبه انصاریه هرات کښی ویلی دی ( واذاثبت ) الهلال (فی) بلدة وی (مطلع قطر ) ها(لزم سائر الناس فی ظاهر المذهب وعليه الفتوى ) وهوقول اكثر المشايخ - والله اعلم وعلمه اتم

---

(**) او همدغه خبره منل شوی ده چي دصحيح او مختار مذهب سره سم اختلاف دمطلع په صوم او فطر کي معتبر نه دی دغرب والو په رؤيت وشرق والو ته حکم متوجه کيږی اوکله چي معتبر او راجح ظاهر الرواية اومفتى به دمطالع داختلاف اعتبار نشته نو بيا په دی کی بحث کول زمونږ مقلد ينو لپاره بی ځا یه دی ځکه چي دمحققينو فقهاؤ څرګندونه ددی په اړه زمونږلپاره کافی حجت دی (مرتب )

(***) ژباړه: داحنافو په نزدد مطالع داختلاف اعتبار نشته داهل مشرق رؤيت داهل مغرب لپاره لاز ميږی اوددی برعکس که په معتبره طريقه ثابت شی (مرتب)



مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دار الافتاء مرکزی دولت اسلامی افغانستان مولوی محمد اخلاص برکتی، مولوی عبدالحکیم، مولوی نذاحمد استانی

**پیلوټانو ته دپرواز پر مهال روژه ماتول څه حکم لري؟**

پوښتنه؛جناب محترم مولوی صاحب السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته
صحت مود لوی خدای ﷻ ددرباڔخخه غوارم هیله کوم دلاندی موضوع شرعی مسئله راته بیان کړی – څرنګه چې دافغانستان داسلامی حکومت دهوایی قواوو پیلوټان چې دجهاد په صف کښې ولاړدی دپر وازمعین وخت یې نه دي معلوم هردم امکان ددی شته چې ددولت دښمنان د مجاهد ینو پر صفونو باندی حمله وکړ ی اوهواي فوځ باید خپله وظیفه اجراء کړي او د شرعی اولی الامردخواورته دپرواز امر کیږی اودجسمانی امکاناتو او دمسلکی طبی ډ اکترانو دخوادوږی نس پرواز اویادهغه پیلوټ پرواز چې دسګریټو اونسواروعمل ولری اوروژ ه يې وی امکانات يې ډ یر سته چې طیاره سقوط وکړی اوطیاره اوپیلوټ اومسافرین يي دمینځه ولاړشی هیله کوم شرعی مسئله يي راته توضیح کړی والسلام -

(دهوايي قواوو قومندان برید جنرال غلام جیلانی پیلو ټ )

بسم الله الرحمن الحیم

الجواب بعون الملک الو هاب
اوسنی حالت جنګی حالت ده مثلا اوس دجدی میاشت سنه ۱۳۷۵ هش ده اوبالفعل او یقینی جنګ اوجهاددمفسدینو سره جاری ده با لخصوص په دوه محاذ ونو کښی چې یو محاذ دکابل شمال اوبل محاذ دباد غیس اوفاریاب سر حدات دی اوجهاد چې بالفعل اویقینی وی دروژې پر ېښودل روادی چې دجهاددپاره قوي وی اوبیائي قضائي راوړی په بل وقت کښی اوبالخصوص دهوائي قوی خودیرلوی رول ده په جهاد کښی اوهرپرواز

چې کیږي د مخه د پیلوټ ځان مړولو ته او خوراک کولو ته سخت ضرورت ده او که خوراک ونکړي د یر خطر ددې ده چې طیاره سقوط وکړي او طیاره او پیلوټ اوورسره نور- دمینځه ولاړشي اوداشوي هم دي نوهغه پیلو ټان چې هغوی وظیفه داروی یعنی دهغوی دوظیفې نو بت وی په ورځو درمضان کښې باک نشته چې روژه پریږدی اوبیائ قضائ راوړی بل وقت خو کوشش داپکارده چې خوراک خفیه(پټه) طریقه سره وکړي:

الغازی اذاعلم انه یقاتل العدو فی رمضان وهو یخاف الضعف فله ان یفطر کذا فی محیط السرخسی فان لم یتفق القتال فلا کفارة علیه لان فی القتال یحتاج الی تقدیم الافطار لیتقوی ولاکذلک المرض هکذا فی الظهیریة فی المقطعات( الفتاوی الهندیة ج۱ ص۲۰۸ ط دارالاشاعة العربیه قندهار)

وکذا الرجل اذاکان بازاءالعدو وهو یخاف الضعف علی نفسه فله ان یفطر مقیما کان اومسافرا( فتاوی قاضیخان علی هامش الهندیة ج۱ص۲۰۲ ط دارالاشاعة العربیه قندهار) فالجهاد ولو بدون سفر سبب من اسباب اباحة الفطر للتقوی علی لقاء العدو وعملا بالثابت فی السنة عام فتح مکة (الفقه الاسلامی وادلته ج ۳ ص۱۶۹۹ ط رشیدیه کوئټه)

اوبل دوی مکلف دی دحکومت لخوا په دی کار او حال داچې دروژې سره خشیة دهلاک ده په دی کار کی :

وکذا الذی ذهب به موکل السلطان الی العمارة فی الایام الحارة اذا خشی الهلاک اونقصان العقل کذا فی فتح القدیر الفتاوی الهندیة ج۱ص۲۰۷ ومثله فی البحر الرائق ج ۲ ص ۴۹۲ ط رشیدیه کوئټه

اوبل دا دچاچې دداسې تکلیف نوبت وی چې دهغه سره روژه پریښودل ورته رواوی نو که روژه ئ پر ینښوده مخکښې دتکلیف دظهور څخه هم رواده نوهغه پیلو ټان چې هغوی وظیفه داردی یعنی دهغوی دوظیفې نوبت وی په رمضان کښې او ددوی ګمان وی دجهاد په بمبارو غیره سره هغوی ته رواده پر ینبودل دروژې په داسې طریقه چې دسره یې نیت ونکړي نه داسې چې یو اریې نیت وکړي اوبیایې ماته کړي اوهرکله چې داروژه پریښودله بیابه ئې قضایې راوړی په بل وقت کښې اودابه داسې وی لکه دچا دحمی نوبت وی یاد ښځې دحیض نوبت وی اوروژه پریږدی مخکښې دراتلو ددی تکلیف څخه

وفی الخلاصة لوکان له نوبة حمی فاکل قبل ان تظهر یعنی فی یوم النوبة لابأس به (فتح القدیر ج۲ ص۲۷۲) ومن له نوبة حمی اوعادة حیض لابأس بفطره علی ظن وجوده-
(الفقه الاسلامی ج ۳ص ۱۶۹۹ ط رشیدیه)

رجل له حمی غب فافطر علی ظن ان یومه یوم المرض وماحم فیه کان علیه الکفارة وکذا اذاافطرت المراءة علی ظن ان یومها یوم حیض فلم تحض فی ذلک الیوم کان علیها الکفارة لوجود الافطار فی یوم لیس فیه شبهة الاباحة قال مولا نا رضی الله تعالی عنه هذااذانوی الصوم ثم افطر بعد طلوع الفجر فان لم ینوی الصوم فی ذلک الیوم کان علیه القضاء دون الکفارة( الفتاوی قاضي خان علی ها مش الهندیة ج۱ص۲۰۳)
وفی الخلاصة لو کان له نوبة حمی فاکل قبل ان تظهر یعنی فی یوم النوبة لابأس فان لم یحم فیه کان علیه الکفارة کما لوافطرت علی ظن انه یوم حیضها فلم تحض کان علیها الکفارة لو جود الافطار فی یوم لیس فیه شبهة الاباحة وهذااذاافطر بعد مانوی الصوم وشرع فیه امالو لم ینو کان علیه القضاء دون الکفارة کذافی فتاوی قاضیخان-
(البحر الرائق ج۲ ص ۴۹۳ ط رشیدیه کوئته) والله اعلم.



مولوی احمد نوری مولوی محمد اخلاص برکتی مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء مرکزی دولت اسلامی افغانستان

**درګ اوغوښي په پیچکاري روژه ماتیږي اوکنه**

پوښتنه :محترمینو اساتذؤ ددارالافتاءته السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته وبعد ددی مسئلی پوښتنه لرم چي په ستن (پیچکاري)روژه ماتیږي کنه اودغو ښی اودرګ تفرقه وکړی چي پوه شو- والسلام

(المستفتی ملاحبیب الله)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب ومنه الصدق والصواب

روزه په ستن نه ماتیږي خواه دغوښې اوكه درګ وي چونكې ستن په وقت كښې د مجتهدين اوسابقو مصنفين نه وه نو خود په عباراتو ددوى كې صراحتاًستن نه ده ذكر شوي لكن دعام عباراتو څخه ددوى دامعلوميږي چې په ستن روژه نه ماتيږي لكه علماء دهند اونور عامو مفتيانو چې هم دغه معلوم كړى ده عامه قاعده او قانون په دغه باب كښې چې دعباراتو څخه دمصنفين معلوميږي هغه دادى كچيرى يو شئ وجوف ته ددماغ او يادمعدى ته دطرف دمنافذ داخل شونو ماته ونكى دروژى دى اوكه دطرف مسام ورداخل شو هغه روژه نه ماته وى لكه چې په ردالمحتار ج۲ ص۱۰۲ ط رشيديه كوئته كې راغلى،

(قوله وان وجد طعمه فى حلقه) اى طعم الكحل اوالدهن كما فى السراج وكذالو بزق فو جدلونه فى الاصح (بحر) قال فى النهر لان الموجود فى حلقه اثر داخل من المسام الذى هوخلل البدن والمفطر انما هو الداخل من المنافذ للاتفاق على ان من اغتسل فى ماء فوجدبرده فى باطنه انه لايفطر وانماكره الامام الدخول فى الماء والتلفف بالثوب المبلول لمافيه من اظهار الضجر فى اقامة العبادة لالانه مفطر-

او په طحطاوى ج۱ص۴۵۲ ط دارالمعرفة بيروت كښې راغلى دى لاندى ترد غه قول:

الدرالمختار( اواقطر فى احليله ماء اودهناوان وصل الى المثانة على المذهب قوله وان وصل الى المثانة) عند هما لانه ليس بين المثانة والجوف منفذ ووصول البول من المعدة الى المثانة بالترشح وقال ابو يوسف يفطر لوجود المنفذ بينهما-

نه جوف ددماغ اونه جوف دمعدى درګ اويابدن سره منفذ لرى لكه علماء دديوبند چې ورو سته ترډير تحقيق دغه معلوم كړى ده كچيرى دواء ودماغ يامعدى ته داخل شوه نو هغه دطرف دمسام اوپر طريقه دترشح داخل شوى ده اودغه قسم دخول روژه نه ماته وى ددغه مسئلى تحقيق په كتاب آلات جديده ص۱۵۳ كې شوى دى والله اعلم

مولوى عبدالحكيم عفى الله عنه مولوى محمود ميونډوال

مولوى محمد اخلاص بركتى

# کتاب الحج

## دسردرختو اوتاکانو پرحاصلاتو حج فرض دی که پرقیمت

پوښتنه: دسردرختو اوتاکانو پر حاصلاتو حج فرض دی اوکه پر قیمت یې؟
(ملااحمدشاه دمرکزی محکمی محرر)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون الملک العلی الاعلی

محترم مستفتی صاحب دسردر ختو اوتا کانو حاصلات اوپیداوارچې دسالانه اوکلنی خرچ څخه دیو سړی اودکورنی دهغه زیات نه وی حج فرض نه دي اودجائداد پرقیمت باندی هغه وقت فرضیت دحج ثابتیږی چې دخرچ شوی حصی څخه دزاداوراحلی کفایت کیږی اوباق یې دومره جائدادپاته شي چې دده اودکوردضروریاتوپوره کفایت کوی:
ولوکان عنده طعام سنه ولواکثر لزمه بیع الزائدان کان فیه وفاء کمافی اللباب وشرحه( ردالمحتار ج۲ ص۱۵۶ ط رشیدیه کوئته ) وهکذا فی فتاوی دارالعلوم دیو بند کلان ج۶ ص۵۱۵ وهکذافی التاتارخانیة ج۲ص ۳۲۸ ط قدیمی کتب خانه کراچی ) .
وان کان صاحب ضیاع ان کان له من الضیاع مالو باع مقدار ما یکفی لزاده وراحلته ذاهبا وجائیا ونفقة عیاله واولاده ویبقی له من الضیعة قدرما یعیش بغلة الباقی یفترض علیه الحج والا فلا التاتارخانیة ج۲ ص ۳۲۷ ط قدیمی کتب خانه ) وهکذا فی احسن الفتاوی ج۴ ص۵۴۲ وهکذافی فتاوی دارلعلوم دیوبند کلان ج۶ ص ۵۳۷ وامداد الفتاوی ج۶ ص۱۹۱ واالله تعالی اعلم



مولوی احمد نوری عفی عنه مولوی محمود میوندوال مولوی نور محمد ثاقب رئیس دارالافتاء مرکزی امارت اسلامی افغانستان

## دحاجیانو ومعلمینو اوډاکټر انو ته دحاجیانوله پیسو څخه ورکول څه حکم لری

محترم ددارالافتاء لوی ریاست څرنګه چې دمعمول اوضرورت په منظور دافغانستان داسلامی امارت دحجاجو لپاره څو تنه معلمین اوډاکتران دخدمت دکبله په کاردی چې ورسره ولاړ سی چونکه اسلامی دولت داقتصاددضعف له وجه نشی کولای چې دتیر کال

په شان دبيت المال دلاری ورسره دمعلمينو تعاون وکړی کچيری دحجاجو د مصارفو څخه
څه اندازه مبلغ واخستل شی او دغه نوموړی مشکلات په حل کړی دشريعت حکم څرنګه
دی که لطفا راته تشريح کړی - والسلام

(له ارشاداو قافو لخوا )

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب حامد اومصليا

ددغه معلمينو اوډاکترانو مصرف دحاجيانو دپيسو څخه ورکول جائز دی ځکه دغه د
حوائج عامه څخه دی حوائج عامه چی بيت المال بر داش نه شی کولای دخلقو څخه ئې
اخستل جائزدی په ردالمحتارکی راغلی دی ج۲ ص۲۲ ؛

وقال ابو جعفر البلخي مايضر به السلطان على الرعية مصلحة لهم يصير دينا واجبا وحقا مستحقا
كالخراج وقال مشايخنا وكل ما يضر به الامام عليهم لمصلحة لهم فالجواب هكذا حتى الحرة
اجراسين لحفظ الطريق واللصوص ونصب الدروب الخ......

لکن دغه معلمين اوډاکتران به اندازه دضرورت وی (خبرتيا )دغه معلمين اوډاکتران چی
خدمت اوتعليم ته دحاجانو معين شی پرهغوی خدمت فرض عين کيږی داسی نه دی لکه
عام علماء چی په حاجيانو کی ولاړشی یاډاکتران ځکه هغو ی دپاره ددغه خدمت معين
شوی نه دی بايد دغه معلمين اوډاکتران خپله دغه وظيفه کی قصور ونکړی لکه چی په
الاحکام السلطا نية کی دماوردی ص۲۴۰ کی راغلی دی په فرق کی دمحتسب چی دپاره
دامر با لمعروف اونهی عن المنکر متعين شوی وی اودمتطوع چی دغه وظيفه پر
محتسب فرض ده او پرمتطوع فرض کفايي ده- (الفرق بين المتطوع والمحتسب من تسعة
اوجه احدهما فرضه متعين على المحتسب بحكم الولاية وفرضة على غيره داخل فى فروض
الكفايةدغه رنګه په الاحکام السلطانيه کی دابی يعلی ص۲۸۴ کی هم راغلی(والله اعلم)



مولوی محمد اخلاص برکتی العبد الاحقر نذ احمد مولوی نور محمد ثاقب رئیس دارالافتاء مرکزی دولت اسلامی افغانستان

# كتاب النكاح

## په لفظ دمضارع نكاح صحيح كيږي او كنه؟

پوښتنه :كه يوسړى چې دلورپلاردى اوبل سړى چې اجنبي دى دغه اجنبي سړى دلور پلارته وايي چې فلانۍ سړى وايي چې دى زماخسردى پلارئ لورما ته راكړى ده او دغه فلانئ هم دلته حاضروى دلور پلار ووايي چې دركوم يى په ۱۲ سوه لكه افغانى هغه فلانئ ووايي چې زما قبوله ده نور خلق هم په دغه ځاى كى حاضروى اودغه سړى يوه لور لرى بله نه لرى آيا په دغه الفاظو سره نكاح وشوه كيا بينوا توجروا -

(المستفتى مولوى عبد السلام)

بسم الله الرحمن الرحيم

هوالله تعالى المستعان

امابعد فنقول وبالله التوفيق دانكاح كه څه هم په لفظ دمضارع سره ده صحيح كيږى كه نوم دلور هم نه وى ذكر شوى په دى لاندى مسئلو سره

ـفقوله اتزوجك ينعقد به النكاح ايضاً لانه يحتمل الحال كما فى كلمة الشهادة وقدارادبه التحقيق لاالمساومة بدلالة الخطبة و المقدمات بخلاف البيع كمافى البحر عن المحيط والحاصل انه اذاكان حقيقة فى الحال فلاكلام فى صحة الانعقاد به وكذاا ذاكان حقيقة فى الا ستقبال لقيام القرينة على ارادة الحال و مقتضاه انه لوادعى ارادة الاستقبال والوعد لايصدق بعد تمام العقد با لقبول وياتى قريبا( ردالمحتار ج۲ ص۲۸۷ ط رشيديه كوئته ) مايؤيده رجل له ابنة واحدة فزوجهامن رجل وقال زوجتك ابنتى ولم يذكر اسمهافقال الزوج قبلت جاز (فتاوى قاضي خان بهامش الفتاوى الهندية كتاب النكاح ج ۱ ص ۳۲۴ ط دارالاشاعة العربية قندهار وقال فى المحيط لوقال زوجت بنتى منك ولم يزد على هذاوله بنت واحدة جاز (خلاصته الفتاوى ج۲ ص۵ ط رشيديه كوئته )



مولوى محمود ميوندوال مولوى نذاحمد مولوى مفتى نورمحمد ثاقب رئيس عمومى دارالافتاء مركزى

## دیوه سړی اویوي ښځي په ګواهي نکاح منعقدیږی اوکنه

پوښتنه :مدعی شاه ملنګ دادعوه کوی چې حاجی ملا میراجان چې زما ورور دی زما وزوی ته چې حاجی محمدنعیم نو میږی خپله لور چې دیونیم کال وه وربخښلی ده اوس نوموړی حاجی ملامیرا جان انکار کوی نوزه پرده باندی دوه شاهدان دده دخولی لرم چې یومرجان نو میږی اوبل محمد هاشم دی اودنکاح په وقت کی ئې یوامیر محمد ووچې هغه اوس وفات شوی دی اویوه ښځه وه اویوزه حاضروم اونکاح ئې پخپله ملامیرا جان وتړله اودخبر شاهدان نورهم د یر دی محترمو علماء کرامو زه ددغه دعوی په شریعت مقدس کی حق لرم که یا؟ -

(المستفتی حاجی قاری علی محمد )

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون الله تعالی

په انعقاد کی دعقد نکاح شهادت شرط دی یعنی عقد دنکاح لره حضوردووکسانو شاهدانو یا یو سړی دو ښځی شرط دی محترم مستفتی وایي چې په وقت دنکاح کی یو امیر محمد ؤو اویوه ښځه وه نو بنا پردغه قول دمستفتی نصاب دشهادت پوره نه دي نو شرط دعقد موجو د نه شو نوعقد صحیح نه شو ځکه چې دهلک پلاراوانجلی پلار خو عاقدان دی په نصاب کی دشهادت شمار نه دی هله په شهادت کی شمارل کیږی چې هلک یاانجلی بالغ وعاقل وی په عقد کی دنکاح حاضروی و یشترط العدد فلا ینعقد النکاح بشاهد واحد هکذا فی البدائع ولایشترط وصف الذ کوره حتی ینعقد بحضور رجل وامراتین کذا فی الهدایة(الهندیة ج۱ص ۲۶۷ ط دارالاشاعة قندهار)

لوزوجت المرأة بنتها البالغة برضاها بحضرة رجل وامرأة جاز بحضرتها وان کانت غائبة لم یجز لما قلنا وان کانت البنت صغیرة لم یجز سواء کانت حاضرة اولا لعدم الانتقال کالاب اذا زوج الصغرة بحضرة رجل واحد ا(تبیین الحقائق ج ۲ص ۴۵۷ ط قدیمی کتب خانه کراچی )(

ولوزوج بنته البا لغة) العاقلة بمحضر شاهد واحد جاز ان کانت ابنته (حاضرة) لانها تجعل عاقدة (و الا لا) الاصل ان الامر متی حضرجعل مباشرا (الدر المختار علی هامش رد المحتار)(

قوله ولوزوج ابنته الخ )وقید بالبالغة لانها لوکانت صغیرة لایکون الولی شاهدالان العقد لایمکن نقله الیها(ردالمحتار ج ۲ ص۲۹۸ط رشیدیه کوئټه )

هرچې شاهدان دخولی دملامیر اجان دی یادخبر اوتسامع شاهدان دی هغه هله معتبردی چې انعقادد عقدد نکاح موجود سی ځکه چې دهغوخو اظهار اوا ثبات په وقت کی د مخاصمی کیږی اظهار اوثبات دعقد د نکاح خوغیرده له انعقاد دعقد دنکاح څخه په شهادت دفاسقین انعقادراځی اواثبات نه راځی؛

قوله لوفاسقین الخ اعلم ان النکاح له حکمان حکم الانعقاد وحکم الاظهارفا لاول ماذکره والثاني انما یکون عند التجاحد فلایقبل فی الاظهار الاشهادمن تقبل شهادته فی سائر الاحکام (الخ رد المحتار ج۲ ص۲۹۶ ط رشیدیه کوټه)

الحاصل چې مدعی په خپله د امنی چې په وقت کی دانعقاد نصاب دشهادت پوره نه وڼوبه داثبات شاهدان څه فائده وړور سوی اودعوه به ئې کله معتبر سی والله اعلم وعلمه اتم واحکم

**په خط لیږ لونکاح صحیح کیږی کنه اووعده دنکاح اوعین نکاح څه فرق لری**

پوښتنه: کله چې یو سړی دانجلی پلار و بل چاته خط ولیکی چې ماخپله فلانی لور چې په دی نامه بله لور نه لرم تاته په نکاح درکړه دغه نکاح کله صحیح اومنعقد ه کرځی اوپه دی مسئله کښی دقضاء اودیانة فرق راځی اوکنه اودوعدی دنکاح اودعین نکاح جدا والی اوفرق به څرنګه معلومیږی- والسلام .

(استفتاء خاص امیر المؤمنین)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب حامد اومصلیا-

که دیو چاله طرفه وبل چاته دخط په ذریعه نکاح ولیکل شی دغه نکاح هغه وقت صحیح اومنعقد ه کرځی چې هغه څوک چې داخط ورته راغلی ده شاهدان راحاضر کړی ا ودغه خط ورته ووایي اویادی خط مضمون ورته ووایي چې داسي ماته لیکل شوی دنکاح په باره کښی اوبیا دوی ته ووائي چې تاسو شاهدان اوسی چې ماقبوله کړه اوشاهدان به دوه سړی اویایو سړی اودوه ښځی وی تنها ښځی نه کافی کیږی او که داسی یي نه وی کړی اګرچې خط راغلی وی خو نکاح نه ده شو ی؛

قال فی ا لفتح ومن اشتراط السماع ماقدمناه فی التزوج بالکتاب من انه لابد من سماع الشهود مافی الکتاب المشتمل علی الخطبة بان تقرأه المرأة علیهم اوسماعهم العبارة عنه بان تقول ان فلانا کتب

## دخائن لپاره شفاعت کول څه حکم لري

پوښتنه: د هر مجرم بندي په باب واسطه د شریعت په چوکاټ کي څنګه ده ؟

(دتحقیق مدیریت داستخباراتو څانګه)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب ومنه الصدق والصواب

شفاعت اوواسطه کول په باب دحدود کی وروسته تر اثبات په نزددحاکم جائز نه دي مخکی له اثبات په نزددحاکم بیا جائزده لکه عفوچې جائز ده هرچې شفاعت دی په باب دقصاص کی هغه جائزدی په هروقت کی ځکه عفو په کښي جائزده هرچې شفاعت دی په باب دتعزیر کی یعنی چې یوسړی داسی عمل کړی وی چې تعزیر پر وی یوبل کس ددغه سړی واسطه شی اوشفاعت ئې کوی کچیری په داسي شي کی وی چې نظام ته دعام ملت مخل وی نوشفاعت اوسفارش پکښی جائز نه دي اوکه په دغه شان نه وی نوجائزدی په هغومواضع کښی چې شفاعت جائزوی دحاکم دپاره ئې قبلول هم جائزوالافلاپه غیر کی ددغه مذکور امور وشفاعت کول جائز دی بلکه ثواب پر مرتب کیږی که په صحیح نیت وو.

الحد عقوبة مقدرة وجبت حقا لله تعالی زجر افلاتجوز الشفاعة فیه بعد الوصول للحاکم آه الدر المختار (قوله فلاتجوز الشفاعة فیه ) تفریع علی قوله تجب الخ قال فی الفتح فانه طلب ترک الواجب ولذا انکر صلی الله علیه وسلم علی اسامة بن زید حین شفع فی المخزومیة التی سرقت فقال اتشفع فی الحد من حدود الله قوله بعد الوصول للحاکم واماقبل الوصول الیه والثبوت عنده فتجوز الشفاعة عند الرافع له الی الحاکم لیطلقه لان وجوب الحد قبل ذلک لم یثبت فالوجوب لایثبت بمجرد الفعل بل علی الامام عند الثبوت عنده کذافی الفتح وظاهره جواز الشفاعة بعدالوصول للحاکم قبل الثبوت عنده وبه صرح عن الحموی ردالمحتارج۳ ص۱۵۴ وهکذافی البحر الرائق ج۵ ص۲-

په الفقه علی المذاهب الاربعه ج۵ ص۵ په بیان کی دحدیث دشفاعت داسامة بن زید راغلی دی:

ویوخذ من هذا الحدیث انه لایحل لحاکم ان یقبل الشفاعة فی حد من حدودالله تعالی الاتی بیانها کما لایحل لاحد ان یشفع فی حدوصل الی الحاکم وهذامماالاخلاف فیه بین العلماء واماقبل الوصول الی الحاکم فان الشفاعة تصح کمایصح العفو بشرط ان یکون مستحق العقوبة غیر معروف بالجرائم هذافی الحدود وامافی القصاص فان الشفاعة فیه تجوز لانه حق العبد وله ان یعفوا



مولوی عبدالحکیم عفی عنہ مولوی نداحمد الحقانی مولوی محمد اخلاص برکتی مولوی نور محمد ثاقب رئیس دار الافتاء دولت اسلامی افغانستان

**که دیوه بندی جرم ثابت نه وی نو بایدخه وشي**

پوښتنه :که چیری دیو بندی جرم ثابت نه وی څنګه بایدوکړو ؟

(دتحقیق مدیریت داستخباراتو څانګه)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب ومنه الصدق والصواب دغه بندی چي جرم يي ثابت نه دی متهم دی په جرم سره بیان دمتهم په تفصیل سره مخکی (دڅوک چي په خبرواقرارنه کوی ترعنوان لاندی) ذکرشو اعادی ته ضرورت نشته والله تعالی اعلم



مولوی محمد اخلاص برکتی مولوی عبدالحکیم عفی عنہ مولوی نداحمد الحقانی مولوی نور محمد ثاقب رئیس دار الافتاء دولت اسلامی افغانستان

**پرسرک باندی له شیان خرخولوڅخه نه منع کیدونکي تعزیر**

پوښتنه : ددارالافتاء محترم مقام ته دښاروالی ریاست دهغه خلګوپه باب استفتاء غواړی کوم چي پرسرک شیان خرڅوی اویاپرپیاده رو شیان خرڅوی څرنګه عمل کولاشي ایاددوی شیان ضبط کولای شي کنه په هغه وقت کښی کوم چی دوی دښاروالی خبره ونه منی اود خلګو سخت مزاحم واقع سی؟

(المستفتی ملا هدایت الله رئیس ښاروالی قندهار)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون ملهم الصواب

په لاره کی دشیانو خرڅول حلال نه دی که یی خلقوته ضرر رساوه اوحکومت ته دالازمه ده چې منع یی کړی لکن نه په ضبط کولو سره ددوی دمال ځکه چې ضبط کول دمال تعزیر مالی دی اوتعزیر مالی حرام دی:

رجل يبيع على الطريق ان كان لايضر بالمارة لسعة الطريق يحل الشراء منه وان اضربالمارة لا يحل الشراء منه ( الفتاوى البزازية بهامش الهندية ج۴ ص۵۲۳ )وفى شرح الاثار التعزير بالمال كان فى ابتداء الاسلام ثم نسخ والحاصل ان المذهب عدم التعزير باخذ المال (البحرالرائق ج۵ ص۴۱ )وعزر كل مرتكب منكر اومؤذى مسلم بغير حق بقول اوفعل آه (الدر المختار بهامش ردالمحتار ج۳ ص۱۹۹ )لايجوز التعزير باخذالمال فى الراجح عند الايمة ( الفقه الاسلامى ج۶ ص۲۰۱ )

که چیري دغه بائعین نه منع کیدل اوحکومت ته مصلحت په هلاکیدلو کښې ولیدی نو حکومت ته هلاکیدل جائزدی په ( فتاوى هندية ج۵ ص۳۵۴ )کی راغلی دی:

المحتسب اذانهى قطانا وضع القطن على طريق العامة فلم يمتنع فاوقد المحتسب النار فى قطنه واحرقه يضمن الاانا علم فسادا فى ذلک ورأى المصلحة فى احراقه فلايضمن كذافى الخلاصة ۱۲

مولوی عبدالحکیم عفی عنہ مولوی احمد نوری عفی عنہ

**ضرب اوحبس بيله قاضي نور مسئولين كولای شي كنه**

پوښتنه : ضرب وزدن وحبس بدون امر واجازه قاضی برای قوماندان آمنیه وجنائی وولسوال جواز دارد یانه اگر نداشته باشد باید برای تمام ولایات ازمرکز مکتوب اصادر میشود وایشان فهمیده شود (المستفتی مولوی حمدالله فائز)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب حامدا ومصليا

تعزیر برای غیر قاضی نیز جائز است مثل زوج ومولی ومعلم وغیران بشرط مصلحة وفکر دقیق وفهم عمیق وتفصیل آن در کتب فقه

*مذکوراست لکن مصلحت آنست که تعزیربان کس حواله شودکه صاحب رای وفکرباشد وغیران منع شود.*

وزاد بعض المتاخرين ان الحد مختص بالامام والتعزير يفعله الزوج والمولى وكل من رأى احد ايباشر المعصية ردالمحتار ج۳ ص۱۹۴



*مولوی عبدالحکیم عفی عنه مولوی عبدالله مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دار الافتاء دولت اسلامی افغانستان*

**دلوطي، زاني، سارق اوقطاع الطريق دزجراندازه**

**پوښتنه : مرکزی دار الافتاء ته په لاندی مجرمینوکی دامیر دزجرحد اوصلاحیت راته معلوم کړی ۱ لوطی ۲ زانی ۳ قطاع الطريق ۴ غل.**

بسم الله الحمن الرحيم

الجواب بعنون الله الوهاب

دلته ۲ خبری دی یوخوددی مجرمینو خپلی اصلی جزاگانی دی اوبل دامیر لخواصلاحیت دزجرده ددوی دپاره هر چې ددوی اصلی جزاگانی دی هغه خولکه عامو کتابونو چې لیکلی چې دزانی جزاء رجم اوسنگساره ده که محصن (شادی شده) وه اوسل دُری دی که غیر محصن وه اودسارق (غل) جزاء قطع دید (لاس) ده اود قطاع الطريق جزاء داده کله چې ونیول اوتینگ شی په داسی حال کښې چې هغوی قتل نه وی کړی اومال ئې هم نه وی وړی نوحبس کیږی به پس له تعزیر څخه تر څوچې توبه وکړی اویامړه شی اوکه تینگ شول په داسی حال کښې چې هغوی مالونه دخلکو وړی وی نوښی لاس اوچپه پښه به ئې پریکیږی اوکه تینگ شول په داسی حال کی چې تنها قتل ئې کړی وه نوبه دوی هم قتل کړل شی اوکه تینگ شول په داسی حال کښي چې هم ئې قتل کړی وی اوهم ئې مالونه وړی وی نو جزاء ئې قطع اوقتل اوزړه ول دی تر دری ۳ ورځوپوری اودلوطی په جزاء کښی دصحابه کرامو اختلاف ده لکه په تبیین الحقائق وغیره کی لیکلی چې بعضی وایي چې په اوردی وسوزول شی اوبعضی وایي چې دجگ ځای (کمر) څخه دی راغوزارکړل شی اوبعضی

وايي چې په يوبدبويه ځاى كښې دى واچول شي چې هلته دبدبويي څخه مړشي اوبعضي وايي چې ديوال دى ورباندى ونړيږى اوترينه دى لاندى كړل شي اوبعضى بياداواى چې حكم ئې حكم دزانى دى چې يارجم اوياجلدده اوهرچې دامير اوسلطان لخواصلاحيت اواندازه دزجرده ددى مجرمينو دپاره نوهغه داده چې امام اواميرلره صلاحيت شته ده دقتلولوددوى آن په شمول دسارق اودلوطى چې دوى معتادوى ددى فعل سره اومكرر ورځنى صادروى كله چې امام لره معلوم شى مصلحت په قتل ددوى كښې نوقتل به ئې كړى سياسة بلكه هرمفسد اوساعى بالفساد فى الارض چې وى نوامام لره جائز دى چې دفع دشردده وكړى په قتل دده سره په ردالمحتار ج۳ ص۱۹۶ كى ليكلى دى:

ان من اصول الحنفية ان مالاقتل فيه عندهم مثل القتل بالمثقل والجماع فى غير القبل اذاتكرر فللامام ان يقتل فاعله وكذلک له ان يزيد على الحد المقدر اذارءى المصلحة فى ذالک ويحملون ماجاء عن النبى صلى الله عليه وسلم واصحابه من القتل فى مثل هذه الجرائم على انه رءى المصلحة فى ذالک ويسمونه القتل سياسة ومن ذالک ماسيذكره المصنف من ان للامام قتل السارق سياسة اى ان تكرر منه الخ اوپه الدرالمختار بهامش ردالمحتار ج۳ ص۱۷۱ كښې ليكلى دى ولواعتاد اللواطة قتله الامام سياسة...الخ

اوپه البحرالرائق ج۵ص ۱۶كى ليكلى:
ولو اعتاداللواطة قتله الامام محصنا كان اوغير محصن سياسة الخ اوپه الفتاوى الهندية ج۳ ص۱۵۰ كښې هم دغه مضمون ليكل شوى ده اوپه تبيين الحقائق ج۳ ص۱۸۱ كښې ليكلى دى حتى لورءى الامام فى قتل من اعتاده مصلحة جاز له قتله.

اوپه الدر المختار بهامش ردالمحتارج۳ ص۲۲۵ كښې ليكلى دى:
(للامام قتل السارق سياسة) لسعيه فى الارض با لفساد درروهذاان عادو اماقتله ابتداء فليس من السياسة فى شئ نهر... الخ

اوپه الدر المختارورد المحتارج۳ ص۱۹۷ كى ليكى دى:
(وعلى هذا) القياس (المكابر بالظلم وقطاع الطريق وصاحب المكس وجميع الظلمة بادنى شئ له قيمة ) وجميع الكبائر والاعونة والسعاة يباح قتل الكل ويثاب قاتلهم انتهى وافتى الناصحى بوجوب قتل كل مؤذ (قوله وجميع الكبائر) فيشمل كل من كان من اهل الفساد كالساحر وقاطع الطريق واللص واللوطى والخناق ونحوهم ممن عم ضرره ولاينز جر بغير القتل اوپه الدر المختار

وردالمحتار ج۳ ص۲۳۶ کښی لیکلی دی (قتل به ) سیاسة لسعیه فی الارض بالفساد وکل من کان کذالک یدفع شره بالقتل ( قوله وکل من کان کذلک ) کاللوطی والساحر والعوانی والزندیق والسارق کما قدمناه فی اوائل باب التعزیر .... الخ



مولوی احمد نوری عفی عنه مولوی نذاحمد الحقانی مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء دولت اسلامی افغانستان

## مجسمه اودسروز آلات که حکومت ونیسي

پوښتنه :دقندهار دمرکزی دارالافتاء ومحترم رئیس صاحب اواعضاءته السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته وروسته زموږ اندیوالان دخلقوڅخه داسی شیان تیڼکوی چې قیمت ئې ډیری روپی وی خوپه شریعت کی نارواوی لکه مجسمی چې قیمت ئی ۵ لکه ۶لکه وی یالکه ټیپونه چې قیمت ئې ۲۰ لکه ۳۰ لکه وی خود سروز په حالت کی ئې ټینګ کری یالکه ویډیو چې قیمت ئې ۳۰ لکه وی یالکه پنج بکس چې قیمت ئې ډیری روپی وی یانورشیان چې دسروز سامان وی یادقتل آله وی هیله کوو چې په دغه حصه کی فتوی راکړی چې موږ دغه شیان مات کړو اوکه ئې بیت المال ته تسلیم کړو اوکه ئې مالکانوته بیرته ورردکړو؟
(الحاج مولوی بهاء الدین حقانی)
معاون ریاست امربالمعروف

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب باسم ملهم الصواب
دویډیو اومجسمی استعمال اورانیول اوخرڅول شرعا حرام دی ځکه چې دادواړه دمال متقوم د جملی څخه نه دی مال متقوم وهغه شی ته وایي چې وهغه شی ته دانسان طبیعت یلان کوی اودوقت حاجت لپاره ذخیره کیدلای شي اوشرعا مباح اونفع پري اخستل جائز ی نوویډیو اومجسمه اګرچې مال دی لیکن متقوم نه دي نواستعمال ئې حرام دی اوبیع ي باطله ده نوداسی شیان باید دخپلو مالکانو څخه زجرا ضبط اوددوی په حضورکی ضائع شی په مذکورعمل به ددوی اوټولو مسلمانانوته عبرت حاصل شی.
المادة ۲۱۱ بیع غیر المتقوم من المال باطل وکون غیر المتقوم من المال له معنی عرفی ومعنی

شرعی نقله فی ردالمحتار عن ابن کمال حیث قال المتقوم علی ماذکرفی التلویح ضربان عرفی وهو بالاحراز.... وشرعی و هو اباحة الانتفاع به وهو المراد بالمتقوم المنفی ههنا شرح المجلة للاتاسی ج ۲ ص۱۰۴ والمال مایمیل الیه الطبع ویمکن ادخاره لوقت الحاجة والمتقوم مایمکن ادخاره مع اباحة شرعا( الفقه الاسلامی ج۴ ص۳۵۷ )

دسروز اله که یوچادبل چاورماته اوضائع کړه امام ابوحنیفه رحمه الله وايي ماتونکی دهغه دقیمت ضامن دی اوحضرات صاحبین رحمهما الله وايي ضامن نه دي اوفتوای پرقول دصاحبین دي اوکه دامام په اجازه دسروز اله ماته سی بالاتفاق ئې ضمان نشته نوحاصل دادی چې طالبانو اعلانونه کړی دی چې په افغانستان کی سروز بنددی بیاهم چې څوک تجاوزکوی دامیر المومنین په اجازه دی دداسی کسانو سره دماتیدوعمل وشی اوتیپ دی ورمات سی؛

ومن کسر لمسلم بربطا(وهوآلة الطرب عنا یة طرب آلة موسیقی فرهنک نوی ص ۴۰۱ ) فهو ضامن وبیع هذه الاشیاء جائز وهذا عندابی حنیفة رحمه الله وقال ابویوسف ومحمد رحمهما الله لایضمن ولایجوز بیعها و قیل الفتوی فی الضمان علی قولهما ( فتح القدیر ج۸ ص۲۹۳ ) اذاکسر بربط انسان اوطنبوره اودفه او ماشبه ذلک من آلات الملاهی فعلی قولهما لاضمان وعلی قول ابی حنیفة رحمه الله یجب الضمان وذکرفی الجامع الصغیر ان علی قول ابی حنیفة رحمه الله یضمن الااذافعل باذن الامام قال القاضی الامام صدر الاسلام الفتوی علی قولهما لکثرة الفساد فیمابین الناس( الهندیة ج۵ ص۱۳۱ )-

پنجه بُکس یابله آله دقتل دی ورڅخه ضبط شی په خاطر دتنګیدلو دأمنیت دخلیفه دوظائف سیاسیو څخه یوه وظیفه داده چې خلیفه به آمن راولی نوکه داسی شیان ازادوی بیابه امن نشی راتلای الوظائف الساسیة .... اولاالمحافظة علی الامن والنظام العام فی الدولة ( الفقه الاسلامی ج۶ ص۷۰۰ ) بیابه کتل کیږي چې آیاداد بیت المال دی که ده دوی شخصی دی دهغی مطابق دی معامله ورسره وشی.



مولوی نذاحمد الحقانی مولوی محمود میوندوال مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دار الافتاء دولت اسلامی افغانستان

# كتاب البيوع

## په لاره کي بيع اوشراء څه حکم لري

پوښتنه :محترموعلماء کرامو السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته لوی څښتن تعالی موپرموږاوتوله نړی باندی سايه دائم قائم ولره څه وايي علماء دين متين په دغه لاندی مسئله کښی چې يوسړی دسړک پرغاړه ددکان په مخکی يوشئ خرڅوی اوهغه دکاندارنه وی په خوشحاله (اول ) داګټه څنګه ده حلاله ده اوکنه (دوهم ) دغه دکاندار پردغه سړی چې ددکان ومخ ته ناست دی حق پرلری چې ولاړئې کړی کنه؟ ددغه مسئلی حل که دشريعت په رڼاکړی راته روښانه کي ستاسی به ډير شفقت وی فقط والسلام.

(المستفتی طيب محمد شهر کندهار)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب ومنه الصدق والصواب

داول سوال جواب که چيری يوسړی (رجل) چې بيع کوی په يولارباندی که چير ضرر نه رساوه په تيريدونکی باندی دوجه څخه دلوی والی دلاری نواوس روادی رانيول (شراء) ددغه سړی څخه اوکچيری ضرررساوی په تيريدونکی باندی نواوس روانه ده شراء ددغه سړی څخه که څه هم لارلويه وی اويوچاويلی دی چې داشراء ددغه سړی څخه مکروه ده.

رجل يبيع على الطريق انکان لايضر بالمارة لسعة الطريق يحل الشراء منه وان اضر بالمارة لايحل الشراء منه وانکان الطريق واسعا وقيل يکره( الفتاوى البزازية بهامش الهندية )

ددويم سوال جواب هيڅ څوک نشی منع کيدای له تصرف څخه په خپل ملک کښي هميشه او هغه وقت بيامنع کيداشی که چيري ضررساوه وغيرته اوهغه ضررضرر فاحش وی او ضررفاحش هغه شئ دی چې منع کوی حوائج اصليه يعنی منفعة اصليه مقصوده دبناءلکه سکناء اوياضرررسول دی بناءته چې هغه سبب دانهدام دبناءشی چونکه دا ضرر د دکان دار فاحش نه ده نومنع نشی کيدای:

لايمنع احد من التصرف فی ملکه ابدا الااذا اضر بغيره ضررافاحشا کماياتی تفصيله فی الفصل الثانی الضرر الفاحش هوکل مايمنع الحوائج الا صلية يعنی المنفعة الاصلية المقصودة من البناء کالسکنی اويضر البناء بان يجلب عليه وهنا ويکون سبب انهدامه المادة (۱۱۹۷ ) والمادة (۱۱۹۹) من مجلة الاحکام والله اعلم بالصواب



مولوی ندا محمد الحقانی مولوی احمد نوری عفی عنه مولوی نور محمد ثاقب رئیس دارالافتاء دولت اسلامی افغانستان

**بولي يابيع دمن يزيد څه حكم لري**

پوښتنه :وحضورته د محترمو علماء كرامو السلام عليكم ورحمة الله وبركاته بعدا عرض دادى دغه څلور نفرولكه حاجى باران حاجى عبد الباقى اكبرخا ن بلوڅ او على سعيد پاكستانى بولى ياليلام كنبى حاضر اود ټولو څخه مو امضاوى اخستى دى چى كه هرڅا بولى وكټل بيا حق ده شكايت نه لرى اوس بياهغه كسان ترقيمت يوسل اوپنځه ويشت لكه كالدارى زيادت وركوى اوس تاسى فيصله وكړى چى موږ څه وكړو اوبل موداوعده د بولى مخ كنبى وشوه چى ددي كان څخه به څوك هيڅ يوشئ نه وړى اوبل پر حاجى عبد الباقى بولى ختمه سوه اوپه دوه لكه اوپنځويشت زره كالدارى موټر بيعه سو بااحترام.

(ملاحيدرشاه مسئول معدن وصنائع)

جناب محترم ملاحيدرشاه اخند السلام عليكم وبعدد ډبرى د خرڅ موضوع ته دارالافتاء ته حواله كړه چى ګناه موپه غاړه نسى والسلام- ۱۷-۶-۱۳۷۵

وكتل سووحضورته دمحترمو علماء كرام السلام عليكم ورحمة الله وبركاته وبعد محترمو دغه د ډبرى موضوع بايد ترجدى نظر لاندى ونيول شى بااحترام.

(ملاحيد رشاه)

محترم د علماء كراموشورى د دار الافتاء رياست د معادن او صنائع رئيس د ډبرى په باب دملاحيدرشاه اخند معلوماتي ليک درته درولیږل شو هيله ده شرعى معلومات راكړى رسما ورسره لاتراوسه پروتوكول هم نه دي لاسليک سوى اوبل داچى داچارى خود ملاحيدرشاه اخند اړوندى مګرموږورته د دومره مودى يعنى يوكال خبره نه وه كړي تاسى ليكلى راكړى والسلام.

(د اسلامى تحريک امير محترم امير المؤ منين ملامحمدعمر اخند) ۲۰-- ۶-- ۱۳۷۰

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون ملهم الصواب

دهلمند دډبرې دمعاملې په باره کې چې محترم امیر المؤمنین یوه داپو ښتنه کړې چې تر اوسه پروتو کول رسمانه دې لاسلیک شوې اوبله ئې داپوښتنه کړې چې رئیس د معادن اوصنائع ته ددومره مودې نه ؤ ویل شوې د دې حکم په شریعت کښې څه ده نود اولی پوښتنې په جواب کښې ویل کیږي چې عقد یوواري وشي اګرکه زباني وي په شریعت کښې داعقدپوره دې اوترلاس لیک پورې موقوف نه ګرځي لکه په عامو کتابونود فقه کې ذکر شوې دې اود دویمې پوښتنې په جواب کښې ویل کیږي چې رئیس د معادن اوصنائع که مطلق وکیل اونائب د امیر المؤمنین وي اووکالت اونیابت د ده مقید نه وي نو بیاد ده له خوا که هرقسم بیع وشي اوترهرې مودې پورې چې وي بیاصحیح ده لکه دامعلومیږي د تحفة الفقهاء ج۳ ص۲۳۴ الفتاوی الهندیة ج۳ ص۵۸۸ اوکه وکالت د ده مقید وي مثلاً امیر المؤ منین له خواورته یوه خاصه موده ښودل سوې وي اوبیا هغه وکیل ترې خلاف ورزې کړې وي نوبیاد ده وکالت اونیابت ختمیږي اودې برطرف کیږي اوتعین د آمر معتبر دې لکه د الدر المختار علی هامش ردالمحتار ج۴ ص۴۵۳ څخه معلومیږي باقي خبره داده چې دابیع د ډبرې په طریقه د بولې سره دابیع د من یزید ده اوجائزده خوپه دې شوې بیع کې یاد ډبرې د اینده خرڅولود پاره چې کومه لائحه وضع شوې ده په دې کښې بعضې مادې اوبعضې قیوددې چې قابل د ملاحظې دې (اول) داچې د دې کان څخه به طالبان یابل قرار دادې ډبره نه وړې ترڅود دغه قراردادې قراردادنه وي پوره شوې (دوهم) داچې مشتري به پنځوس لکه کالداري د مخه تسلیموي د ضمانت په شکل اوکه قرار دادې ترمعین وقت تیرشي پنځوس لکه ئې ضبط کیږي (دریم) داچې دغه د ډبرې د استخراج ماشین به په اینده کښې د طالبانووې بناء په ضرورت د هغه وقت په قیمت اوداسې نور نوکه دامادې اوقیود محض وعدې وي خوخبره آسانه ده ځکه په شریعت کښې که پروعده باندې وفاوشوه خودیر ښه ده اوکه وفانشوه ګناه خوده لکن پرعقد باندې کوم اثر نکوي اوکه داشروط وي د مقتضیانو اوملایماتود عقد څخه نه دې اوپه دې کې نفع ده یود بائع اود مشتري د پار اوبعضې ددې شرطو خلاف د عرف دې نوداشروط شروط فاسده دې په دې سره عقد فاسد ګرځي اوعقدفاسد واجب الفسخ دې نوبیاباید داعقد

فسخ شی اونوی بولی وشی اود اینده د پاره داتول شرطونه د لائحی څخه لیری شی:
وخلوه عن شرط مفسد وهو کل شرط لایقتفضیه العقد ولایلایمه ولم یجر العرف به وفیه نفع لاحد المتعاقدین الخ(شرح المجله للاتاسی ج۲ ص۳۴۷ )اوهمداسی په( الفتاوی الهندیة ج۳ ص۱۳۳ )کښی هم ذکر دی لکل من المتعاقدین فسخ البیع الفاسد المادة ( - ۳۷۲ )اللام بمعنی علی مثلها فی قوله تعالی وان اسأتم فلها کمافی الزیلعی والنهر ای یجب علیهما فسخه وقدتبع فی هذه العبارة الهدایة والکنز لکن ان کان قبله ( ای القبض ) فلکل الفسخ بعلم صاحبه لابرضاه وانکان بعده فانکان الفساد فی صلب العقد بانکان راجعا الی البدلین المبیع والثمن کبیع درهم بدرهمین وکالبیع بالخمر والخنزیر فکذلک وانکان بشرط زائد کالبیع الی اجل مجهول اوبشرط فیه نفع لاحد هما فکذلک عندهما لعدم اللزوم وعند محمد لمن له منفعة الشرط واقتصر فی الهدایة علی قول محمد ولم یذکرخلافا (بحر) وافادان من علیه منفعة الشرط یفسخ بالقضاء والرضاء علی ماقال محمد ردالمحتار عن القهستانی (شرح المجله للاتاسی ج۲ ص۳۶۳ )
اوپه کفایت المفتی کی په ج۸ ص۴۳ باندی صریح لیکلی چی په نیلام (بیع من یزید ) بولی کښی چی د بیعانی د ضبط کولو خبره وشی داشرط فاسد مفسد د عقدده نود دی وجې څخه عقد فاسد گرځی اود دی فسخ پرعاقد ینو واجب ده شرعا البته په فتاوی دارالعلوم دیوبندیعنی امداد المفتین ج۲ ص۸۴۳ کی بعد د دی څخه چی بیعانه ضبط کول ئې ممنوع بنودلی ذکرکړی دی چی که په صورت دعدم ضبط کی بائع د پاره قوی اندیښنه د نقصاناتو نه وی بیایو تدبیر شته هغه داچی څه وخت لپاره دی دابیعانه ځان سره وساتی چی هغه ورکونکی د بیعانی پوه شی چی بیعانه ضبط شوه خوبیادی په کومه طریقه لکه هدیة وغیره شوه وروسوی اوبل په لائحه کی داذکردی چی د پنځویشتو موټرانو قیمت به دمخ اداکیږی دا پیشکی قرض دی اواخیستل ئې مکروه دی لکه په امداد الفتاوی ج۳ ص۲۰ کښی ذکرشوی دی. والله اعلم بالصواب.



مولوی محمد اخلاص برکتی

مولوی عبدالحکیم عفی عنه مولانا محمد مسلم حقانی مولوی حمدالله مولوی عبدالله مولوی محمود مومندوال مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء دولت اسلامی افغانستان

## دبيع مواضعه (تلجئه) حكم

پوښتنه : استفتاء ازریاست دارالافتاء افغانستان مقیم قندهار محترما بتاریخ ۹ - ۱۲ - ۱۳۵۸ در بین ورثه حاجی محمد قاسم اخندزاده یک خط بطور بخشش حقوق بعض ورثه برای بعض آنها از حصص میراث مال متروکه شان ترتیب شده گرچه در ظاهر شروط آن بطور الفاظ وشواهد تکمیل شده اما در اصل مواضعه بود درباره دفع قانون حکومت تره کی فلهذا واقعه در تاریخ ۹-۱۲- ۱۳۵۸ بود اما تاریخ تحریر خط ۹-۱۲ - ۱۳۵۵ گرفته شده فلهذا بعض ورثه که اولاد عبدالرزاق اخندزاده که پسر مورث مذکوراست مواضعه مذکور راقناعت ندارند وانکار میکند علاوه برآن مواضعه که بیان شده شاهدان هم وجود براقرار عبدالرزاق اخندزاده موجوداست که بعدازان خط مواضعه بر حقوق باقی ورثه قناعت داشت وبعض اثار قناعت شان مثل اضحیه ویادیگر حقوق اشتراک هم اثباتات موجود بود دروقت حیات عبدالرزاق اخندزاده ویابعد ازموت مذکور خودوارثان عبدالرزاق اخندزاده مقر بود اما فعلا قناعت ندارند واز مواضعه مذکور انکار مینمایند فلهذا از حضور ریاست دارالافتاء استفتاء میخواهم اگر حقوق مایان از طریق شریعت دارند برای مایان فتوی عنایت فرمائید والسلام -

(محمداسلم ۲۰- ۲- ۱۳۷۶)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون ملهم الصواب

مواضعه (تلجئه) حکم دهزل لری اوتصرفات اوعقود دهازل لغودی سوی له ۵ ځایه څخه چې هغه عبارت دی دزواج طلاق رجعة اعتاق یمین څخه اوسوی له دی پنځو څخه هرڅه عقود اوتصرفات چې محل اوځای دوقوع یی مال وی دهازل دطرفه صحت نه لری نوددي وجهی بیع دهازل اواقرار دده اوهبه ودیعة عارية اوداسی نورصحت نه لری اونه دده پرعبارت کوم اثر مرتب کیږی.

والاظهر ان جميع التلجئة والهزل سواء فى الاصطلاح( شرح المجلة للاتاسى ج۲ ص۴۳۰)

تتمة التلجئة كالهزل الاانه اعم منها لمافى المغرب التلجئة ان يأتى امرا باطنه خلاف ظاهره فهى انماتكون عن اضطرار ولايكون مقارناوالهزل قديكون مضطر االيه وقدلا يكون وقديكون سابقا ومقارنا قال فى التقرير والاظهرسواء( طحطاوى على الدرالمختار ج۳ ص۵ )وفصل الحنفية والحنابلة واكثر المالكية بين عقود المبادلات المالية وغيرها فعقودالمبادلات المالية كالبيع

اوالتى محلها المال كالهبة والوديعة والعارية لايترتب على عبارة الهازل بها اي اثر لعدم تحقق الرضا اوالقصد الذى تقوم عليه واماالتصرفات الخمسة التى سوى الشارع فيها بين الجد والهزل وهى الزواج والطلاق والاعتاق واليمين فصححوا عبارة الهازل فيها ورتبواعليها اثارها الفقه الاسلامى التلجئة اوالمواضعة هى ان يتظاهر اويتواطأ شخصان على ابرام عقد صورى بينهما اما بقصد التخلص من اعتداء ظالم على بعض الملكية اوباظهار مقدار بدل اكثر من البدل الحقيقى ابتغاء الشهرة الخ( الفقه الاسلامى ج۴ ص۱۹۳) فقال الحنفية والحنابلة انه (اى بيع التلجئة عقد فاسد غير صحيح كحالة الهزل تماما ( الفقه الاسلامى ج۴ ص ۱۹۴) وهكذافى شرح المجلة للاتاسى ج۲ ص۴۳۰ وردالمحتار ج ۴ ص۸ وكذالايصح اقرار التلجئة شرح المجلة لسليم باز ص۸۶۳ وللاتاسى ج۴ ص۶۰۷-

**اوكه ددووكسانو ترمابين اختلاف راغلى يوه ويل چې دااقراراقرار دتلجئة وواوبل ويل چې دااقرار جدى اوحقيقى وونواول ته مدعى ويل كيږى شاهدان پرده دى اودوهم ته مدعى عليه ويل كيږى:**

وان ادعى احدهما ان هذاالاقرار هزل وتلجئة وادعى الاخرانه جد فالقول لمدعى الجد وعلى الاخر البينة كما فى التتارخانية شرح السجلة لسليم باز ص۸۶۳ وللاتاسى ج۴ ص۶۰۷ (تنبيه)

**دهزل دپاره شرط دادى چې صراحة به په ژبه داواى چې زه دابيع دهزل كوم صرف تقاضا دحال كفاية نكوى اوداويل ئې په وقت كى دعقد شرط نه دى بلكه ترمخه چې ووايي هم صحت لرى لكه ردالمحتارج۴ ص۸ كښى چې وايي:**

وشرط اى شرط تحقيق الهزل واعتباره فى التصرفات انيكون صريحا باللسان مثل ان يقول انى ابيع هازلا ولايكتفى بدلالة الحال الاانه لايشترط ذكره فى العقد فيكفى انتكون المواضعة سابقة على العقد الخ والله اعلم بالصواب

مولوى احمد نورى عفى عنه مولوى نذ احمد الحقانى مولوى نورمحمد ثاقب رئيس دار الافتاء دولت اسلامى افغانستان
مولوى محمد اخلاص بركتى

## مفصل احکام دسر قلفي

پوښتنه : په باره دخلو الحوانیت (سرقلفی) کی چی دمختلفو ځایونو څخه دافغانستان داسلامی دولت مرکزی دارالافتاء ته ډیری استفتاء ګانی راغلی بالخصوص دتمیز دعالی ریاست ددیوان تجارت لخوا مکرره استفتاء شوی ده .

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب باسم ملهم الصدق والصواب

دډیری مودی راپه دی خواد مختلفو ځایو څخه دافغانستان داسلامی دولت مرکزی دارالافتاء ته دسرقلفي په باره کښې استفتاءګانی راغلی دی اوهم دتمیز دعالی ریاست ددیوان تجارت لخوا مکرره استفتاء شوی ده لهذادمرکزی دارالافتاء دعلماء دډیر محنت اوتتبع څخه وروسته دغه یوه فتوی دخلوالحوانیت (سرقلفی) په باره کښی ترتیب کړی ده چې په لاندی ډول ده اصل دخلوالحوانیت (سرقلفی) چې بناء پرعرف اوعادة باندی دډیرو معتبروکتابونو دعباراتوڅخه ثابتیږی اودخلوالحوانیت ډیر اقسام اوډیری طریقی په کتابونوکی ذکرشوی خوموږبه دلته شپږ۶ قسمونه اوطریقی بیان کړواوداخلو (سرقلفی) خرڅیږی اوهبه کیږی اوپه میراث وړل کیږی اوهم ګرو (رهن) کیږی وغیر ذلک ځکه چې دملک حکم لری اودسرقلفی دوکان چې هدم (ونړیږی ) دسرقلفی والادپاره حق دابقاء اوداعادی شته ده چې دی په ورکولوداجرة دمثل دمځکی قائم اوثابت وی –

(تفصیل ) موږ چې داوویل چې اصل دسرقلفی دډیرومعتبرو کتابونو دعباراتو څخه ثابتیږی دنمونی په طریقه به ووایو چې په ردالمحتارج۵ ص۱۸ کتاب الاجارة کی لیکلی:

نعم يفتى به فيمادعت اليه الحاجة وجرت به فى المدة المديدة العادة وتعارفه الاعيان بلانكير كالخلو المتعارف فى الحوانيت الخ اوبيائي ويلى فيفتى بجوازذلک قياسا على بيع الوفاالذى تعارفه المتأخرون احتيالاعلى الربا الخ اوبيائي ويلى ومن القواعد الكلية اذاضاق الامر اتسع حكمه فيندرج تحتها امثال ذالک مما دعت اليه الضرورة والله اعلم آه ملخصا–

اوددی ردالمحتارڅخه دغه عبارة په شرح المجلة دسلیم باز ص۲۴۸ کښی هم نقل شوی ده اوپه الاشباه والنظائردابن نجیم کښی لیکلی دی:

المذهب عدم اعتبار العرف الخاص لكن افتى كثير باعتباره وعليه فيفتى بجوازالنزول عن الوظائف وبلزوم خلوالحوانيت...الخ

اوددی الاشباه والنظائر څخه دغه عبارة په الدرالمختار اوردالمحتار ج۴ ص۱۷ کتاب البیوع کی هم نقل کړی ده اوپه الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ج۳ ص۲۷۷ قبیل کتاب الکفالة کښی هم نقل شوی ده اوپه الطحطاوی علی الدر المختار ج ۴ ص۱۰ لیکلی:
(قوله وبلزوم خلوالحوانیت الخ ممایستدل به علی جوازذالک مافی واقعات الضریری الخ اوپه ردالمحتار ج۴ ص۱۹ کتاب البیوع کښی لیکلی دی وممن افتی بلزوم الخلو الذی یکون بمقابلة دراهم یدفعها للمتولی اوالمالک العلامة المحقق عبد الرحمن آفندی العمادی صاحب هدیة ابن العماد اوبیائي ویلی فیفتی بجوازذلک للضرورة قیا ساعلی بیع الوفا۔
اوداچی موږوویل چې دخلو الحوانیت شپږ قسمونه اوطریقی به بیان کړونو ه(۱)طریقه داده چې مالک دکان یوچاته دکان ورکړی اویومقدار پیسی ورڅخه واخلی غیردکرایه بیاکرایه په قدردمثل داجرة اداء کړی شی اوکه قدردمثل اداء نشی داعین رباګرځی اومالک ددکان دغه صاحب دخلونشی ویستلی ددکان څخه اونه دا دکان بل چاته په اجاره ورکولای شی ترڅوچی هغه مقدارپیسی بیرته نه وی ورکړی او په دی قسم کښی فرق نشته په مابین دشخصی اووقفی اودولتی زمکه کښی په رد المحتارج۴ ص۱۹ کتاب البیوع کی لیکلی دی:
وممن افتی بلزوم الخلو الذی یکون بمقابلة دراهم یدفعها للمتولی اوالمالک العلامة المحقق عبدالرحمن آفندی العمادی صاحب هدیة ابن العمادوقال فلایملک صاحب الحانوت اخراجه ولااجارتها لغیره ما لم یدفع له المبلغ المرقوم فیفتی بجوازذلک للضرورة قیاسا علی بیع الوفاالذی تعارفه المتا خرون احتیالا علی الربا الخ قلت وهو مقید ایضاً بماقلنا بمااذاکان یدفع اجرالمثل والاکانت مسکناه بمقابلة مادفعه من الدراهم عین الرباکما قالوا فیمن دفع للمعترض دارا اولیسکنها اوحمار الیر کبه الی ان یستوفی قرضه انه یلزمه اجرة الدار اوالحمار الخ اوپه الطحطاوی علی الدرالمختار ج۳ ص۱۰ کښی لیکلی واعلم ان الخلو یثبت فی الارض المملوکة لماذکره المؤلف فی کتاب الوقف ان وقف البناء بدون الارض صحیح وان الخلو یتحقق ولوالارض مملوکة علی ماعلیه الفتوی انتهی اوپه ردالمحتار ج۵ ص۱۸ کتاب الاجارة کښی لیکلی نعم یفتی به فیمادعت الیه الحاجة وجرت به فی المدة المدیدة العادة وتعارفه الاعیان بلانکیر کالخلو المتعارف فی الحوانیت وهوان یجعل الواقف اوالمتولی اوالمالک علی الحانوت قدرامعینا یؤ خذمن الساکن ویعطیه به تمسکا شرعیا فلایملک صاحب الحانوت بعدذالک اخراج الساکن الذی ثبت له

الخلو ولااجارتها لغیره مالم یدفع المبلغ المرقوم فیفتی بجواز ذلک قیاسا علی بیع الوفاالذی تعارفه المتاخرون احتیالاعلی الربا حتی قال فی مجموع النوازل اتفق مشایخنا فی هذاالزمان علی صحته بیعا لاضطرار الناس الی ذالک ومن القواعد الکلیة اذاضاق الامر اتسع حکمه فیندرج تحتها امثال ذلک مما دعت الیه الضرورة والله اعلم..آه ملخصا -

اوپه شرح المجلة دسلیم باز ص۲۴۸ کښې هم داراز نقل شوی دی دویمه طریقه داده چې مستأجر په دکان دمؤجر کښې جدک جوړکړی لکه الماری یانور الات دصناعة نوپه دی سره دمستأ جر دپاره حق دقرارثابتیږی چې داکارپه اذن دمؤجروکړی اوهم اداء داجرة دمثل ددکان کوی غیرله جدک څخه په الفتاوی تنقیح الحامدیة ج۲ ص۱۹۹ باب مشد المسکة کښې لیکلی دی:

وهذا الکردار یوجد فی زماننا ایضاً فی الحوانیت ویسمی جدکا وهو مایبنیه المستأجر فی الحانوت من ماله لنفسه ومایضعه فیها من الات الصناعة ونحو ذالک من الاعیان القائمة فیها باذن المتولین له بذالک اولمن باعه ذالک ویثبت له بذالک حق القرار مادام یدفع اجرة مثل الحانوت خالیة عن جدکه...آه

اوپه الفتاوی المهدیة فی الوقائع المصریة ج۵ ص۴۳ کتاب الاجارة کی لیکلی دی:

سئل فی رجل یملک جدکافی حانوت بحجة شرعیة والحانوت المذکور ملک لاخر وصاحب الجدک ساکن فی الحانوت المذکور ویدفع اجرة الحانوت لمالکها وهی اجرة مثلها فهل اذااراد المالک للحانوت اخراجه منها لایکون له ولیس له زیادتها عن اجرة المثل بدون رضاه (اجاب) لیس لمالک اجر المثل اذاثبت ماذکر بطریق شرعی و الله تعالی اعلم.

اوهمدارنګه په الفتاوی المهدیة ج۲ ص۴۵۷ کتاب الوقف کښې هم مضمون ذکرده په عنوان دسوال اوجواب سره دریم قسم اوطریقه داده چې مځکه مملوکه یاموقوفه اویا سلطانیه کي مستأجر تعمیر بناء کړی په اذن دمالک یادناظر په شرط دقرارنوبانی لره حق دقرارشته په دي شرط چې اجرة مثل دمځکي قطع نظر دبناءڅخه اداکوی په ردالمحتارکښې لیکلی دی:

قال فی جامع الفصولین وغیره بنی المستأجر اوغرس فی ارض الوقف صارله حق القرار وهو المسمی بالکردارله الاستبقاء باجرالمثل آه اوپه الفتاوی المهدیة ج۵ ص۴۹ کښې لیکلی دی:

سئل فی جماعة یملکون مکانااستأجره منهم رجل بازیدمن اجرالمثل واذنوه بالبناء فیه لیکون له

خلوابحق البقاء والقرار فبنى وعمر حسب الاذن منهم وجعله معداللصباغة ووضع يده عليه مدة نحواربع سنوات ثم باع ذلک الخلولرجل آخروضع يده عليه مدة تزيدعلى خمس عشرة سنة وهويدفع اجرة المثل وزيادة للمالكين ثم بعد تلک المدة قام المالكون الان يريدون ابطال ذالک الخلوو اجارة المكان لغيره ويزيدون عليه الاجرة تعنتا فهل اذاكان ذالک الخلوثابتا باعترافهم واطلاعهم وأخذ هم الاجرة تلک المدة لايجابون لماذكر ولايواجرونه لغيره حيث كان يدفع صاحب الخلواجرة المثل وزيادة (اجاب) اذاثبت الخلوالمذكور مستوفيا شرائط الصحة وواضع اليد قائم بدفع اجرمثل ذلک المكان بقطع النظر عمااحد ثه فيه لايكون لمالكى المكان المذكور ابطال الخلوبدون وجه شرعى ولااجارة المكان من غير صاحب الخلو والله تعالى اعلم.

اوپه الفقه الاسلامي وادلته ج۸ ص۲۲۳ کی هم دامضمون ليکل شوی ده اوکچيرته صاحب دخلوبعض عمارة کړی وی نودی شريک ده په دی مکان کی په اندازه دخپل عمارت بياکه عمارت ته په اينده کښی حاجت وودی به په خپله اندازه مصرف برداشت کوی لکه په غمزعيون البصائر على الاشباه والنظائر دامام حموی کښی په ج۱ ص۳۲۱ کي ليکلی دی:

اماکن ايلة الى الخراب فيکريها ناظر الوقف لمن يعمر ها ويکون ماصرفه خلو اله ويصير شريکا للواقف بمازادته عمارته مثلا لوكانت الاماكن قبل العمارة بنصف كل يوم وصارت بعدها تكترى بثلاثة انصاف فيكون صاحب الخلو شريكا بالثلث والثلثين فاذااحتاجت تلک المحلات الى عمارة كان على الواقف فى تلک الصورة مثلا الثلث وعلى صاحب الخلو الثلثان...آه

(۴) څلورم قسم اوطريقه داده چې يوشخص اراده وکړی چې دکانونه ياسرايونه جوړ کړی مخکی دجوړولودخلگو څخه پيسی واخلی ديويو دکان اويادسرای کيفيت او اندازه د دکان يادسرای ورته بيان کړی وروسته ترجوړيدوئ خلگوته تسليم اوکرايه پري مقرره کړی په دې صورت کی هم صاحب دخلوپه خپله حصه کې شريک بللى کيږى دخاونددکان سره په غمزعيون البصائرج۱ ص۳۲۱ کی ليکلی دی:

ووجهه ان الواقف لمايريدان يبنى محلا للواقف فيأتى له اناس يد فعون له دراهم على انيکون لکل شخص محل من تلک المواضع اللتى يريد الواقف بناء هافاذاقبل منهم تلک الدراهم فكانه باعهم تلک الحصة بمادفعوه له وكانه لم يقف جزء من تلک الحصة اللتى لكل وغايته انه وظف عليهم كل شهر كذافليس للواقف فيه بعدذلک تصرف الابقبض الحصة المؤظفة فقط وليس له ان يوجهه لغيره وكأن رب الخلو صارشريكا للواقف فى تلک الحصة...آه

(۵) پنځم قسم اوطریقه داده چې مالک ددکان وچاته دکان په خلو (سرقلفی) باندې ورکړي اومالک واخلي دسرقلفي والاڅخه یومقدارپیسي چې داجزء معجل دهغه اجرة اوکرایه وي اوهغه پیسي چې میاشت په میاشت یاکال په کال په کرایه کښي ورکوی هغه جزاءآخر مؤجل مکمل داجرة وي یعني هغه پیسي چې مالک ئې دمخه اخلي په کرایه کښي حساب شي په الفقه الاسلامي وادلته ج۴ ص۷۵۱ کی لیکلی دی:

مقابل الخلوان مايؤخذ اليوم ممايسمى بالفروغ اوخلو الرجل اواليد لامانع منه شرعا فی تقدير نافللمالک المؤجر ان يأخذ من المستأجر مقدارامقطوعا من المال مقابل الخلواوالفروغ ويعد المأخوذ جزء امعجلامن الاجرة المشروطة فی العقد واماماينفع فی المستقبل شهريا اوسنويا فهوبالا ضافة الى ماتم تعجيله يعد جزء آآخر مكملامن الاجرة مؤجل الوفاء ...الخ-

اوپه ردالمحتار ج۴ ص۱۹ کښی هم مثل ددي بیان ذکرشوی ده (۶) شپږم قسم اوطریقه داده چې یوه محکه وقفي وي اودپاره دتعمیرپه اجاره ورکول شي اوداجارې وقت معین وی مستاجر چې تعمیر اوبناء پرې وکړي روسته دتیریدو دوقت داجارې څخه دامستأجر کولای شي چې په اجرة مثل باندې راوګرځوی خوپه دې شرط چې وقف ته ضرر ونرسیږي اوداطریقه په دولتی محکه کی هم کیدای شي ځکه دوقف اودبیت المال یوحکم دی اماپه شخصی مملوکه کښی داطریقه نشی کیدای په مجموعة رسائل ابن عابدين ج۲ ص۱۴۸ کښي په رسالة مسماة تحرير العبارة فيمن هواحق بالاجارة کښی لیکلی دی:

وقال فی متن الملتقى وصح استيجار الارض للزرع ان بين مايزرع اوقال على ان يزرع ماشاء وللبناء والغرس واذاانقضت المدة لزمه ان يقلعها ويسلمهما فارغة الخ (ثم قال) وهكذافى عامة المتون والشروح والفتاوى فلا حاجة الى التطويل والاطناب الخ ثم قال لكن ذكر فی البحر عن القنية مانصه استاجر ارضا وقفاوغرس فيها وبنى ثم مضت مدة الاجارة فللمستأجر ان يستبقيها باجر المثل اذالم يكن فی ذلک ضرر ولوابى الموقوف عليهم الاالقلع ليس لهم ذلک انتهى (ثم قال) قلت وحاصله ان كلام المتون والشروح وانكان شاملاللوقف والملک لكن كلام القنية حيث اعتضد بماذكره الخصاف صار مخصصا لكلام المتون والشروح بالملک ويكون الوقف خارجا عن ذلک فللمستأجر الاستبقاء باجر المثل بشرط عدم الضرر على الوقف اصلا....آه-

اوهمدارنګه دغه مضمون په منحة الخالق على البحر الرائق ج۷ ص۳۰۵ کښی هم ذکرشوی ده داوي یوڅوطریقی اواقسام دخلو (سرقلفی) اوداچې موږ وویل چې داخلو

(سرقلفی) خرڅیږی اوهبه کیږی اوپه میراث وړل کیږی وغیره څکه چې غمز عیون البصائر علی الاشباه والنظائر د حموی ج۱ ص۳۲۲ کښې لیکلی دی:

وفائدة الخلو انه کالملک فتجری علیه احکامه من بیع واجارة وهبة ورهن ووفاءدین وارث ووقف علی الخلاف فی الاخیر وهذه الامور تؤخذ من فتوی الناصر اللقانی حیث جعله کالملک ومنه یعلم انه لامانع من تعد دالخلوات اذالملک یتعدد...آه

اوپه الفقه الاسلامی ج۴ ص۷۵۲ کی لیکلی دی: ونقل فتوی الفارسیین بجوازبیع الخلو وقال الشیخ محمد بیرم وماالشبه الخلو بالمغارسة غیر ان الخلو لاتحصل به ملکیة الرقبة لتعلقه بالمنفعة... الخ

اوهمدارنګه دنوروډیرو عباراتو دفقهاء څخه هم معلومیږی اوداچی موږ وویل چې دسرقلفی دکان ونریږی دسرقلفی والادپاره حق دابقاء اوداعاده کولو شته چې اجرة دمثل دمځکی اداء کوی په الفتاوی المهدیة ج۲ ص۴۸۷ کښې لیکلی دی:

سئل فی بناء فی ارض موقوفة مستحق للبقاء والقرار تهدم ذلک البناء وصارت الارض خالیة فهل لربه اعادته ثانیا کماکان اولا اجاب للمحتکر حق الابقاء والاعادة حیث کان قائما بدفع اجرة مثل الارض خالیة عن البناء علی ما علیه العمل والله تعالی اعلم

اوپه همدي الفتاوی المهدیة ج۲ ص۴۹۵ کی هم لیکلی دی:

(سئل)فی دکان موقوفة آلت الی السقوط فجاء رجل واخذ ها من ناظر الوقف وبنا ها واصلحها وکتب له الناظر حجة بان البانی صارله فی الدکان خلووانتفع وهو البناء الذی بناه وبقیت ارض الدکان وحیطا نها القدیمة وقفا علیها الحکرکل سنة یؤخذ من البانی ثم باع الرجل ذالک الخلو لرجل آخر وصارناظر الوقف یأخذ الحکر من المشتری ایضاً ثم هدمت تلک الد کان هی وغیر هافی طریق امر الحاکم بتوسعتها وتلف من ارضها مقدار الثلثین فی توسعة الطریق المأ موربها واخذ ذلک الرجل المشتری للخلوبدل ماکان یملکه من الحاکم الهادم للدکان فیما کان هدمه من الدکان وامره ناظر الوقف بعدم البناء فیما بقی من ارض الدکان ثم ان الناظر توجه للحج ورجع فوجده بانیا فی تلک محلافهل یکون متعدیا ببنائه لزوال معظم ماکان یملکه واخذ بدله وهل له قیمة مابناه منقوضا لتعدیه ویرجع المحل وقفا خالصا لاشائبة ملک فیه (اجاب) للمحتکر حق الاعادة فیما من الارض اللتی کانت بیده مادام یدفع اجرة مثل الارض خالیة عن بنائه ولیس لنا ظر الارض معارضته ولاتکلیفه القلع والحال هذه والله تعالی اعلم.



مولانااحمدنوری عفی عنه مولاناعبدالله مولانامحمدخواص مولوی نذاحمدالحقانی مولوی عبدالحکیم عفی عنه مولانازمان شاه مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارافتاء دولت افغانستان

## یوازې بائع بیع فسخ کولای شي اوکنه

پوښتنه : یوشخص چې دبل شخص څخه زمکه په بیع قطعي رانسې بائع ودغه مشتری ته زمکه تسلیم کړی اواندازه اوحدودئې معین کړی بیادغه بائع ومشتری ته ووائې چې دغه زمکه ترهغه اندازې ډیره ده چې بیع پرسوی وه راسه چې دوهم وارییا زمکه بیرته اندازه کړونو کچیری مشتری دپاره ددفع دجنجال دوباره زمکه ورسره اندازه کوی په دغه وخت کی داندازي بائع کوه لاي سی چې بیع ماته کړی بیله رضاء دمشتری که یا شرعی فتوای غوارم اجرموروزی سه.

(مستفتی ملافضل کرم اخند)

باسمه تعالی

الجواب حامد اومصلیا

کچیري مشتری دبائع سره دوهم وارزمکه اندازه کړی ددفع دجنجال دپاره بائع نسی کولای چې په دغه وخت کښې داندازې بیع نقض کړی بی اختیار دمشتری ځکه چې بیع خوپه ایجاب اوقبول سره تامیږی وروسته ترایجاب اوقبول بیایوحق دفسخ بی رضادهغه بل نه لري اوفسخ چې ده رضاء ددواړو عاقدین غواړی:

واذاحصل الایجاب والقبول لزم البیع ولاخیار لواحد منهما الامن عیب اوعدم رؤیة ( الهدایة ج۳ ص۲۵ )للعاقدین ان یتقایلاالبیع برضاهما بعدانعقاده المجله المادة (۱۹۰ ) فالرضاء شرط الاقالة کما فی سائر العقود( شرح المجلة لسلیم باز ص۹۲ )والله اعلم بالصواب

## مشترۍ چې مبیع پردریم سړی خرڅه کړی نواول بائع حق درجوع پرمبیع لری اوکنه

پوښتنه : اول سعید احمد ۶۸ زره ریاله دعبدالرحمن نامی قرض داره وودوهم دغه قرضداره چې سید احمدنومیږی خپل ۲ دکانه ئې په ۲نیم سوه لکه په بیعه دسرقلفی ورکړل

دریم عبدالرحمن خپل ۶۸ زره ریال په کالداروئې تسعیرکړی سیداحمد نامی خپلی افغانی په کالداروواړولی په دی وخت کی دسید احمد تقریبا ۱۴ زره کالداری ورغلی چې عبدالرحمن ورکړی څلورم عبدالرحمن نامی خپل دکانونه دتسلیمی دخط سره واخیستل تقریبا ۳ میاشتی بعد دکانونه ئې پربل چاخرڅ کړل په هرعلة چې وه هغه سړی دکانونه بیرته عبدالرحمن ته پرینبودل پسله دی عبدالرحمن دکانونه وخپل اول مالک سید احمد ته په رضادجانبین مستردکړه عبدالرحمن ادعاء دخپلو پیسووکړل اوس تقریبا دوه دری کاله تیرسوی دی اوس عبدالرحمن نامی داته شپیته زره ریاله مستحق دی اوکه دکالدارو چې ریال په تبادله سوي دی اوکه دهغه افغانیو چې ۲نیم سوه لکه دی چې هغه دکانونه ئې په رانیولی وه والسلام -

(مستفتی اغامحمد ۱۲ سرطان ۱۳۷۶)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون ملهم الصواب

عبدالرحمن نامی نه د۶۸ زره ریاله مستحق دی نه دکالدارونه دافغانیو بلکه هغه دکانونه دده کیږی اوپه هغوکړی ده ته خپل قرض رسیدلی دی دی نشی کولای چې دکانونه سید احمدته ورمستردکي البته که بیع وکی ددغه دکانودسیداحمد سره (نوی بیع) نوصحت لری اودااقالة ځکه صحت نه لری چې عبدالرحمن دادکانونه پردریم سړی خرڅ کړي دی اودده دملک څخه وتلی دی نوددي وروسته حق داقالی قطعا نه لری لکه خیارعیب چې په بیع سره دمبیعی باطلیږی اوداقانون دفقهاء دی چې هرشئ چې خیارعیب باطلوی نواقاله هم باطلوی خیارعیب په بیع سره دمبیعی باطلیدی نواقاله هم په بیع دمبیعی باطلیږی:

وزاد صاحب المنح اذاباع المشتری المبیع من آخر ثم تقایلا ثم اطلع علی عیب کان فی ید البائع فاراد ان یرده علی البایع لیس له ذلک لانه بیع فی حقه کانه اشتراه من المشتری منه (مجمع الانهر ج۲ ص ۲۷) وهکذافی (شرح المجلة للاتاسی ج۲ ص ۷۲) مایمنع الرد بالعیب یمنع الاقالة( فتح القدیر ج ۵ ص۲۵۱ ط دارصادربیروت) وهکذافی ردالمحتار ج۴ ص۱۶۷ (ویمنع صحتها هلاک المبیع ) ولوحکما کاباق الدرالمختار بهامش ردالمحتار ج۴ ص۱۶۷ وهکذافی مجمع الانهر ج۲ ص۷۳)

اوبیع دمبیعی په هلاک حکمی کی داخل دی لکه چې وایي:

فلاتصح بعد هلاکه ولوحکما علی الظاهر بان باعه ثم شراه ( الدر الختار) قوله (بان باعه ثم شراه ) من صور الهلاک حکما لان تبدل الملک کتبدل العین ولذایمتنع بذلک رده بالعیب والرجوع في الهبة( ردالمحتار ج۴ ص۱۸۶ ) واللّٰه اعلم بالصواب

مولوی عبدالحکیم عفی عنه مولوی نذاحمد الحقانی مولوی احمد نوری عفی عنه مولانا محمود میرنوال مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء دولت اسلامی افغانستان

معلوی محمد اخلاص برکتی

**حکومت یوخوک پرخپل ملک خرخولومجبورولای شي کنه؟**

**دغائب ملک په عمومي لاره ګډول څه حکم لری؟**

**که جائزوی نوغائب ته به د کوم وخت قیمت ورکول کیږی؟**

**اودغه اجباری رانیول شوی ملک بیرته حکومت خرخولای شي کنه؟**

**اوخلک یااصلي مالک قبضه پرکولای شي اوکنه ؟**

پوښتنه :دافغانستان دعلماء دمرکزی شوری ددارالافتاء عالی مقام ته السلام علیکم ورحمة اللّه وبرکاته محترما دکمونستی انقلاب په دوران کی دوخت حاکمانودکندهارښار ۴ ناحیوکی دخلګوکورونه او دکانونه تخریب شرقا اوغربا شمالااوجنوبا سړکان وایستل چې د۱۳۵۷ کال څخه دمخه دترتیب شوی ماستر پلان سره ئې داولی ناحیه شرقی اوغربی طرف سړک اودڅلورمی ناحیه شمالی اوجنوبی طرف سړک څه ناڅه مطابق دی چې ددی ۴ ناحیودسړکانوپه ایستلوکی لاندنی مشکلات منځ ته راغلی چې په لاندی دول ئې په عرض رسوو (۱) یوتعدادخلګ چې کورونه یادکانونه ئې تخریب اوتعین سوی قیمت ئې دښاروالی څخه اخستی اوقبالی ئې دولت ته ورکړی اویو تعداد خلق چې اصلا په هغه وقت کی نه وه اوس حاضراودهغه وقت په تعین سوی قیمت قناعت نه لری داسی وایي چې یادی داوسنی وخت قیمت راکول سی یادی زموږ دملکیت باقی حصه چې په استملاک کی راغلی اوترسړک اضافه ده موږته پاته سی که څه هم تیرکال مرافعی محکمی دیواستعلام په جواب کی سابقه تعین سوی قیمت تائیدکړی ووپه دی هکله لازم هدایت وکړی که څه هم په سلوکی پنځه نوی خلګو تعین سوی قیمت اخستی دیرکم خلق پاته دی (۲) دبو

تعداد خلګو چې کورونه یادکانونه ئې په سړک کی تخریب اوقیمت ئې نه دي اخستی په
هغه وقت کی دښاروالی لخوادسړک څخه اضافه حصه په نوروخلګودقانونی مراحلو
دصحی کیدووروسته خرڅه سوی اوشرعی قباله ورکړه سوي ده آیالومړی نفرچې کورئې
تخریب اوقیمت ئې نه دي اخستی اوپه استملاک کی راغلی مستحق دی اوکه دوهم نفر
چې ښاروالی همدغه ځا ی چې دلومړی نفرووتخریب سوی اوقیمت ئې نه دي اخستی
ورباندی خرڅ کړی اوشرعی قباله ئې ورکړی مستحق دی (۳) ښاروالی په نظرکی لری چې
دنومړو سړکانوپه توسعه کی اقدام وکړی دنومړو سړکانوبرچې (۲۰) متره دی
اوبعضی اضافه حصی ښاروالی په هغه وخت دقانون مطابق خرڅی کړی اوزیاته برخه ئې
یوتعداد خلګوپه خپل سر قبضه کړی چې دسړک ماهیت اوکیفیت ئې له منځه وړی چې په
دی حصه کی دهغوخلګو ملکیت هم شامل دی چې قیمت ئې نه دي اخستی دشرعی
احکامو مطابق ښاروالی څنګه اقدام دسړکانوپه توسعه کی وکړی اودنومړو سړکانو
دپلان تطبیق پاته کیدونکی نه دی والسلام.

(ریاست ښاروالی قندهار مدیریت املاک)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون ملهم الصواب

څرنګه چې دمستفتی پوښتنه پرڅو جزئیاتومشتمله ده نودپاره دتوضیح دمطلب باید
دلاندی جزئیاتو لپاره جلاجلا جواب ووایو ترڅوچې شافی جواب داصل استفتاء ښه
واضح سی اول سوال آیادسړکانو جوړولودپاره یوڅوک مجبورول دخپل سرای یادکان
خرڅولو ته جائزدی کنه؟ جواب جائزدی که چیری مصلحت دعامو خلقوپه نظرکی نیول
سوی وو لکه په الفقه الاسلامی ج۵ ص۵۱۸ کی چې راغلی دی:
وکذلک یحق للدولة التدخل فی الملکیات الخاصة الشروعة التحقیق العدل والمصلحة العامة-
خوپه دی شرط چې دهغه وقت مناسب قیمت به ورکول کیږی اوباید قیمت دقبض څخه
دملک مخ ته ورکول سی:
لدی الحاجة یؤخذ ملک کائن من کان بالقیمة بامر السلطان ویلحق بالطریق لکن لایؤخذ من یده مالم یؤ
دله الثمن انظر الی مادتی ۲۵۱ انتهی (المجلة المادة ۱۲۱۶ وهکذافی شرح المجلة لسلیم باز ص۴۳
والاتاسی ج۴ ص۱۵۸ والفتاوی الخانیة بهامش الهندیة ج۱ص۲۷۹ والفقه الاسلامی ج۵ ص۵۹۰)

دوهم سوال آیا ملک دغائب گډول په لارباندی جائزدی کنه؟
جواب که چیری قریب دغائب یاوکیل دده حاضروودهغه سره به بیع وشی اوکه هغه نه وونود ضرورة په خاطر جائزدی کچیری ضرورة شدیده وولکه الاشباه والنظائر ص۸۵ کی وایي:
الضرورات تبیح المحظورات ومن ثم جاز الخ وكذااتلاف المال واخذ مال الممتنع من اداءالدين بغير اذنه اوپه جامع الفصولين ج۱ ص۴۳ کی وایي اقول قداضطربت اراء هم وبيانهم فى مسائل الحكم على الغائب و له ولم يضف ولم ينقل عنهم اصل قوى ظاهر تبتنى عليه الفروع بلااضطراب ولااشكال فالظاهر عندى ان يتأمل فى الوقائع ويلاحظ الحرج والضرورات فيفتى بحسبها جوازا وفسادا۔
دریيم سوال آیا دغه غائب که یووقت خاضرشی آیاده ته به دکوم وقت قیمت ورکول کیږی دهغه وقت چې دده مال تلف شوی دی اوکه دهغه وقت چې دی حاضرشوی دی ؟جواب دهغه وقت قیمت معتبرېږی چې اتلاف دده دمال شوی دی اوداځکه چې حکم داتلاف دضمان په باره کی حکم دغصب دی اوپه غصب کی قیمت دورځی دغصب معتبرېږی لکه په الفقه الاسلامی ج۵ ص۷۵۰ کی چې وایی:
الواجب بالاتلافات المالية هوالواجب بالغصب وهو ضمان المثل انكان المتلف مثليا وضمان القيمة يوم الاتلاف فيمالامثل له الخ (وهكذافى بدائع الصنائع ج۷ص۱۶۸) وان كان المغصوب من القيميات وتلف فالواجب القيمة الخ وانكانت زيادة القيمة لتفسير الاسعار لم تضمن الزيادة لان نقصان القيمة لهذا السبب لايضمن اذاردت العين المغصوبة بذاتها فلا يضمن عندتلفها (الفقه الاسلامی ج۵ص۷۲۲ )واماالعقار كالارض والدار فلا يتصوروجود الغصب فيه لعدم امكان نقله وتحويله فمن غصب عقار افهلک فى يده بافة سماوية كغلبة سيل لم يضمنه عندهما لعدم تحقق الغصب بازالة اليد لان العقار فى محله لم ينقل فصار كمالوحال بين المالک وبين متاعه فتلف المتاع امالوكان الهلاک بفعل الغاصب كان هدمه فيضمنه لان الغصب اذالم يتحقق فى العقار فيعتبر الاتلاف ( الفقه الاسلامی وادلته ج۶ ص ۴۷۹۱ ط رشيديه كوئته )
څلورم سوال: آیادغه غائب سرې چې دسرای یوڅه حصه ئې په سرک کی تللی اویوڅه حصه ئې پاته ده ددغه باقی حصی حق لری کنه؟ جواب غاصب یامتلف چې یوځای قبض کړی اوضمان پری لازم شی نوهغه ځای پس دضمان دده ملکیت ګرځی مغصوب منه حق ددعوی بیانه لری لکن غاصب یامتلف ته حق دتطرف په دغه شئ کې هغه وقت شته چې ضمان

ورکړی لکه الفقه الاسلامی ج۵ ص۷۲۳ کی وایی:
قال الحنفية يملک الغاصب الشئ المغصوب بعدضمانه من وقت وجود الغصب حتى لايجتمع البدل والمبدل فی ملک المالک الخ ولکن فی رأی ابی حنيفة ومحمد رحمهما الله تعالى لايحل للغاصب الانتفاع بالمغصوب بان ياکله بنفسه اويطعمه غيره قبل اداء الضمان الخ (هکذافی بدائع الصنائع ج۷ ص۱۵۲ وتبيين الحقائق ج۵ ص۲۳۰)

**پنځم سوال: هغه حصه چې دلارې څه اضافه وی اوضرورة ورته نه وی آیاخرڅول یی پرغیر جائز دی کنه؟جواب جائزدی لکه المجلة المادة ۱۲۱۷ کښی چې وایي:**
يجوزان يعطى رجل مازاد عن حاجة الطريق من جانب الميری بثمن مثله ويلحقه بداره اذالم يضرذلک بالمارين (سليم باز ص۶۶۷ وهکذا ص۴۳ والفتاوی الخانية بهامش الهندية ج۱ص۲۷۹)

**شپږم سوال: هغه حصه چې دلارې څخه اضافه وی قبضه کول یی دخلقودپاره جائزدی کنه؟**
**جواب قبضه کول یی دخلقودپاره بی اذنه دحکومت حرام دی والله اعلم**



*مولوی نذاحمد الحقانی مولوی احمد نوری عفی عنہ مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دار الافتاء دولت اسلامی افغانستان*

## دلارې جوړولوپاره دچاځمکه په زوررانیول څه حکم لری

**پوښتنه: ومحترم دکندهاردارالافتاء رئیس صاحب ته السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته محترمه څرنګه چې په کلیواودهاتوکی لارې بندی دی غټ غټ کلی دی چې خلک ئې طلب کوی چې لارورته جوړې سی طالبان چې لارې جوړوی دخلکو په شخصی ځمکوکښی تیریږی حتی دیتیمانو په ځمکوکی تیریږی اود لار تیرول هم ضروری وی ځکه چې دیوغله اوقاتل وغیره مجرم نه کیږی چې لارې نه وی ځکه چې ۲ ساعته مزل لاره وی اوهغه کارپه یوه یا ۲ کسانوهم نه کیږی چې ډیر نفرنه وی ځکه چې مجرمین دکمزوری په صورت کی مقابله کوی نوبناپردی ضرورت هیله لرم چې شرعی فیصله راکړی چې دخلکود اکثریت**

رضاوى يونفرمانع وئ يايتيم يائ وارث مانع وى په داسى صورت كي لاره جوړول جائزدى كه يا هيله ده چې يوه شرعى فيصله راكړى موږ كوشش كوو پرهغه لاره لاري باسوچې ډير نقصان پكښى نه وى مثلا پريوه طرف ډير درختى اوديوالونه وى موږ بله داسى لاره لټوو چې درختى اوديوالونه پكښى وى نه ياخولړوى نسبت وهغه بلى لارى ته نوهيله ده چې دامشكل ديو شرعى فيصلى په اساس راحل كړى والسلام.

(ملامحمد حسن رحمانى والى قندهار)

جواب للاستفتاء بعون الله تعالى

مځكه چې په ملك كى دخلګووي تصرف دهيچا پكښى روانه دى بيله اجازى اوبيله رضادخاوند دمځكى:

كماقال فى تحفة الفقهاء ج۳ ص۳۲۱ ارض مملوكة عامرة لايجوز لاحد التصرف فيها والانتفاع بها الابرضا صاحبها -

په وقت دضرورت كى امام لره تصرف په مځكه كى دبل سته اوچې دلاس داصلى مالك يي وباسى داهم رواده :

هكذافى الفقه الاسلامى ج۵ ص۵۲۳ فان لولى الامر عند الضرور ة ان ينتزع الارض من ايد ى واضعى اليد عليها ويعوضهم عنها اذاا قتضت المصلحة العامة نزعها-

نومعلومه سوه چې په عوض سره رواده په وقت دضرورت كي مځكه ديتيم په حكم كى دوقف ده اومځكه د بيت المال هم په حكم كى دوقف ده.

هكذافى ردالمحتار على الدر المختار ج۳ص ۴۳۵ ثم ان ارض اليتيم فى حكم ارض الوقف كما ذكره فى الجوهرة وافتى به صاحب البحر والمصنف كذاارض بيت المال وهكذافى شرح المجلة سليم باز مادة۵۸ ص۴۲ التصرف على الرعية منوط بالمصلحة آه وكذافى ص۴۳ وقدقالو ايضاً للسلطان ان يجعل ملك الرجل طريقا عند الحاجة وكذاتصرف القاضى فيماله فعله فى اموال اليتامى والتركات والاوقاف فانه مقيد بالمصلحة آه هكذافى شرح المجلة لسليم باز م ۱۲۱۶ ص۶۶۷ لدى الحاجة يؤخذ ملك كائن من كان بالقيمة بامر السلطان ويلحق بالطريق آه هكذافى الخانية ج۱ ص۲۷۹ على هامش الهندية قالواوللسلطان ان يجعل ملك الر جل طريقا عند الحاجة هكذافى( الفقه الاسلامى ج۵ ص۵۰۹- ب- الاستملاک للمصالح العام وهو استملاک الارض بسعرها العادل جبراعن صاحبها للضرورة اوالمصلحة العامة كتوسيع مسجد او طريق ونحوهما

وایضاً الفقه الاسلامی ج۵ ص۵۱۸ )وکذلک یحق للدولة التدخل فی الملکیات الخاصة المشروعة لتحقیق العدل والمصلحة العامة–خوشرط داد ی چې دهغه وقت مناسب قیمت به ورکوی اوباید قیمت دقبض څخه دملک ترمخه ورکول شی: لدی الحاجة یؤخذ ملک کائن من کان بالقیمة بامر السلطان ویلحق بالطریق لکن لایؤخذ من یده مالم یؤ دله الثمن انظر الی مادتی ۲۵۱ – ۲۶۲ انتهی المجلة المادة ۱۲۱۶ –والله اعلم بالصواب



مولوی احمدنوری عفی عنہ مولوی نذاحمد الحقانی مولوی محمود میوندوال

**مشتری که بي دثمن له اداکولو مبیع خرڅه کړی اومړشي نوبائع به څه کوی ؟**

پوښتنه : غوارم ستاسو دمحترم حضور څخه مسئله یوسړی موټر خرڅ کړی پر بل چاباند نواوس هغه سړی هلاک اومړسونو اوس به فعلا رجوع پرچاکوی چې ثمن ئې نه وی تسلیم سوی بایع ته آیاپر ورثه دمشتری به رجوع کوی اوکه به پرمبیعه باندی حال داچې مبیعه خرڅه سوی ده پر بل دریم چاباندی والسلام. (المسفتی محمد هاشم)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب ومنه الصدق والصواب

که چیری مشتری مبیعه قبض کړه اودی په حالت دافلاس کی وفات سوترمخه داداکولو دثمن په دغه صورت کي بائع حق نه لري چی طلب د ردوالی وکړی دمیت له ورثه څخه بلکه دغه بائع دمبیعی دثمن په باره کي دنورو غرماء سره بزابردی نوپه صورت مسئوله کی بائع اول پرمبیعه باندی چې دمشتری ثانی په لاس کی ده په طریق اولی رجوع نسی کولای:

اذاقبض المشتری المبیع ثم مات مفلسا قبل اداء الثمن لیس للبائع استرداد المبیع بل یکون مثل الغرماء ( معین القضاة والمفتین م۶۶۷ ص۱۰۹ )وقال الحنابلة والحنفیة والمالکیة صاحب المتاع اسوة الغرماء. بدلیل روایة ابی بکر بن عبدالر حمن عن ابی هریرة ومعناها ایمارجل مات اوافلس فوجد بعض غرمائه ماله بعینه فصاحب المتاع اسوة الغراماء( الفقه الاسلامی ج۵ ص۴۸۰ )والله اعلم.

مولوی نذاحمد الحقانی مولوی احمد نوری عفی عنہ

## دشریکانوبي اجازی مشترکه ځمکه

## خرڅول حال دا چې په شریکانوکي صغیران هم وی څه حکم لری

پوښتنه : وحضورته دافغانستان داسلامی دولت ومقام ته دکندهار ددارالافتاء جناب محترم رئیس صاحب السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته محترمه! زه مولوی امین الله دمحمد روستم زوی دښار ولیکوټ دولسوالی مربوط عرض ستاسو مقام ته کوم چې یووررور مشترکه ځمکه بیله مصلحت خرڅه کړی په دغه وقت کی صغیران هم وی ددغی ځمکی بیع صحت لری اوکه به باطله وی دشریعت دنګاه څخه نوزه ستاسو دمحترم مقام څخه امید کوم چې وماته ددغی ځمکی دشریعت په حکم معلومات راکړی دابه ستاسو دشفقت څخه بعید نه وی بااحترام.

(المستفتی مولوی امین الله)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب باسم ملهم الصواب

نحمده ونصلی علی رسوله الکریم

کوم ورور چې دورثه ووبی له اجازی څخه مشترکه مځکه خرڅه کړی ده د هغه بیع دده په خپله حصه کی صحیح ده اوپه ورثه ووکی چې کوم کسان بالغان دی دهغو په حصه کی بیع دهغو پر اجازه موقوفه ده که ئې اجازه کړی وی ددوی په حصه کی بیع صحیح ده که اجازه نه وی بیع صحیح نه ده اودصغیرانو په حصه کی ئې بیع باطله ده ځکه چې دغه دمځکی خرڅوونکی دصغیرانو ولي دی نه وصی دی :

باع نصف البناء مع نصف الارض جازسواء باعه من اجنبی اومن شریکه( الفتاوی الهندیة ج۳ ص۱۵۶ )اذاباع الرجل مال الغیر عند نایتوقف البیع علی اجازة...المالک ویشترط لصحة الاجازة قیام العاقدین والمعقودعلیه...واذامات المالک لاینفذ باجازة الوارث( الهندیة ج۳ ص۱۵۲ )اماالولایة علی مال الصغیر القاصر فتکون لاحد الاولیاء الستة الذین ذکرناهم سابقا وهم الاب ووصیه والجد ووصیه والقاضی ووصیه( الفقه الاسلامی ج۴ ص۱۴۳ )



مولوی محمد اخلاص برکتی

مولوی نذاحمد الحقانی مولوی احمد نوری عفی عنه

**پوروركونكي كه په غبن فاحش سره له پوروړي خريداري وكړي حق درجوع لري كنه**

پوښتنه زماپريوچاپورباندي دي نودمديون څخه مايوشئ رانيوى مثلاپه ۱۵۰۰ هغه شئ په بازاركي په ۱۰۰۰ وونوددغه ۵۰۰ دپاره زه رجوع ومديون ته كولاى سم كنه؟

(المستفتى ملاشهاب الدين)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب باسم ملهم الصواب

په صورت مذكوركى دغه زيادت د پنځه سوه غبن فاحش بلل كيږى كه چيرى ترقيمت د قيمت كونكو نه لاندى كيدى په غبن فاحش كى كئ دمبيعى صفت بغيرد هغه د حقيقة څخه كړى ووچې وهغه ته تغريرواى نورجوع كيدلاى شي ورنه رجوع نشى كيدلاى :

واعلم انه لاردبغبن فاحش وهوما لايدخل تحت تقويم المتقومين فى ظاهر الرواية وبه افتى بعضهم مطلقا كمافى القنية ثم رقم وقال ويفتى بالرد...ان غره اى غر المشترى البائع اوبالعكس اوغره الدلال فله الرد الخ (الدر المختاربهامش ردالمحتار ج۴ ص۱۷۸) وذلک كمالووقع البيع بعشرة مثلا ثم ان البعض المتقومين يقول انه يساوي خمسة وبعضهم ستة وبعضهم سبعة فهذاغبن فاحش لانه لم يدخل تحت تقويم احد(ردالمحتار ج۴ ص۱۷۸ )ليس للغبن الفاحش وحده فى ظاهر الرواية اثر على العقد فلايجيز ردالمعقود عليه اوفسخ العقد الااذاانضم اليه تغرير ( اى وصف المبيع بغير حقيقته ) من احد العاقدين اومن شخص اخر كالدلال ونحوه وهذامااخذت به المجلة (م۳۵۷ ) لان الغبن المجرد عن كل خديعة يدل على تقصير المغبون وعدم ترويه وسواله اهل الخبرة ولايدل على مكر العاقد الاخر الفقه الاسلامى ج۴ ص۲۲۲ )والله اعلم وعلمه اتم واحكم

مولوى نذمحمد الحقانى

**ديتيم حصه نورورثاء خرڅولاى شي اوكنه**

پوښتنه : محترم رئيس صاحب دارالافتاء په ورثه ووكښى يو يتيم د ۹ نيم كالودى آياد دغه يتيم حصه دسراى څخه موريااناياىل قريب خرڅه ولاي سى كنه؟ بينواتوجروا

(المستفتى حاجى ميرآغا)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون الملک الوهاب

موريا اناديتيم دمځكى دخرڅ تصرف نسي كولاى حاصل دادى كه يتيم وصى دپلاردرلود

خوهغه به ئې تصرف کوی که ئې نه درلود یعنی پلارئې مړسوی وووصی ئې نه وودرولی نو بیاحق دتصرف وصی لره دنیکه دی او که ئې وصی دنیکه هم نوونو بیاحق دتصرف قاضی لره اویاوصی لره دقاضی دی نو دغه مذکور اشخاص مځکه دیتیم خرڅولای سی فقط لکن دغه خرڅ هم په هغه وقت کښې دی چې دغه لاندی اعذار موجود شی:

(۱) په ضعف دقیمت ئې خرڅه کړه

(۲) دپاره دنفقې دیتیم ئې خرڅه کړه

(۳) دپاره دپورپرمیت ئې خرڅه کړه

(۴) دپاره دوصیت دمیت ئې خرڅه کړه

(۵) حاصلات ئې پرمؤنت نه زائد کیدل نوئې خرڅه کړه

(۶) دییری دخرابیدلوئې خرڅه کړه

(۷) دییری دنقصان ئې خرڅه کړه

(۸) پلاس کښې دمتغلب وه وصی ییری دی چې متغلب ئې قبضه کوي نوئې خرڅه کړه

او که دغه اعذار موجود نه وه دغه مذکور اشخاص هم مځکه دیتیم نسی خرڅولای اوهرچې نور منقوله اموال دی په هغو کښې مصلحانه تصرف کولاسی:

وجاز بیعه عقار صغیر من اجنبی لا من نفسه بضعف قیمته اولنفقة الصغیر اودین المیت اووصیة مرسلة لانفاذلها الامنه اولکون غلاته لاتزید علی مؤنته اوخوف خرابه اونقصانه اوکونه فی یدمتغلب درر واشبا ملخصا قلت وهذالوالبائع وصیالامن قبل ام واخ فانهما لایملکان بیع العقار مطلقا ولاشراء غیر طعام وکسوة الخ( الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ج۵ ص۵۰۲ )قوله لا من قبل ام اواخ ای اونحوهما من الاقارب غیر الاب والجد والقاضی( ردالمحتار ج۵ ص۵۰۲)وولیه ابوه ثم وصیه بعدموته ثم وصی وصیه کمافی القهستانی عن العمادیة ثم بعدهم جده الصحیح وان علا ثم وصیه ثم وصی وصیه قهستانی ثم القاضی اووصیه ایهما تصرف یصح آه( طحطاوی علی الدرالمختار ج ۴ ص۲۴۳ )

مولوی احمدنوری عفی عنه مولوی نذاحمد الحقانی مولوی محمود میوندوال

## په دري کاله کي دآبادولوپه شرط چي ښاروالي ځمکي خرڅوي جواز لري کنه

پوښتنه : بریاست دارالافتاء به علمای محترم شرع مبین السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته به مسئله ذیل شریعت چه میفرمایند زمینیکه ازطرف دولت ازملکیت شخصی خریداری واستملاک شده وبعدا طبق نقشه شهری به فروش رسیده بادر نظرداشت قانون : ساروالی خریدارباید درظرف سه سال به آبادی آن اقدام کندولی اقدام نکرده : ساروالی طبق قانون خودبعدازمیعادسه سال ویابیشترطبق ماده ۳۷و۳۸ به مستردی آن اقدام وبه نفردوم به فروش رسانیده نفردوم به آبادی آن اقدام نکرده نتوانسته که ابادنماید خودش زمین رابه : ساروالی واگزارشده و : ساروالی به نفرسوم به فروش رسانیده که نفرسوم طبق نقشه شهری آباد نموده وازطرف : ساروالی سند ملکیت وازریاست محکمه قباله شرعی اخذکرده است اکنون نفراول ادعاء ملکیت داردو : ساروالی نفرسوم راکه قباله شرعی بدست دارد مستحق میداند درین باره چه میفرمایند تاابادر نظرداشت شریعه غراء محمد صلی الله علیه وسلم به قناعت مراجعین پردازیم ومن الله التوفیق

بسم الله الرحمن الرحیم

بعون الله الملک العلی الاعلیٰ

زمینیکه ازطرف دولت به فروش رسیده بادر نظرداشت قانون : ساروالی که آن درذیل استفتاء مذکوراست که خریدارباید درظرف سه سال به آبادی آن اقدام نماید چون این قانون : ساروالی هایک شرط متعارف آنان است وشرط متعارف درشریعت مطهرة صحیح ومعتبراست ولازم الوفا است اگرچه ازمقتضیات عقدنباشد وملایم باونباشد خواه عام باشد خواه خاص اگرچه که حادث باشدکه درکتب فقهاء کرام یافته نمیشود بعدازآن که مخالف نص شرعی یعنی کتاب وسنت واجماع نباشدپس بناء براین شرط مذکوراقدام : ساروالی به مستردی آن زمین طبق ماده مذکوردراستفتاء ازمشتری اول صحیح وبجااست وهم واگذاشتن مشتری دوم زمین رابسبب نتوانستن بجا آوردن شرط مذکورواخذنمودن : ساروالی ازوجائزومعتبراست پس اکنون مشتری سوم که : ساروالی اورامستحق میداند مستحق است چراکه ایفاء وعمل نمودن شرط متعارف کرده :( المادة ۱۸۸ )البیع بشرط متعارف وهو الشرط المرعی فی عرف البلدة صحیح والشرط معتبر مثلا لوباع فرواً علی ان یخیط بها الظهارة اوالقفل علی ان یسمره فی الباب اوالثوب علی ان یرقعه یصح البیع ویلزم علی البائع الوفاء بهذه الشروط وهذااذاکان الشرط متعارفا فی عرف البلدة والاالشرط مفسد والبیع فاسد راجع شرح المادة ۳۶ ولوباع الثمر علی

الشجر وکان بعضه قدادرک والبعض الاخر لم یدرک فشرط بقاءه علی الشجر حتی ینضج صح علی قول محمد وبه یفتی( ردمحتار ) شرح المجلة سلیم باز ص۸۸ العادة محکمة یعنی ان العادة عامة کانت اوخاصة تجعل حکما لاثبات حکم شرعی مجلة الاحکام( المادة ۳۶) وایضاًفی شرح المجلة الاتاسی ج۲ ص۶۴ ج۲ ص۶۵ ورسائل ابن عابدین ج۲ ص۱۱۴ الی اخر رسالة نشر العرف فی بناء بعض الاحکام علی العرف والله تعالی اعلم

*مولوی احمدنوری عفی عنہ مولوی نذاحمد الحقانی*

## له نورو دکانونوڅخه مخالف جنس په یوه دکان کې خرڅول

پوښتنه : دهغه خلقو په باب چې په خپل دکان کی داسی اجناس خرڅوی چې دهمسایگانو ددکانونو سره دیر توپیرولری مثلادبزازانوددکانو په مابین کی دپتاتو یاپیازو خرڅول اوهمسایگان شکایت ځنی ولری والسلام.

(مستفتی ملاهدایت الله رئیس بناروالی قندهار)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون ملهم الصواب

هر سړی کولای سی چې په خپل دکان کی دخپلی خوښی اورضا مطابق شئ خرڅ کړی اوهیڅ چالرو داحق نسته چې دی منع کړی ترڅو چې بل چاته یی ضررفاحش نه وی رسولی اوضررفاحش دی ته ویل کیږی چې یامنع دمنفعة اصلیه مقصوده څخه راولی یاسبب دنړید لو دهمسایگانو دبناء سی:

لایمنع احد من التصرف فی ملکه ابد االااذااضر بغیره ضررافاحشا ( المادة ۱۱۹۷ ) الضرر الفاحش هوکل مایمنع الحوائج الاصلیة یعنی ا لمنفعة الاصلیة المقصودة من البناء کا لسکنی اویضر البناء بان یجلب علیه وهنا ویکون سبب انهدامه (المادة ۱۱۹۹ ) والله تعالی اعلم

*مولوی عبدالحکیم عفی عنہ مولوی نذاحمد الحقانی*

## یوچاته په بیع اواجاره کي اختیارورکول

پوښتنه:یوتجارکه یوه کرایه کس ته رخت ورکړی اودرخت گزپه پنځوس روپی یی اونوموړی تجارکرایه کس ته ووایی چې دغه رخت کوټته ته ورسوه هرکله چې دورساو

نوته اختيارمن يی که ماته رخت راکوی يوګزپه پنځوس روپی تاته زه په ګزه ۵ روپی کرايه درکوم اوکه تابل ځاي خرڅاوه ماته بياځپلی روپی راکړه ستاخوښه ده بينواتوجرواجزاکم الله خيراويوفقکم الله ددارالافتاء محترم رئيس صاحب استفتاء درته راجع شوه دمستفتی مشکل به حل کړی.

(الحاج مولوی خليل الله فيروزی)
(رئيس رياست عالی تميز)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون الله الوهاب

تجارچې دغه رخت ګزپه پنځوس روپی پرکرايه کش خرڅ کړی که په عقد کښی دغه مذکور شرط ورسره کړی وی بيع فاسد جوړيږی اوکه ئې وروسته ترعقد دغه شرط ذکرکړی وی نوبياعقد صحيح دی دغه شرط محض وعده ده اوپه الدرالمختار کښی راغلی دی؛

(ولابيع بشرط) عطف علی الی النيروز يعنی الاصل الجامع فی فساد العقد بسبب شرط ...الخ

اوپه ردالمحتار ج۴ ص۱۳۵ کی راغلی دی؛

قوله ولابيع بشرط شروع فی الفساد الواقع فی العقد بسبب الشرط لنهيه صلی الله عليه سلم عن بيع وشر ط لکن ليس کل شرط يفسد البيع (نهر) واشار بقوله بشرط الی انه لابد من کونه مقارنا للعقد لان الشرط الفاسد لوالتحق بعد العقد قيل يلتحق عند ابی حنفية رحمه الله تعالی وقيل لاوهو الاصح کما فی جامع الفصولين والله تعالی اعلم

مولوی نذاحمد استانی مولوی احمدنوری عفی عنه مولوی نورمحمد ثاقب رئيس دارالافتاء دولت اسلامی افغانستان

## دخريدارۍ په ځمکه کې حدود اعتبار لري که جريبونه

پوښتنه ؛ وحضورته ددارالافتاء محترم رئيس صاحب السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته زه ملادرياشاه دصدوخان زوی داجيرستان دولسوالی اوسيدونکی يم وروسته زه پوښتنه لرم هغه داچې ما(۱۰) جريبه ځمکه په ګلوجان نامی باندی خرڅه کړی ده تقريبا ۲۸ کاله کيږی

دسابقه انقلاب په دورکی تدریجا تدریجا ده یوځه نوره ځمکه لاندی کړه اوس موږ ورثه وایو چې جریب راسره وکړه ځکه چې تاله موږه څخه خریداری کړې ده ګلوجان نامی وارثان وایي چې موږ ثې نه جریبه وو ځکه چې زما حدود معلوم دی اوس موږ ته دشریعت له نظره داراته معلومه کړی چې دخریداری په زمکه کی حدود معتبردی که جریب کوم دلائل چې دشریعت دی په دی باره کی چې کومه یوه ددی څخه آیاجریبی که حدودات معتبردی دشریعت غراء په رڼاکی ثې واضح کړی اوکوم دلائل چې دحدودو په باب وی هغه راته واضح ولیکی اوکه دجریبي په باب وی هغه راته واضح کړی اوپه کوم یوچې حکم سوی وی هغه راته لطفاً ولیکی. (والسلام المستفتی ملاعبدالقدوس)

بسم اللّٰه الرحمن الرحیم

الجواب بعون ملهم الصواب

په دی باره کی چې دخریداری په مځکه کی حدود معتبردی که جریبونه بایدووایو چې داپه عقد پوری اړه لری که عقدپرحدودو شوی ووحدود اعتبار لری اوکه عقد پرجریبونو شوی ووجریبونه اعتبارلری مثلاکه دعقد په وقت کی ویل شوی وه چې دغه مځکه چې دغه یې حدوددی او۱۰۰ ګزه کیږی یا۱۰۰ جریبه کیږی په دونه قیمت یې درکوم نوداعقد پرحدودودی ورروسته که دامځکه کمه سوه یابالاسوه قیمت تغیرنه پیداکوی لکن مشتری لره اختیار دقبول اوردعقد شته په صورت دکمبودکی اوکه ویل شوی وی چې دغه مځکه چې ۱۰۰ جریبه کیږی جریب په زر افغانی مثلادرکوم نوداعقد پرجریب شوی دی آینده جریب اعتبارلری که مځکه هرڅو جریبه شوله دفی جریب قیمت به ورکوی اوعقدپردوارو(یعنی حدود اوجریبونه )صحت لری؛

کما یصح بیع العقار المحدود بالذراع والجریب یصح بیعه بتعیین حدوده المجلة المادة ۲۲۱ انمایعتبر القدرالذی یقع علیه عقد البیع لاغیره( المجلة المادة ۲۲۲ )وکمایصح بیع العقار بالکیل اوبالحد ود یصح بیعه ایضاً بکلیهما فلو باع ارضا ذکرحدود ها وقال ان مساحتها کذاذراعا کل ذراع بکذاصح وکانت العبرة للکیل لانه بتفصیل الثمن اصبح العقد واردا علیه امالوباع ارضا بالف وذکرحدودها وزرعها فالعبرة للحدود وفی الحالین اذاوجد الارض ازید اوانقص من القدرالذی ذکر فی العقد فتجری علیه احکام المادة ۲۲۶ شرح المجلة سلیم باز م۲۲۲ ص۱۰۷ وجاء فی المجلة المادة ۲۲۶ اذابیع مجموع من المذروعات سواء کان من الاراضی اومن الامتعة وسائر

الاشياء وبين مقداره وجملة ثمنه فقط اوفصل اثمان ذرعانه ففى هاتين الصورتين يجرى الحكم على مقتضى حكم الموزونات التى فى تبعيضها ضرر واماالامتعة والاشياء التى ليس فى تبعيضها ضرر كالجوخ والكرباس فالحكم فيها كالحكم فى المكيلات مثلا لوبيعت عرصة على انها مائة ذارع بالف غرش المكيلات فظهر انها خمسة وتسعون ذراعا فالمشترى مخير ان شاء تركها وان شاء اخذ تلك العرصة بالف غرش واذاظهرت زائد اخذ ها المشترى ايضاً بالف غرش فقط الخ كذلک لوبيعت عرصة على انها مئة ذراع كل ذراع بعشرة غروش فظهرت خمسة وتسعين ذراعا اومائة وخمسة ا ذرع خير المشترى ان شاء تركها وان شاء اخذها اذاكانت خمسة وتسعين ذراعا بتسعمائة وخمسين قرشا واذاكانت مئة وخمسة اذرع بالف وخمسين قرشا الخ(المجلة المادة ۲۲۶ وهكذافى شرح المجلة للاتاسى فى تشريح المواد المذكورة ) والله اعلم وعلمه اتم



مولوی نذاحمد الحقانی مولوی محمد اخلاص برکتی مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دار الافتاء دولت اسلامی افغانستان

**په مخکنئ حکومتوکې چې چادولتي شيان رانيولي وي**

پوښتنه :دقندهاردمرکزی دارالافتاء ومحترم رئيس صاحب اواعضاء ته السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته ورروسته زموږ په منطقه کی يوتعداد خلق دی چې دولتی شيان ئې رانيولی دی دکمونستانو دحکومت په وخت کی يادربانی دحکومت په وخت کی چې هغوی ليلام وی اوليلام ئې تثبيت وی اودوی ياتولی روپی ورکړی يائې بعضی قسطونه ورکړی وی بعضی ئې پاته وی لکه موټران يادکانونه ياژرندی ياځمکی هيله کووچې په دغه حصه کی فتوی راکړی چې ذکرسوی شيان دولتی دی اوکه دمشتريانودی اوکه دولتی وی هغه روپی ئې دولت ورکوی کيااوکه مشتريانووی پاته قسطونه دولت په هغه قيمت ځنی اخلی اوکه په اوسنی قيمت والله اعلم

(الحاج مولوی بهاءالدين حقانی)
(معاون رياست امر بالمعروف)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب باسم ملهم الصواب

دبیع دانعقاد لپاره یوشرط دادی چې مبیعه به مملوک فی نفسه وی که چیری مبیعه مملوک فی نفسه نه وی دبیع دانعقاد شرط فوت شو وداسی بیع ته بیع باطله ویل کیږی دبیع باطلی حکم دادی چې په قبض باندی هم ملک دمبیعی ومشتری ته نه نقل کیږی نوحاصل دادی چې کمونستان یاربانیان یاتوپکیانو چې دولتی ځمکی یادکانونه یاژرندی یاموټران پرخلقو خرڅ کړي دی هغه ددوی بیع بیع باطله ده ځکه چې دغه شیان چې ذکرشول ټول دبیت المال دی ومذکورو کسانوته ملک فی نفسه نه دي ثابت بیع چې باطله سوه ملکیت ومشتریانوته نه دي نقل سوی دهغه وجه داده چې په مذکورو کسانوکی هرچاچې دبیت المال شئ خرڅاوه هغه شخص نه خلیفه نه امام نه قاضی نه وکیل د امام ؤ نوپه دغه وجه ددوی بیع صحیح نه ده زموږ په نظر دحل مناسبه لارئ داده چې کوم خلق ددولت له خواځخه دمال مشتری سندپه لاس کی لری دامیرالمومنین په اجازه دی دموجوده وقت په قیمت دمذکور اشیاؤ دمشتریانو سره بیع تجدید سی که چیری دامیر المومنین رضا ثبت وورنه نوداکار به نه کیږی په دی صورت کی دوی لوی فایدی شته اول داچې کله بالکل ورځخه ضبط اوقبض شی درعیت ډیر غټ نقصان دی اوحال داچې پررعیت باندی ډیرزیاد شفقت په کاردی خصوصا په موجوده اضطراری حالت کی دوهمه فاید ه داده چې رعیت به په نفرتکی نه واقع کیږی اوکوم خلق چې سند ددولت لخوانه لری دهغو ځخه دی بیله چون وچرا ضبط شی.

الشرط الخامس وهو كون الملک للبائع فیمایبیعه لنفسه فیبطل بیع مالیس مملوکاله اذاباع لنفسه وان ملکه بعده شرح المجلة للاتاسی ج۲ ص۸۸ ومنها (ای من شرائط الانعقاد) فی المبیع وهو ان یکون موجود وان یکون مملوکا فی نفسه وان یکون ملک البائع فیمایبیعه لنفس فلا ینعقد بیع الكلاء ولوفی ارض مملوکة له (الهندیة ج۳ ص۲ )الشرط الثالث للمعقود علیه ان یکون مملوکافی نفسه ای محرزاوهو مادخل تحت حیازة مالک خاص فلاینعقد بیع ما بمملوک لاحد من اناس (الفقه الاسلامی ج۴ ص۳۵۸ )واماانواعه (ای البیع ) فبالنظر الی مطلق البیع اربعة نافذ وموقوف وفاسد وباطل فالنا فذ مالفاده الحکم للحال والموقوف مالفاده عند الاجازة والفاسد مالفاده عند القبض والباطل مالم یفده اصلا( الهندیة ج۳ ص۳ )والله اعلم بالصواب



مولوی نذاحمد الحقانی مولوی محمود میوندوال مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء دولت اسلامی افغانستان

# باب الربا

## دودی په قرض ورکول

پوښتنه :دارغستان له اولسوالی علماء کرامو فتوی ورکړی ده چي ده‌ودی قرض ورکول او اخیستل روادی شرعی منع پکی نشته هیله لروچي دامسئله تصویب یاتردید کړی.

(المستفتی حاجی ملامحمد آخند دارغستان اولسوال)

بسم الله الرحمن الرحیم

دمرکزی دارالافتاء نظر

ذکرت فی ردالمحتار ج۴ ص۱۹۷ وج۴ص۲۰۸ وطحطاوی علی الدر ج۳ ص۱۱۲ والهندیة ج۳ ص۲۰۱ والفقه الاسلامی ج۴ ص۶۱۸ وفتح القدیر ج۶ ص۱۷۷ وتحفة الفقهاء ج۲ ص۱۷ فتوی الدرالمختار وردالمحتار علی جواز استقراض الخبز وزناوعدداوهوقول محمد رحمه الله ورجحه فی فتح القدیر وفتوی الهندیة علی جوازا ستقراضه وزنا لاعددا وهو قول ابی یوسف رحمه الله تعالی علیه والمختار قول محمد رحمه الله تعالی لان فتوی اکثر الکتب علیه وعللوه بالتعامل وحاجة الناس کمافی تحفة الفقهاء وغیره والله اعلم.



مولوی عبدالحکیم عفی عنه مولوی محمد اخلاص برکتی مولوی احمد نوری عفی عنه مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء دولت اسلامی افغانستان

## دغنمو تبادله په اوړوسره څه حکم لري

پوښتنه : محترمينو اساتذو ددارالافتاء ته السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته وبعد پوښتنه لرو چي تبادله دغنمو په اوړو چي مقداريواندازه وي صحيح دی کنه ؟
(المستفتى ملاعبدالحبيب)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب ومنه الصدق والصواب

تبادله اوبيع دغنمو په اوړو مطلقا غيرجائز که په يوه اندازه وي اوکه نه وي :
وفي شرح دررالبحارومنع اتفاقا ان يباع البر باجزائه كدقيق وسويق ونخالة الخ ردالمحتار ج۴ ص۲۰۸

اوپه الدر المختار على هامش ردالمحتار ج۴ ص۲۰۸ کښی راغلی دی:
لايجوز بيع البر بدقيق اوسويق وهو المجروش ولابيع دقيق بسويق مطلقا ولو متساويا لعدم المسوى فيحرم لشبهةالرباء والله اعلم.

مولانامحمود ميوندوال مولوی عبدالحکيم عفی عنه

## له مشترک مال څخه په دی شرط قرض

## اخستل چي راتلونکي کته به ټوله دپور ورکونکي وي

پوښتنه : محترم مسئول دارالافتاء قندهار محترمو موږ دوه شريکان يوهغه مال مشترک موپه (۵۰) زره نقدواو ۲۰۰۰۰۰ پور دڅلورو مياشتومو ورکړی اوس يوشريک دغه (۵۰ زره ) نقدی اخلی اوداېل شريک ورته وايي چي صحيح ده دغه دمال مشترک کته چي ټوله په دی معامله کښی شوی ده ځکه اصل سرمايه ۲۰۰۰۰۰ وه اوس ئې پنځوس زره کتلی څلور مياشتی بعدزمادی په دغه شرط ئې درکوم دغه ۵۰ زره نقدی اوس دغه زموږ طريقه صحيح ده اوکه نه اوبل صورت دغه دمال مشترک کته په تقسيم سره وويشو هغه ۵۰ زره چي ده ورې دی هغه کته نه لری داصحيح ده کنه بينوابالصواب توجرواعند الوهاب.

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون ملهم الصدق والصواب

محترم ورور مستفتی صاحب چونکه ستاسوداشريک مال ربح اوګته کړي ده نواوس به

تقسیم کیږي په وفق دشرط ستاسو کله چې په رأس المال اوربح کی یوڅه مقدار نقدی روپی وی اونورپوروپه نقداوپور دواړوکی تاسو دواړه حق لرې نواوس چې دایوشریک وایي چې دانقدی ټول ماته راکړی ځکه چې زماضروری پکاردی دالکه دي دهغه بل شریک دحصی په دغه نقدي مال کی دهغه څخه مطالبه کوی په طریقه ددین اوقرض سره اوس چې دابل شریک ورته وایي چې صحیح ده خوکټه به ټوله زماوی اوزیاته حصه ترهغه چې په عقد کی شرط شوي وی دربح څخه په هر تقدیردادواړه صورته اعتیاض اوعوض اخستل بلل کیږی پرقرض اودین باندی دامعامله ناروا اوسوددی لکه په اعلاء السنن ج۱۴ ص۵۱۲ کی لیکل شوي دی. ۴۸۵۸ :

عن علی امیرالمؤمنین مرفوعا (کل قرض جر منفعة فهو ربا) وقال الموفق فی المغنی وکل قرض شرط فیه الزیادة فهو حرام بلاخلاف قال ابن المنذر اجمعو اعلی ان المسلف اذاشرط علی المستلف زیادة اوهدیة فأسلف علی ذالک أن أخذ الزیادة علی ذالک ربا وقد روی عن ابی بن کعب وابن عباس وابن مسعود انه نهو اعن قرض جر منفعة ولانه عقدارفاق وقربة فاذا شرط فیه الزیادة اخرجه عن موضوعه ولافرق بین الزیادة فی القدر اوفی الصفة (اعلاء السنن ج۱۴ ص۵۱۳) والله اعلم بالصواب



مولوی نذاحمد الحقانی مولوی احمد نوری مفتی مذ مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دار الافتاء دولت اسلامی افغانستان

## کومه مؤسسه چي دتجارت په غرض خلکوته قرض ورکوی

پوښتنه : دکندهار ومحترم المقام دارالافتاء ته السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته محترمو اول موصحت وعافیت دخداوند متعال څخه مطلوب لرم اوبل عرض اومطلوب دادی چي دلته یو مؤسسه غواړی چی وبی روزګاره خلکوته پیسی ورکړی چې هغه خلک کاروبار په وکړی خومؤسسه غواړی چی یومعلوم شئ پرخلکو مقررکړی مثلا یوه نفرته سل ډالر ورکوی خوماهانه پنځه ډالره غواړی آیاداسی صورت به جائزوی که یا که جوازونه لری بل داسی صورت به وی چی هم دلته وخلکوته دکار دپاره پیسی پیداسی اوهم جوازولری محترمو هیله ده چی په دی ارتباط یوه مفیده لاره راته معلومه کړی والسلام.

(المستفتی والی کندهار ملامحمد حسن رحمانی ۷ - ۵ - ۱۳۷۵)

بسم اللّٰہ الرحمن الرحیم

الجواب ومنه الصدق والصواب

داپیسی به یاپه طریقه دقرض ورکوی اویاپه طریقه دمضاربة اویاپه بله طریقه که چیری په طریقه دقرض وی اوییاهم مؤسسه یو معلوم شئ مقرر کړی پرخلکو ماهانه اوپه اخیرکښی خپلی پوره پیسی هم غواړی نوداپرقرض نفع شرط کول او اخستل دی دا ناجائز ده اوکه چیری په طریقه دمضاربة وی اوداماهانه نفع درب المال دپاره پکښی شرط وی که خلکو یعنی مضاربینوکته کړی وی اوکه تاوان نودامضاربة هم فاسد اوناجائز ده اوکه چیری بل صورت وی دهغی نوتعین پکار ده چې بیاوکتل شی چې صحیح ده اوکه نه نوزموږ مشوره خوداده چې یادی قرض ورکړی خونفع دی نه شرط کوی اویادی مضاربة صحیح وکړی چې ربح جزء شائع وی لکه نصف یاثلث وغیره اودیوطرف لپاره به تعین دیو قدر معین نکوی اوکه مضارب نفع و نکړی اویائې نقصان وکړونورب المال به نفع نه غواړی؛

واماالذی یرجع الی نفس القرض فهوان لایکون فیه جر منفعة فان کان لم یجز نحو ماذااقرضه دراهم غلة علی ان یردعلیه صحاحا اواقرضه وشرط شرطا له فیه منفعة لماروی عن رسول اللّٰہ صلی اللّٰہ علیه وسلم انه نهی عن قرض جر نفعا ولان الزیادة المشروطة تشبه الربا لانها فضل لایقابله عوض والتحرزعن حقیقة الربا وعن شبهة الربا واجب هذااذاکانت الزیادة مشروطة فی القرض فامااذاکانت غیر مشروطة فیه ولکن المستقرض اعطاه اجودهما فلاباس بذالک الخ بدائع الصنائع ج۷ ص۳۹۵)

وفی الاشباه کل قرض جر نفعا حرام (قوله کل قرض جر نفعاحرام ) ای ذاکان مشروطا کما علم مما نقله عن البحروعن الخلاصة وفی الذخیرة وان لم یکن النفع مشروطا فی القرض فعلی قول الکرخی لاباس به ویأتی تمامه ردالمحتار ج۴ ص۱۹۴ المضاربة تفسد باشیاء منها اذاشرط لاحدهما من الربح مایقطع الشرکة نحوان یجعل له دراهم مسماة مائة اواقل اواکثر فسدت المضاربة الفتاوی قاضیخان علی هامش الهندیة ج ۳ ص۱۶۱ ویشترط ایضا ان یکون جزء اشائعا کالنصف اوالثلث لتحقق المشارکة بینهما فی الربح قل اوکثر فلوشرط لاحد هما قدرمعین کمائة مثلافسدت المضاربة لقطع الشرکة فی الربح ولاحتمال ان لایحصل من الربح الا مقدار ماشرط له راجع المادة ۱۳۳۷ وشرحها شرح المجلة لسلم بازج۲ ص۷۴۷

اودغه مضمون په شرح المجلة للاتاسی ج ۴ ص ۳۳۲ کښې هم ذکرشوی ده ۱۲



مولانامحمد مسلم حقانی مولاناعبدالله مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دار الافتاء دولت اسلامی افغانستان

# کتاب الاجارة

## دمشاع اجاره ابتداءً صحیح کیږي که نه ؟

پوښتنه :-محترم مولوی صا حب ثاقب عزتمنده څرنګه چې څه اندازه افواهی معلومات موږ تاسو محترم ته درکړی دی ستاسود هدایت سره سم مـواوس تحریري معلومات درولیږل ستاسو حضورته یوه قطعه مځکه دولتی موږ په اجاره ورکړی تیر کال زموږ په فکرتوله دولتی وه بالاخر په دغه مځکه کښې یوه قطعه مځکه رعیتی شوه داسناد دمخی اوس دغه مالک دمځکی زموږ څخه دخپل مځکی په اندازه غنم غواړی اوهم بل کال دغه شخصی مځکه حکومت په اجاره ورکړی اوحال دادی چې دغه شخصی مځکه اوبه نه لری زموږ په اوبو اوبیږی اوهم دغه شخصی مځکه کښې اجاره دار پالیزکرلی اوزموږ په مځکه ئې غنم اوپیازکرلی اوموږ دغه توله مځکه په ۳۰ خرواره ورکړی آیا دغه سړی په دغه خپل پالیز کښې حق لری اویازموږ په غنمو کی هم ؟

(المستفتی دمځکو مسئول جمعه خان اوغلام رسول)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب ومنه الصدق والصواب

محترمو اجاره دمشاع که تقسیم قبلوی اوکه ئې نه قبلوی غیر لخپله شریکه څخه ابتداء نه صحیح کیږی په قوله دامام ابو حنیفة رحمه الله تعالی اوپه قول دصاحبینو رحمهما الله تعالی په شرط دبیان دنصیبی صحیح کیږی او اجاره ورکول خپل شریک ته دخپلی نصیبی روادی که قسمة قبلوی یائې نه قبلوی که ګرده خپله حصه ورکی یابعضی اوشیوع عارضی اجاره نه فاسده وی په اتفاق سره داامامانو رحمهم الله تعالی – په سبب داو بیدو دشخصی مځکی په اوبو ددولتی مځکی که په اذن سره وی که بی اذنه وی هیڅ ضرر

یاتاوان دشخصي مځکی وخاوندته نه رسوی .

اجارة المشاع فیمایقسم وفیمالایقسم فاسدة فی قول ابی حنیفة رحمه الله تعالی وعلیه الفتوی کذا فی فتاوی قاضیخان وعندهمایجوز بشرط بیان نصیبه الخ واجمعوا انه لو آجر من شریکه یجوز سواء کان مشاعا یحتمل القسمة اولا یحتمل وسواء آجرکل نصیبه اوبعضه کذا فی الخلاصة والشیوع الطاری لایفسدها اجماعًا کمالوآجرکلهاثم تفاسخا فی نصفها اومات احدهما او استحق بعضهایبقی فی الباقی فی النصاب والصغری الفتاوی الهندیة کتاب الاجارة الباب السادس عشر فی مسائل الشیوع فی الاجارة (ج۴ صفحه ۴۴۷ و ج۴ صفحه ۴۴۸)ولایضمن من سقی ارضه اوزرعه من شرب غیره بغیراذنه فی روایة الاصل وعلیه الفتوی شرح وهبانیة وابن الکمال عن الخلاصة لما مر انه غیرمتقوم الدرالمختار بهامش ردالمحتار (ج۵ صفحه ۳۱۷) واماضمانه بالاتلاف بان یسقی ارضه بشرب غیره فهو احدی الروایتین والفتوی علی عدمه کمافی الذخیرة وهوالاصح کمافی الظهیریة وتمامه فی النهر ردالمحتار(ج۴صفحه ۱۳۲)

نوچې اجاره صحیح سوه په سبب دشیوع عارضي نودی هغه دشخصي مځکی خاوندته پرقدردمځکی دی غنم ورکړی یعنی دغه خرواره غنم دی پرسرکاری مځکه اوشخصي مځکی باندی تقسیم سی هرڅه چې وررسیده هغه دی ورکی که دولتی مځکه اوشخصي مځکه په قیمت کی سره برابره وه یعنی څلور ګزه دشخصي مځکی په پولک افغانۍ اودولت دمځکی څلورګزه هم په پولک افغانی وو تفاوت ئې نه درلود اوپه مقدارکی هم سره برابري وی یعنی دولتی مځکه سل (۱۰۰) جریبه وه اوشخصي مځکه هم سل (۱۰۰) جریبه وه نودی داغنم سره نیمائ کی اوکه یي تفاوت سره درلود یعنی دولتی مځکه (۱۰۰) جریبه وه اوشخصي (۲۰) جریبه وه نودی پنځمه حصه وصاحب ته دشخصي مځکی ورکړ سی اودشخصي اودولتی دپاره ئې غنم مذکور مقررکړي دی نومستأ جرلره اختیاردی چې هر قسم تصرف پکښې کوی که په دواړه کی غنم کری یاپه دواړو کی پالیزکری یاپه یوه کی یوشئ کری په بله کی بل شئ کري:

وتصح اجارة ارض المزراعة مع بیان مایزرع فیها اوقال علی ان ازرع فیها ماشاء( الدرالمختار بهامش ردالمحتار ج۵ ص۲۰ ) والله اعلم بالصواب .

مولوی نذاحمد الحقانی مولوی محمود میوندوال

## دریګواودبرواجاره څه حکم لري

پوښتنه ومحترم مولوی صاحب نور محمد ثاقب وحضورته السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته (۱) ددغه ریګواو دبرو اجاره صحت لری چې حکومت یي پریوچا اجاره کړی اوکه یي نه لری ځکه چې دغه خویونامعلومه شئ دی ځکه خلک ئې په غلاخپلو کوروته وړی نودجنایي مدیریت ددغه مشکلاتوسره مخامخ دی ترڅوددغه اجاری په باره کښی دصحت درلودلو اونه درلودلو په باره کښی پوره معلومات راکړی ځکه چې دغه ریګ خویوکال دباران اوبه پریوه خواوړی اوبل کال ئې پربله خواوړی یوکال دیو سړی مځکه لاندی کړی اوبل کال ئې دبل چا مځکه لاندی کړی وی نوځکه دغه نامعلو مه شئ ددغه اجاره صحت لری اوکیا ځکه چې نامعلومه شئ دی والسلام.

(المستفتی مولوی صاحب محمد سلیم مدیر جنایي)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب ومنه الصدق والصواب

مسئله داده چې ددغه ریګواودبرو اجاره صحت نه لری ځکه چې داتملیک دعین دی اواجاره چې واقع شی پرعین باندی هغه جائزه اوصحیح نه ده لکه په الفتاوی البزازیة بهامش الفتاوی الهندیة ج۵ ص۴۷ کی لیکلی دی:

الاجارة اذاوقعت علی العین لایجوز فلایصح استجار الاجام والحیاض لصید السمک اورفع القصب وقطع الحطب او یسقی ارضه اوغنمه منها وکذااجارة المراعی.

اوهمدارنګه په تبیین الحقائق ج۵ ص۱۰۵ کی لیکلی دی:

وقال الامام الاسبیجابی فی شرح الطحاوی التملیک علی ضربین تملیک منفعة وتملیک عین وکل وجه علی وجهین امااان یکون ببدل اوغیر بدل فتملیک العین ببدل هو البیع وتملیک العین بغیر البدل هی الهبة والصدقة والوصیة وماشبه ذلک واماتملیک المنفعة ببدل فهی الاجارة وتملیک المنفعة بغیر بدل هی العاریة اوهمدارنګه په ردالمحتار علی الدرالمحتار ج۵ ص۴۳ کښی لیکلی دی وذکرهنا الاجارة اذاوقعت علی العین لاتصح الخ وهکذافی الاختیار لتعلیل المختار ج۲ ص۵۰ وایضاً فی البدائع ج۴ ص۱۷۴(و ج۴ ص۱۷۵ )والله سبحانه وتعالی اعلم

مولوی احمد نوری عفی عنه مولوی نذ احمد الحقانی

## ددلالي اواجرت ددلالي څه حکم دی

پوښتنه : دکندهار ولایت دامنیی محترم قومندان صاحب السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته زه عبدالظاهر دپیر محمد زوی ددمان ولسوالی اوسیدونکی محترمه! مورږ کشمشو په سرایکی ددلالی وظیفه اجراء کوولکن بعض تجاران زموږ څخه دلالی په یوه نامه په بل نامه ګرځوی کچیری دغه دلالی دشریعت مطابق ددی حق لری چې زموږ څخه وګرځوی موږ څه نه وایو کچیری حقیقت نه لری باید په آینده کی زموږ څخه دلالي ونګر ځول شي په احترام.
(المستفتی عبدالظاهر ۲۸ - ۷ - ۱۳۷۶)

وکتل سو امریت جنائي دشرعی احکامو مطابق اجراءات وکړئ.
(حافظ عبدالمجید قوماندان امنیه کندهار)

دابتدائیه محکمی محترم مقام ته دعارض عارضه من حیث الارتباط تاسوته راجع سوه څرنګه چې پوهیږی اجراءات یی وکړی والسلام.
(مولوی محمد سلیم مدیرجنایي)

محترم ددارالافتاء رئیس صاحب ته السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته بعد دمستفتی عارضه درته راجع سوه امید دی چې مشکل ئې ورحل کړئ. ومن الله التوفیق
(دکندهارولایت ابتدائیه محکمه)

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله رب العالمین وصلی الله علی سید نا محمد وعلی اله وصحبه وسلم الجواب باسم ملهم الصواب ددلال اجرت اومزدوری اخستل رواو جائز ده لیکن دغه دد لالی اجرت اومزدوری به معلومه وی دلته غلبا ۳ صورته سته اول ۲ صورته دجوازدی دریم صورت دنه جوازدي (۱) دلال چې کوم شي وکوم شخص ته ورخرڅوی یائې ورته رانسي داسي به ورته وائي چې فلان شئ درته خرڅوم یائې درته رانیسم مثلا ۲۰ زره افغانی غوارم ۲ که ئې مزدوری معلومه نکړه دعرف له وجهی حق د مزدوری لری مګر تراجر مثل به اضافه نه ورڅخه اخلی دغه ۲ صور ته جائزدی ۳ که دلال وچاته وویل چې فلان شئ چې په کوم مقدار مبلغ مي درته خرڅ کړی مثلا ۵۰۰۰۰ افغانی ستادی هغه باقی زمادی دغه دریم صورت یی ناجائزدی مفتی رشید احمد صاحب دامت برکاته په احسن الفتاوی ج ۷ ص۲۷۲ کی لیکلی:

سوال: دلال کی اجرت جانبین سے شرعا جائز ہے یا نہیں الجواب ومنہ الصدق والصواب جائز ہے بشرطیکہ صاف طور پر اجرت معلوم کرلی جائے(*) قال فی الشامیة عن البزازیة اجارة السمسار والمنادی والحمامی والصکاک ومالایقدرفیه الوقت ولا العمل تجوز لما کان للناس به حجة ویطیب الاجر المأخوذ لو قدرأ جرالمثل ردالمحتار ج۵ ص۳۴ وایضاًفی بیوع الشرح واماالدلال فان باع العین بنفسه باذن ربها فاجرته علی البائع وان سعی بینهما وباع المالک بنفسه یعتبر العرف وفی الشامیة فتجب الدلالة علی البائع اوالمشتری اوعلیهما بحسب العرف جامع الفصولین ردالمحتار ج۴ ص۴۶ )

سوال: زید نے بکر سے کہا کہ میں تمہاری بھینس عمر کے ہاتھ فروخت کرادیتا ہو مگر اس شرط سے کہ مبلغ تین سو پچاس روپے تمہیں دونگا اور اس سے زائد جتنا بھی وصول ہو وہ میں لے لونگا......الخ جواب یہ معاملہ ناجائز ہے آہ احسن الفتاوی(**) ج۷ ص۲۷۳ واللہ تعالی اعلم۔

**دیوچاسره تراجاره کولو وروسته بیاهغه شئ وبل ته په اجاره ورکول**

پوښتنه :محترم ریاست دارالافتاء السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته چې دووکسانوته ښاروالی دزمکی اجازه وکړی چې دکان کی جوړکړه خودیوه تاریخ مخ ته وی دبل مؤخروی لکن دمؤخر تاریخ سړی تصرف مخ ته وکړی یعنی خاوره راوړی اوهغه بل نفر چې تاریخ یې مخته ووهغه تصرف وروسته وکړی دمخ کی خاوری څخه دیو الونه جوړ کړی په دی کی شریعت څه حکم کوی چې دادکان دچادی دجواب په انتظار.

(ازطرف رئیس استئیناف مولوی محمدداد گل صاحب)

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمد لله رب العالمین وصلی الله علی سید نامحمد وعلی اله وصحبه وسلم الجواب باسم ملهم الصواب په مذ کور صورت کی که او ل شخص ته مځکه تسیلم سوی وی نو بیا اجاره ثانیه صحت نه لری:

رجل اجرداره من رجل وسلمها الیه ثم بعد ذلک اجرها من اخر لایجوز ولاینعقدالاجارة الثانیة فی حق الاخر حتی لوانفسخت الا جارة الاولی وسقط حق المستاجر الاولی لایلزم ان یسلم الی الثانی( خلاصة الفتاوی ج۳ ص۱۱۹ ) وتسلیم الدار والارض یتم بان یقف المشتر ی فی داخلها اوقریبا منها بحیث یری جانب الارض او یقدر علی اغلاق باب الدار فورا (الفقه الاسلامی ج۴ ص۴۱۹ ) والقبض عندالحنفیة یتم بالتخلیة بان یخلی المالک بین المعقود علیه والطرف الاخر برفع الحائل بینهما علی وجه یتمکن الاخرمن الحیازة والتصرف فی الشئ الفقه الاسلامی ج۴

(*) ترجمه: پوښتنه: ددلال اجرت له جانبینو شرعا جائزدی اوکنه ځواب جائزدی په دی شرط چې په ښکاره توګه اجرت معلوم کړل شی

ص۲۴۶ والله اعلم وعلمه اتم واحکم

مولانا احمد نوری عفی عنه مولانا محمود میوندوال

## که دی تردو مره په زیاتوخرڅ کړی نوزیاتی ستادی

پوښتنه ومقام ته دمحترم رئیس صاحب ددارالافتاء السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته محترمه! وماته عبد العظیم وویل چې زماپه انډ ازه –۱۹۶۰ میتره مځکه فی میترپه ۲۳۰۰۰۰ افغانی ته خرڅه کړه اوکه دی اضافه زماترپورته قیمت دغه مځکه زما خرڅه کړه هغه اضانه پیسی ئې ستادی مافعلادغه مځکه په ۲۴۰۰۰۰ افغانی خرڅه کړي ده چې زماپه اندازه ۱۹۶۰۰۰۰ لکه افغانی وعبدالعظیم ته ورځی نوزه ستادمقام څه هیله کوم چې درویه دشریعت وماته معلومات راکړی چې زه دغه ذکرشوی پیسی دده څخه واخلم اوماته درویه دشریعت روا اینبت لری که یا چې زه ستادمقام دهدایت سره سم هغه کاروکړم اوزما غاړی دخدای اورسول پوری خلاصی وی .

(المستفتی محمد ظاهر ولد محمد اسماعیل)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب ومنه الصدق والصواب

کچیری په وکالة کی اجرة شرط شوی وی نوو کیل مستحق داجرة دی اوکچیری په وکاله کی اجرة نه وو شرط سوی اوداو کیل هم هغه څوک ووچې خدمت ئې په اجرة سره نه کاوه نو بیادی متبرع دی نودده لپاره مطالبه نسته داجرة اوکچیری داوکیل هغه څوک وو چې خدمت ئې په اجرة سره کاوه نوبیاددغه وکیل لپاره اجرمثل دی:

اذااشترطت الاجرة فی الوکالة واو فاها الوکیل استحق الاجرة اطلاقه یدل علی انه لافرق فیما اذاوقت وقتا معلو مالایفاء الوکالة اولا وان لم تشترط ولم یکن الو کیل ممن یخدم بالاجرة کان متبرعا فلیس له ان یطالب بالاجر واما اذاکان ممن یخدم بالاجرة فله اجر مثله لان المعروف عرفا کالمشروط شرطا المادة (۱۴۶۷ ) من مجله الاحکام مع شرحه لسلیم باز ۷۸۹ الو کالة باجر تصح الوکالة باجرو بغیر

(**)زیاره ابوښتنه زید وبکرته وویل چې زه ستاګا مینبه پر عمر خرڅوم خوپه دی شرط چې دری نیم سوه روپی وناته درکوم اوتردی زیاتی که می هرڅومره څنی واخستی هغه زه اخلم ځواب دامعامله نا جائزده (مرتب)

اجر لان النبى صلى الله عليه وسلم كان يبعث عماله لقبض الصد قات ويجعل لهم عمو لة فاذاتمت الوكالة باجر لزم العقدو يكون للوكيل حكم الاجير اى انه يلزم الوكيل تنفيذ العمل وليس له التخلى عنه بدون عذر يبيح له ذلك واذالم يذكر الاجر صراحة حكم العرف فانكانت مأجورة عادة كتوكيل المحامين وسما سرة البيع والشراء لزم اجرالمثل ويدفعه احد العاقدين بحسب العرف وان كانت غير مأجورة عرفا كانت مجانا اوتبرعا عملا بالاصل فى الوكالات وهو ان تكون بغير اجر على سبيل التعاون فى الخير الخ (الفقه الاسلامى ج۴ ص۱۵۱) والله اعلم بالصواب

مولانا احمد نوری عفی عنہ مولانا نذاحمد اسحاقی مولانا محمود میوندوال

## که دی تردومره په زیاتو خرڅه کړه نوزیاتي روپۍ ستادي

پوښتنه چې یو سړی بل چاته ووایی زما فلانی قطعه ځمکه په لس لکه افغانی را خرڅه کړه بالابود ترلسولکوئ ستادی هغه سړی ئې په ۱۵ لکه افغانی خرڅه کړی دغه پنځه لکه افغانی د چادی او دغه دلال ته څه شی شته؟

(ملا احمد شاه د مرکزی محکمی محرر)

بسم الله الرحمن الرحيم

بعون الملک العلی الاعلی

محترم مستفسر صاحب دغه مذکوره معامله جائز نه ده فاسده ده او د ځمکی ټول قیمت او بدل د مالک دی د دلال د پاره اجرمثل دی یعنی د هغه د کار په مثل مزدوری کیږی:

سوال: زید نے بکر سے کہا کہ میں تمہاری بھینس عمر کے ہاتھ فروخت کرادیتا ہوں مگر اس شرط سے کہ مبلغ تین سو پچاس روپیہ تمہیں دونگا اور اس سے زائد جتنا بھی وصول ہو وہ میں لے لونگا...... الخ جواب یہ معاملہ ناجائز ہے (*) الخ احسن الفتاوى من ج۷ ص۲۷۳ الى ج ۷ ص۲۷۴

لماكانت الاجارة نوعا من البيع فتفسد بكلما يفسد البيع كجهالة مأجور اواجرة اوعمل اومدة (درمختار) الخ شرح المجلة لسليم باز البنانى ص۲۵۷

په دغه مذکور شرح ص۲۵۹ کی راغلی دی:

الاجارة الفاسدة نافذة –حتى ان المستأجر فاسدا لوآجر اجارة صحيحة جازلوبعد القبض انظر الى

---

(*) ژباړه: پوښتنه زید وبکرته وویل چې زه ستا کامیښه پر عمر خرڅوم خو په دی شرط چې دری نیم سوه روپۍ وتاته درکوم تردی زیاتی که هرڅومره وی هغه زه اخلم الخ ځواب دا معامله نا جائزده الخ (مرتب)

مادة ۵۸۸ لكن الاجر يملک فيها اجر المثل ولايملک الاجر المسمى هكذافى الا ختيار لتعليل المختار من ج۲ ص ۵۷ الى ج۲ ص۵۸ والله تعالى اعلم وعلمه اتم



مولانا احمد نوری عفی عنہ مولانا محمود میوندوال مولوی نور محمد ثاقب رئیس عمومی دارالافتاء مرکزی امارت اسلامی افغانستان

## دبائیسکلانوپه اجرت ساتلو حکم

پوښتنه : جناب محترم رئیس صاحب دارالافتاء راجع به موضوع بائسکل های که پیش روی دامن قومندانی از مراجعین میباشد قومندانی از جیب خودش مبلغ ۳۰۰۰۰ معاش میدهند بمبلغ فوق الذکر کسی این وظیفه را اجراء میکند به هر شخص که این وظیفه سفرده شود اجراء آن میکند حالا این استفتاء میکنم که بمبلغ مذکوره او راضی نشود فلهذا نفرخاص مثلا که فی بائسکل مبلغ ۵۰۰ افغانی اخذ نماید درین موضوع برای من هدایت شرعی عطاء فرمائید و اگر از ان کسی بائسکل ها و موتر سیکل ها سرقه گردیده جواب آن به کدام مقام میرسد.

(المستفتی ملاتاج محمد آخند)

بسم الله الرحمن الرحيم

بعون الملک العلی الاعلی

محترم مستفتی صاحب نوموړی شخص چې دقومندانی لخوا اجیر او ملازم مقرر شوی دد عاموخلقو دبائیسکلانو دحفاظت لپاره په مقابل د ۳۰۰۰۰ افغانی معاش نوپه دغه وقت کی د ده اخستل دروپودنورو عاموخلقو څخه جائزاوروانه دی ځکه چې دی اجیر بلل کیږی اوداجیرخاص عمل دیوخاص مرجع لپاره وی لکه په الفقه الاسلامی (ج۴ ص۷۶۶) کی لیکل شوي دی:

والاجير نوعان اجير خاص وأجير مشترک فالاجير الخاص اواجير الوحد هوالذى يعمل لشخص واحد مدة معلومة وحكمه انه لايجوزله العمل لغير مستأجره-

اوكله چې دده بې كفايتي د معاش په وجه دقومندانى سره خپل عقد د ملازمت فسخ اوختم كړى نواوس په دغه وقت كې ده لره جائزدى چې دعامو خلقو لپاره خپل ځان اجير جوړكړى په مناسب اجرة سره هغه كه ۵۰۰ وى اوكه زيات وى اوكه كم وى نودى په دغه وقت كې اجير مشترک بلل كيږى اود ده عمل اوكار دعامو خلقو لپاره وى اود ده څخه كه بايسكل ورک كړى شو ضامن دقيمت به دى وى اوپرده تاوان دى بنا پرقول مختار اومفتى به داقوالو څخه دعلماء اومجتهدينو رحمهم الله تعالى لكن كه ورک كيدل او هلاک كيدل دبايسكل په داسى آفت سره وى چې دهغه څخه حفاظت ممكن نه وى نوبيادى ضامن نه دى لكه اورلگيدل ياسيلاب عام:

والاجير المشترک هوالذى يعمل لعامة الناس كا لصباغ والحدادو الكواء ونحوهم وحكمه انه يجوزله العمل لكافة الناس وليس لمن استاجره ان يمنعه عن العمل لغيره (الفقه الاسلامى ج۴ ص۷۶۶ )وقال الصاحبان واحمد فى رواية اخرى يد الاجير المشترک يد ضمان فهو ضامن لايهلک فى يده ولو بغير تعد اوتقصير منه الا اذاحصل الهلاک بحريق غالب عام اوغرق غالب ونحوهما و استدلو ابفعل عمرو على الاتى بيا نه قال البغدادى عن بعض كتب الحنفية وبقول الصاحبين يفتى اليوم لتغير احوال النا س وبه يحصل صيانت اموالهم ( الفقه الاسلامى ج۴ ص۷۶۸ وهكذا فى شرح المجلة لسليم باز اللبنانى ص۳۳۲ ) والله اعلم بالصواب

مولوى احمدزوري عفى عنه مولوى محمود ميوندوال مولوى نذيراحمد اسحاقى مولوى مفتى نورمحمد ثاقب رئيس عمومى دارالافتاء مركزى دولت اسلامى افغانستان

## په شرطو لودضمان اجاره فاسديږى اوكنه

پوښتنه : يوسړى تجارراولاړشى كرايه كش ته مال وركړى په كرايه چې لس روپى دركوم په يوه كزه كرايه خو په دې شرط چې دغه مال كه ورک ياهلاک سوته به ئې ضامن يې اوماته به يې ضمان راكوى.

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون الله الوهاب

دغه تجار چې کرایه کش ته مال په دغه مذکور شرط ورکړی کچیری ئې دغه شرط دضمان په داسی هلاکت کښی لګولی وو چې حفظ ئې ددغه هلاکت څخه ممکن نه وی نو شرط فاسد اجاره اتفاقاً په فاسدیږی داجاره فاسد حکم دادی چې دآجیر اجرت مثل لازمیږی که مال هلاک شو په اجیر ضمان نشته اتفاقاً کچیری ئې دغه شرط دضمان په داسی هلاکت کښی لګولی وو چې حفظ ددغسی هلاکت څخه ممکن وونو پرقول دامام ابوحنیفه رحمه الله تعالی اجاره فاسده ده اوپر قول دصاحبان رحمهما الله تعالی اجاره صحیح ده ځکه چې دغه شرط دمقتضی دعقد څخه مخالف نه دی که چیری دغه شرط دضمان نه وی هم پراجیر باندی په دغه قسم هلاکت کښی ضمان شته پررایه دصاحبان رحمهما الله تعالی دغه رایه دپاره دفتوی راجح ده په تبیین الحقائق کښی راغلی دی؛

وبقولهما يفتى اليوم لتغير احوال الناس وبه تحصل صيانة اموالهم وان شرط الضمان على الاجير المشترك في العقد فان شرط عليه فيمالا يمكن الاحتراز عنه لايجوز بالاجماع لانه شرط لايقتضيه العقد وفيه منفعة لاحد العاقدين ففسدت وان شرط عليه فيما يمكن الاحتراز عنه فعلى الخلاف فعندهما يجوز لانه يقتضيه العقد عندهما وعنده يفسد لان العقد لايقتضيه فيكون اشتراطه فيه مفسدا (تبيين الحقائق ج۵ ص۱۳۵)

اوپه حاشية الطحطاوی على الدر المختار (ج۴ ص۳۵) کې راغلی دی؛

وفي المحيط والخلاف فيما اذاكانت الاجارة صحيحة فانكانت فاسدة فلاضمان بالاتفاق لان العين حينئذ تكون امانة لكون المعقود عليه وهو المنفعة مضمونة باجر المثل ابوالسعود عن شرح المجمع لابن الملك (قوله وان شرط عليه الضمان) قال في التبيين وان شرط الضمان على الاجير المشترك في العقد فان شرط عليه فيما لايمكن الخ قوله (خلافا للاشباه) اى من انه ان شرط ضمانه ضمن اجماعا آه حلبي وهو منقول عن الخلاصة قال الفقيه ابو الليث الشرط وعدمه سواء لانه امين واشتراط الضمان على الامين باطل وبه يفتى آه وفي البزازية والفتوى على انه لااثرله واشتراطه وعدمه سواء.

مولوی احمد نوری عفی عنه　مولوی نذ احمد الحقانی　مولوی نور محمد ثاقب رئیس دارالافتاء مرکزی دولت اسلامی افغانستان

## په مرګ دمؤجريامستاجر اجاره باطليږی اوکنه

پوښتنه زماداکالور مځکه ورکړي وه ددرو کالو په اجاره اوس مى داکالور مړه شوي ده نومونږ مځکه راکرځوودمځکى ددووکلو حاصلات ئې دوى خوړليدلى ددي په مرګ سره اجاره باطليږى که يا ؟

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب ومنه الصدق والصواب

اجاره په مرګ دهر چاچې عقد داجارى دده دپاره شوي وى که مؤجريا مستأجر فسخ کيږى چې ضرورت نه وي لکه مرګ دمستأ جر په لارکى دمکى کي اودلته دغه ضرورت موجودنه دى په سبب ددې لاندى مسئلى:

(وتنفسخ ) بلاحاجة الى الفسخ (بموت احد عاقدين)عند نالابجنونه مطبقا ( عقدها لنفسه ) الالضرورة كموته فى طريق مكة ولاحاكم فى الطريق الخ ( الدر المختار على هامش ردالمحتار ج۵ ص۵۷ ) كل من وقع له عقد الاجارة اذامات تنفسخ الاجارة بموته ومن لم يقع له العقد لا ينفسخ العقد بموته ( الفتاوى الهندية ج۴ ص۴۶۳) والله تعالى اعلم.



مولوى نذاحمد الحقانى فاضل وفاق المدارس مولوى احمدنورى عفى عنه مولوى نورمحمد ثاقب رئيس دارالافتاء مرکزى دولت اسلامى افغانستان

## ګوروانې په ډوډى اوشپنې په وريانو اومرغومانو څه حکم لرى

پوښتنه: دارغستان اولسوالى علماء کرامو داد وى مسئلى په دى دول بيان کړى دى چې ۱ ګوروانى په ډوډى سره جائزاوروانه ده بايد په پيسو اومثلى شيانو وکړه شى ۲ شپنې په وريانو اومرغومانو جائز اوروانه ده بايد په پيسواومثلى شيانووشى ستاسو څخه هيله ده چې دامسئله تصويب ياترديد کړى.

(المستفتى اولسوال ملاحاجى محمد اخند)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب ومنه الصدق والصواب ۱ــ۲

عندنا صحيحتان لان معلومية الاجرة ضرورية فى شرح المجلة للاتاسى وانكانت اى الاجرة

عروضا اوثيا با يشترط فيه بيان القدر والصنعة والاجل لانها لاتثبت فى الذمة الاسلما فيراعى فيها شرائط السلم وانكانت من العبيد والجوارى وسائر الحيوانات فلا بد فيها من ان تكون معينة مشار االيها (ج۲ ص۵۴۸)



مولانا عبدالحکیم عفی اللہ عنہ مولانا احمد نوری عفی عنہ مولوی محمد اخلاص برکتی مولانا نذاحمد الحقانی فاضل وفاق المدارس

مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء مرکزی دولت اسلامی افغانستان

**داجارې ترمودې پوره کيدووروسته که مؤ جر غائب وي**

**پوښتنه: مځکه په اجاره اخستلې شوې دپنځو کالو په مده سره داجارې دبقاپه وقت کښې بيا ترلسو ۱۰ کلو پورې دمځکې مالک ورک دی اووارث ئې هم معلوم نه دی اوس مځکه پرڅه طريقه جوازدکرنې پيداکولای شي دمستأجرسره .**

**(المستفتى مولوى صاحب احمد اللّٰہ نانى)**

**بسم اللّٰه الرحمن الرحيم**

**الجواب بعون الملک العلام کومه مځکه چې په استفتاء کښې مذکورده هغه وقت جواز دکرنې پيداکولای شي چې قاضي دورک شوي سړې پرمځکه يو محافظ اونگهبان مقررکړي چې دهغه سره به بيا عقد داجارې کيږي داهغه وقت چې دورک شوي سړي دطرف شخه وکيل نه وي اوکه وونود هغه سره به تجديد دعقد کيږي چې مده دعقد پوره شي ځکه چې دهغه وکالت اوس هم باقي دي دهغه په ورک والي سره دي معزول نه شميرل کيږي اوهغه مده چې دورک شوي داجارې دمدې څخه وروسته پکښې کرهنه شوې ده په هغه کښې اجرمثل د مځکې لازميږي پرکرونکي باندې که عرف نه وواوکه عرف وونوبيابناء پرعرف ده دهغه ځاى ( فينصب له القاضى من يحفظ ماله ويستوفى حقه ).**

اى يقبض غلاته والدين الذى اقر به غرماؤه لانه من باب الحفظ فلايخا صم فى الدين المجحود الذى تولاه المفقود ولافى نصيب له فى عقار اوعروض فى يدرجل لان وكيل القاضى بالقبض ليس وكيل بالخصومة بالاجماع لكن لوقضى به نفذ وتمامه فى البحر (مما) اى من شئ (لاوكيل له فيه ) واماقيماله فيه وكيل فيستوفيه الوكيل لانه لاينعز ل بفقد مو كله ( مجمع الانهر ج١

ص۷۱۲) والبحرالرائق ج۵ ص ۱۶۳ (الجواب ) حیث زرع ارض الغیر بغیر اذنه یعتبر العرف فان اقتسمو االغلة انصافا اوارباعااعتبرو الا فالخارج للزارع وعلیه اجر مثل الارض وقال فی جامع الفتاوی ولوسکن دارا معدة للغلة اوزرع ارضا معدة للاستغلال بغیر استئجار یجب الاجر (الفتاوی تنقیح الحامدیة ج۲ ص۱۱۴ )



مولوی عبدالحکیم عفی الله عنه مولوی احمد نوری عفی عنه مولوی محمد اخلاص مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء مرکزی دولت اسلامی افغانستان

## پر اجیر مشترک ضمان شته اوکنه

پوښتنه : دکندهار ولایت دارالافتاء ریاست لوړمقام ته په احترام السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

دملا عبدالعزیز دبازمحمد دزوی دعرض په اساس په لاندی مضمون دی قومندانی ته عارض شوی وائي چې ماپه ضیائي مارکیټ کی دکندهار ښار(۶۶۵۴۹ ) کالدارو په قیمت مال او ټوکران رانیول اومال می ګادی وان ته ورکړ چې دګرشک اډ ی ته ئې انتقال کړی ګادی له سرایه ووتله زه دڅه وخت دپاره په سرای کی وځنډ یدم وروسته چې دګرشک اډی ته ورغلم چې زمامال اوګادی نه وه ګادی وان په خپلو اظهاراتوکي وویل څرنګه چې زه دضیا ئ مارکیټ څخه راغلم دلته دسنګین موټرته انتظار ووم او ۴۰ دقیقی هلته کښینستم په دی وخت کی طالب راغلی ماته ئې وویل چې لمانځه ته ولاړسه ماورته وویل چې دغه مال په ګادی کی باردی طالب راته وویل چې ځه ولاړسه اوزه ئ څو شلاقی ووهلم زه لمانځه ته ولاړم کله چې دلمانځه څخه راغلم نه ګادی وه نه مال اونه هم طالب وومال واله راغلی ماته ئې وویل چې مال څه سو؟ماورته وویل چې زه ئې په زوره لمانځه ته بوتلم چې راغلم نه مال وونه ګادی اوهم دهغه طالب څخه چې موږ اظهارات واخستل هغه وویل زه دملا بخت محمد په امرزه هره ورځ خلق لمانځه ته بیایم وایي ددغه ګادی اومال څخه خبرنه یم دغه موضوع ستاسوحضورته شرعی احکام دحکم سره سم داجراء تواو فیصلی دپاره چې دعدلي محکمی فیصله هم سوی ستاسی حضورته تقدیم شول په درناوی.

(مدیر جنایي الحاج عبدالقاهر)

بسم الله الرحمن الرحيم.

بعون الله تعالى الجواب:

هر چی طالب دی هغه محتسب دی حق ددغه ورلره سته چی خلق جماعت ته ولاړکي ځکه جماعت داسی مهم شرعی کاردی چی تارک الجماعة مستحق دتعزیردی په حدیث شریف کی راغلی دی دابو هریره رضی الله تعالى عنه څخه روایت ده:

قال صلى الله عليه وسلم لقد هممت ان آمر اصحابى ان يجمعو احطبا وآمر بالصلوة فيؤ ذن بهاوتقام ثم اخالف الى منازل قوم لايحضرون الصلوة فاحرقها عليهم په (فتاوى بزازية علا هامش الهندية ص۴۲۷ ج ۶) کنبی راغلی دی من لا یحضر الجماعة يجوز تعزيره باخذ المال.

محتسب ته چي اجازه د شرعی لخواپیدا شوه چی خلق جماعة ته ولاړکی نودغه ولاړیدل سبب دضمان نه گرزی ځکه په مجلة مادة ۹۱ کی راغلی دی؛

الجواز الشرعی ینافی الضمان دغه محتسب داسی متسبب دورکیدونه دی چی ضمان پرلازم شی ځکه پر متسبب چی ضمان لازمیږی په شرط دقصد اوتعدی په مجله مادة ۹۳ کی راغلی دی المتسبب لایضمن الابالتعمد اوبالتعدی دریم شرط ئې دادی چی دغه سبب به خامخا مفضی تلف لره وی څلورم ۴ شرط یې دادی چې په مابین کی دسبب او تلف به فعل دفاعل مختار نه وي راغلی الحاصل سبب چی موجب دضمان گرزی په دغه څلورو شرائطو گرزی په دغه محتسب کی ظاهرا معلوم ده چي دغه شرائط نشته مجموعا په شرح المجله للاتاسی ج۳ ص۴۶۴ کی راغلی دی:

اعلم ان الاتلاف تسببا انمايكون موجبا للضمان بشروط اربعة احدها ان يصدر من فاعله عن عمد كماصرحت به المادة ۹۳ وثانيها ان يكون متعديا في فعل ذلك السبب كما اعربت عنه المادة ۹۲۴ و ثالثها ان يكون ذلک السبب مفضيا للاتلاف لامحالة ورابعها ان لايتخلل بين السبب والتلف فعل فاعل مختار...الخ

هرچی گاډی وان دی هغه تقصیر په محافظة کی دمال کړی دی ځکه دغه گاډیوان ولی گاډی او مال داوداسه اولما نځه ځای ته دځان سره نه بیوله په مجله مادة ۶۰۹ کنبی راغلی دی:

تقصير الاجير وهو عدم اعتنائه في محافظة المسأجر فيه بلاعذر مثلا لوندت شاة من الغنم ولم يذهب الراعي لقبضها تكا سلا اواهمالا يضمن حيث يكون مقصرا الخ.

ددغه تقصیر له وجی پرګاډی وان ضمان شته اوکه ئې تقصیر ته نظرونه شی هم پرګاډی وان ضمان شته ځکه اجیر مشترک دی اوپه ضمان کی داجیرمشترک مفتی به اوراجح قول دادی چی پراجیرمشترک ضمان شته په داسی قسم هلاک کی چې احترازورڅخه ممکن وی لکه غلادغه قول دصاحبین دی په ردالمحتارکی راغلی دی ج۵ ص۴۵:

وقولهما قول عمروعلی رضی الله عنهما وبه یفتی احتشا مالعمر وعلی وصیانة لاموال الناس...آه لانه اذاعلم انه لایضمن ربمایدعی انه سرق اوضاع من یده په شرح المجلة لسلیم باز ص۲۳۲ کی راغلی دی و قدافتی بقولهما کثیر من الفقهماء لتغیر احوال الناس وبه تصان اموالهم لانه اذا علم الاجیر انه لایضمن فربمایدعي انه سرق اوضاع فی یده والله اعلم وعلمه اتم



مولانامحمد اخلاص برکتی مولانا نذاحمد اسحاقی مولاناعبدالحکیم عفی الله مولانانورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء مرکزی دولت اسلامی افغانستان

**تریشر چې دکار په جریان اورواخلي**

**ضمان یې پر چاده ا وتریشر وال حق دمزدوری لري اوکنه**

پوښتنه یوسړی راولاړسودبل سړی درمند یې ورتریشین کړی په دی ماېین کی یووار تریشین خراب سوییادا تریشین والا بیرته جوړکړی ۹نیم ساعته بعد داناړی اوروا خستی تریشین چې جوړسوی دی ۱۲ګانتی کیږی ولاړوو باره داخلق لکه خاوند دماشین اوبزګر ان دواړه ولاړه کوچې ناړی وهلی دماپښین پر دری نیمې بجې چې ناړی اورواخیستی موږ ورغلو تریشین هم اوراخستی وو بیاموتریشین سم کړی اودلمبی څخه موو ایستی ماشین والاطلب دمزدوری ځنی وکړی هغه ورته وویل چې زمادرمن تاوسو آیاددغه درمن تاوان پردغه ماشین والاکیږی اوکه پرخاوند کیږی آیاماشین والاحق د مزدوری لری که یې نه لری؟

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب ومنه الصدق والصواب

که ماشین والاخپل عمل پای ته رسولی وو اودعمل نتیجه یعنی هغه کار چې په ماشین والاپوری موقوف ووکړی ئې وواوو مستأجر ته ئې ورسپارلی وونو که دغه اوروروسته لګیدلی وودماشین والامزدوری حق کیږی اوکه ئې عمل نه وو کړی یا ئې کړی ووخو

مستاجرته ئې نه وو سپارلی دماشين والامزدوری حق نکيږی او اوربليدل د اجنبی سری په
له اذنه څخه دمالک تاوان لری دهغه چاچې بيله بادڅخه اورورسيدلی وی اوپه خپله
طبعه يي اورو سوځی اوکه دونه ليری وی چې اورپه خپل طبعه نسی وررسيدای بيله
حرکته دبادد غه تاوان نسته نوچې داجنبی سری تاوان نه وی نوکه مالک دمځکی اوربل
کی اودبل شخص وشی ته ئ تاوان ورساوه په سبب دبادهم تاوان نه لری په طريق اولی سره
اذاا ستاجر رجلا ليبنی له بناء فی داره اويعمل له ساباطا ....ومااشبه ذلک فی ملکه اوفيما فی يده
فعمل بعضه فله ان يطالبه بقدره من الاجر لکنه يجبر علی الباقی حتی لوانهدم .... فله اجرماعمله
بحصته ولوکان عين ذلک فی غير ملکه ويده ليس له ان يطلب شيئا من الاجرة قبل الفراغ من
عمله وتسليمه اليه حتی لوهلک قبل التسليم لايجب شئ من الاجر ة (الهندية ج۴ ص۴۳۱
)ومن استأ جرأرضا اوا ستعارها فاحرق الحصائد فاحترق شئ فی ارض اخری فلا ضمان عليه
لان هذاتسبب ليس بمباشرة والضمان فی التسبب لايجب بدون التعدی ولم يوجد لانه تصرف
فی ملک نفسه وقال الصدر الشهيد رجل احرق شوکا اوتبنا فی ارضه فذهبت الريح بالشرارات الی
ارض جاره فاحتر ق زرعه ان کانت النار ببعد من ارض الجار علی وجه لايصل اليه شرار النار
فی العادة فلا ضمان عليه لان ذلک بفعل النار وان کانت بقرب ارضه علی وجه يصل شرار
النارغالباًفانه يضمن ذلک لان له ان يوقد النار فی ارضه ولکن علی وجه لايتعدی ضرره الی ارض
جاره هکذافی غاية البيان ( الفتاوی الهندية ج۴ ص۴۷۲ رشيديه)
(نوټ)اوعمل کول په ملک يعنی دمستأ جرپه مځکه کی که پای ته ورسيږی اوصراحة يې
مزدور ومالک ته دمځکی ورتسليم نه کی بياهم حکم دتسليم لری والله اعلم وعلمه اتم
واحکم -

*مولوی محمود میوندوال مولوی نذاحمد الحقانی*

## دکرايې شئ که غلاشي نو

پوښتنه : مانور محمدخپله ريړی اوترازوعبدالقادرته په کرايه ورکړه ديوې مياشته ۵
ورځی وروسته دشپې ريړی غلاسوه آياز ماپر عبدالقادر باندی حق دضمان کيږي کيا؟
ريړی دسرک پرغاړه ولاړه وه اوقلف کړي يې نه وه چې غلاسوه.

(المستفتی نور محمد )

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون الملک الوهاب

جواب د استفتاء دارنگه دی هغه شی چې څوک ئې په اجاره سره وبل چاته ورکي اوس چې د اجاري وخت نه ئې پوره شوی دغه شی کچیری تاوانی شوپه وجه دکوتاهي اولاوبالی دده سره دغه شئ ضمانی اوتاوان لری اوکچیري کوتاهي اولاوبالی دده نه وه بیاتاوان نه لري اوس چې دغه ریړۍ عبدالقادر نه ده قلف کړي دغه د عبدالقادر کوتاهي اولاوبالي ده تاوان به نورمحمد ته ورکوي هکذافی مجمع الضمانات ص۱۲ نزل المستاجرعن الدابة فی سکة ودخل المسجد لیصلی وخلی عنها فضاعت کان ضامنا قالو اهذااذالم یر بطها وان ربطها لایضمن هغه شی چې په اجاره وی هغه لکه امانت داسی دی دامانت حکم په وقت کی دهلاک دادی که په کوتاهي اولاوبالی دده وو تاوان لري اوکنه وو په کوتاهي دده تاوان نه لزي.

هکذا فی الفقه الاسلامی ج۴ ص۷۷۵ اماالعین المستأجرة فلاخلاف بین العلماء فی انهاامانة فی ید المستا جر فلایضمنها ان تلفت بغیر تفریط منه لانه قبض العین آه هکذا فی الکاملیة ص۱۹۶ سئلت عمن استاجر عینا آه والله اعلم بالصواب



مولوی احمد نوری عفی عنه مولوی نورمحمد ثاقب رئیس عمومی دارالافتاء مرکزی امارت اسلامی افغانستان

### کرایه دارچي په دکان مصرف وکړی ددی رجوع پرمالک کولاۍ شي کنه ؟

پوښتنه: احمدالله ولد احمد رسول ۴ ناحیه دارنګه دافغنستان اسلامی دولت ددارالافتاء محترم رئیس صاحب حضورته السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته محتر مه! یوباب دکان واقع ۴ ناحیه چې په کوټ باب – علیه الرحمة سره موقعیت لری چې په دری محاکمو شرعی کی فیصله پر جانب مقابل حبیب الله ولدعبدالله چې نوموړی اصلاکرایه کش ووبیایی دقطعی بیع ادعا وکړه اوس په قوماندانی کی عارض دی چې زه ددکان مصارف غوارم نوپه دې باب عارض یم چې نوموړی خوکرایه نشین ووآیادشریعت غراء محمد ی اوفقه حنفی دلاری دمصارف حقیت ئې کیږی اوکنه که چیری حقیت نکیږی نوموړته شرعی

مسئله له مخې موضوع حل کړی اوهم باید وویل شی موږ دختو دبندید و خبرورکړ
اونوموړی قطعی ادعا شروع کی والسلام.

(المستفتی احمد الله)

بسم الله الرحمن الرحيم

بعون الملک العلی الاعلی

کوم سړی چې کرایه کش وی دیوځای اوبیاپه هغه کی څه بناء وکړی نودغه بناء به یاپه
امردمالک وی اویا به دخپل ځان دپاره وی بغیر دحکم دمالک او یابه دابناء دپاره دمالک
دځای وی بغیر دامردمالک په اول صورت کی بناء دمالک دپاره ده په دوهم صورت کی
بناء دکرایه کش ده دی به ئې کاږی که ضررنه و بناء دمالک ته اوکه ضرروونو منع به کړای
شی دپورته کولو دبناء څخه اودپاره دمالک دځای اجراءات لازم دی په لاندی تفصیل سره
خبنتی دبناء که ددغه ځای څخه وی یعنی دخاورو څخه ددغه ځای وی که وروسته درپورته
کولو دبناء خبنتی باقی پاته کیږی نوکرایه کش دی خپله بناء پورته کړی اودخاوروقیمت
دی ورکړی مالک ته اوکه خبنتی نه پاته کیدی بلکه خبنتی خاوری گرځیدی نوکرایه کش
لره بناء پورته کول نشته ځکه فائده نه لری خاوری خوهسی هم دمالک دی اودغه بناء چې
کرایه کش کړي ده که ختې وی اوددغه ځای دخاوری څخه وی نوبناء اودغه ختې دی پاته
کړایشي اوکه خاوره دکرایه کش وی نوبیادی ددغه خپلی خاوری ختې لری کړی اوپه
دریم صورت کی یعنی چې بناء دپاره د مالک دځای وی بغیر دامردمالک څخه نوکرایه
کښی متبرع او احسان کونکی دمالک سره بلل کیږی هیڅ شئ هم نه لازمیږی کرایه کش لره؛
والاجر و اللبن ان کان من تراب الدار فان کان بعد النقض یبقی آجرا اولبنا فله قلعه ویضمن قیمة
التراب لصاحب الدار وان کان یعودترابا فلیس له قلعه لعدم الفائدة لانه مستحق لصاحب الدار
واماالطین فان کان من تراب الدار فحکمه کاللبن اذاعاد ترابا وان کان ملک المستأجر بان اتی به
من خارج فله قلعه لانه عین ملکه (شرح المجلة للاتاسی ج۲ ص۶۲۴ وفیه برمز (عده) لکل من
بنی فی دار غیره بأمره والبناء لامره ولوبنی لنفسه بلاامره یکون له وله رفعه الاان یضر بالبناء
فیمنع ولو بنی لرب الارض بلاامره ینبغی ان یکون متبرعا کمامر شرح المجلة للاتاسی ج۲
ص۶۲۵ :)

اوپه کوم صورت کی چې مال دکرایه کښ وی او بغیر داجازی دمالک څخه ئې مصرف

کړی وی اوپه پورته کولوئي نقصان رسيږی بناءته نوپاته به شی اوپرمالک باندی قيمت دورځی ددعوی لازميږی دپاره دکرايه کښ؛

(سئل)فی مستاجر بيت من دار عمل فيه طو انا لسقفه وکتبيتين وقمريتين من الز جاج ومصباحا فی حائطه کل ذلک من مال نفسه بلا اذن المؤجر فاذاخرج فهل له قلع ماعمله حيث لايضرقلعه (الجواب) نعم وفی تجريد البرهانی واذاجصص المستاجر الداروفرشها بالاجر ورکب فيها بابا اوغلقا اوجعل مسمارا فی بابها واقربه الاجر واراد المستأجر قلعه وذلک لايضرقلعه ومايضرقلعه بالدار ليس له قلعه ولکن يضمن له رب الدار قيمة ذلک وتعتبر قيمته يوم يختصمان عمادية من احکام العمارة فی ملک الغير (الفتاوی تنقيح الحامدية ج۲ ص۱۳۵ )والله اعلم بالصواب



مولانانذاحمدالحقانی فاضل وفاق المدارس مولانانورمحمدثاقب رئیس دارالافتاء مرکزی دولت اسلامی افغانستان

## دلومړی مستأجرتر تصرف مخکي که په زيات قيمت بل مستأجر پيداشي نولومړی اجاره فسخ کيږی کنه

پوښتنه : که مځکه دبيت المال وی اومتصرف دمځکی دبيت المال يو سړی ته په اجاره ورکړی بل سړی راغلی مخکی تردی چی اول سړی تصرف نه ووپکښی کړی وويل ئې چی زه ئې په زيا ت أجرت تراول سړی غواړم اوزيادت هم معتبر زيادتۇ نوآيا اجاره داول سړی فسخ کيږی که يا ؟

( المستفتی امير المؤمنين مجاهد ملامحمد عمر)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون ملهم الصواب دبيت المال مځکی کی واجب داده چی په مناسب اجرة چی هغه اجره مثل دی ورکړه شی اوکه چيري تراجرة مثل په کم قيمت ورکول شوی وی نودغه اجاره فاسده ده پرمستأجر باندی واجبه ده چي اجرة مثل پوره ورکړی:

(سئل فی مزرعة ميرية معلومة اجرها المفوض له امرهامن رجل مدة معلومة باجرة معلومة من الدراهم هی دون اجرة مثلها بغبن فاحش ثم زادرجل آخر فی اجرتها زيادة معتبرة نحو نصف

الاجرة المرقومة هی اجرة مثلها ويريد المتكلم عليها ايجارها منه باجر المثل فهل له ذالک
الجواب نعم قدتقرران اراضی بيت المال يسلک بها مسالک ارض الوقف خيرية من العشر
والخراج وفيها والحاصل انه يجب مراعاة مصلحة بيت المال كما تجب مراعاة مال اليتيم
وماوردفيه غير خاف على فقيه وفيها ايضاً نزل الامام الاعظم فی مال بيت المال منزلة والی اليتيم
وفيها ايضاً لليتماری اجارتها شرعا باجرة المثل الخ( تنقيح الحامدية ج۲ ص۱۰۲)
اودالازمه نه ده چې پردی اول مستأجردی بیا عرض کړه شي ولی دااجاره فاسده ده بل چاته
په اجاره ورکول کیدلاشی بی له عرض پراول مستأجرلکه تنقیح کی چې وایي:
(لكن فی هذه الصورة يؤجرها اليتماری ممن زاد بالزيادة المزبورة من غير عرض على الاول
اذالاجارة الاولى فاسدة بغبن فاحش وفی الفا سدة تؤجر من غير عرض(الفتاوى تنقيح الحامدية
ج۲ ص۱۰۲)
دبیت المال اودیتیم اودوقف دمځکو حکم یودی لکه څنګه چې دیتیم اودوقف مځکه
تراجرة مثل په کمه ورکول نارواده همدارنګه دبیت المال مځکه په کمه ورکول نارواده:
(فی الخیر یة ایضاً من الدعوى ان آراضی بيت المال جرت على رقبتها آحكام الوقف الموبدة(
الفتاوى تنقيح الحامدية ج۲ ض۱۰۲ )واجارة الوقف ومال اليتيم لايجوز الاباجر المثل فلو
اجربدون اجرة المثل يلزم المستأجر تمام الاجرة وعليه الفتوى البحرالرائق ج۸ ص۴ مجمع
الانهرج۲ ص۳۷۰ الفتاوى الكاملية ص۱۹۱ ومثله فی مادة ص۴۴۱ المجلة) والله اعلم

مولانازمان شاه مولانااحمدنوری مولاناعبدالله مولوی نورمحمد ثاقب سرپرست دارالافتاء مرکزی دولت اسلامی افغانستان

# كتاب الوديعة والعارية

**دودیع، امین اووکیل حکم یودی چې ضمان وربانذی نشته قسم به ورکول کیږی**

پوښتنه :ماقولکم رحمکم الله تعالى یوطالب دلوګرولایت دپاره دامیر المومنین وفقه الله
لاعلاء کلمة الله په امضاء باندی له بانک افغانستان څخه څلورزره لکه افغانی راویستلی
کله چې نقد مذکور دلوګر ولایت ته ورسیدی اودهغه ولایت والی ته تسلیم شوی زرلکه
افغانی ناقصی شوی دلوګروالی په طالب دعوی وکړه چې ته سارق ئې اوطالب دبانک

خزانه دارته خپله امضاء د څلورزره لکه ورکړي ده نو طالب په دفع کښی وویل چې خزانه دار ناقصی راکړیدی د خپلی دعوی ثبوت ئې پخپلو انډیوالانو وکړی چې زماسره دوه کسه انډیوالان ملګری وه په وخت درا اخیستو کی یو ترمیدان هوایي پوری ووچې کله موږ په طیاره کی کښینستو نوهغه دموږ څخه پاته شو کله چې طیاری پرواز وکړی نود کابل پر میدان چې طیاره کښینسته دطیاری دروازی ته زموږ دلوګر ولایت مستوفی او رئیس بانګ راغله نود پیسوګونی هغوواخیستی پخپل موټرکښی کښیښوولی څوچې لوګرته په ګډه ولاړو مستوفی صاحب پیسی پخپله کوټه کښی بندی کړی څوچې صباح ورځ والی صاحب ته تسلیمی دی پیسی کمی شوی خوکله چې زموږ دمحکمی مسئولینودده د ملګری ملامحمد هاشم څخه پوښتنه وکړه عین بیان ئې وکړی کله چې دطالب څخه پوښتنه وشوه چې ولی نقصان پر خزانه داردی ولی پرتاندی طالب وویل داځکه چې مادده پر حساب اکتفاء وکړه ولی چې موږډیر دتلوار په حالت کی وو اوخزانه دار موږته پیسی راویستلی چې دغه پیسی ۴۰۰۰۰۰۰۰ څلورزره لکه دی موږقناعت په وکړی موږ نه دی حساب کړی

(دنظامی محکمی ریاست)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون ملهم الصواب

دغه طالب چې پیسی انتقالولی دلوګرولایت ته دی طالب ته آمین ویل کیږی ولی دغه پیسی ده ته دامانت په شکل ورکول شوی دی رسول اوودیع اووکیل ټوله یوحکم لری په امانت کی یعنی دغه ۳ کسانوته چې شئ سپارل شوی وی هغه ددوی سره امانت ګرځی که چیری هلاک شی ضمان نه لری که تقصیر په حفظ اوساتلو کی ددغه شی ئه وکړی او په دی مسئله کی چې طالب د زرلکه څخه منکر شوی دی طالب ته قسم ایښوول کیږی که یی قسم واخستی نو دی خلاصیږی که چیر دبانک دخزانه دارسره شاهدان نه وه:

فاذاصحت الدعوی سأل المدعی علیه عنها فان اقراو انکرفبرهن المدعی قضی علیه والاحلف بطلبه( کنز الدقائق بهامش البحر الرائق ج۷ ص۲۰۲ )( الدعوی) ان کانت مقیدة بسبب بان ادعی انه اقرضه الفا اوغصبه الفا اواودعه الفا وانکر المدعی علیه فقد اختلف ابویوسف ومحمد فی انه یحلف علی السبب اوعلی الحکم قال ابویوسف یحلف علی السبب بالله ما استقرضت منه الفاو ماغصبته الفا اوما اودعنی الفا الخ وقال محمد یحلف علی الحکم من الابتداء با لله ماله علیک هذه

الالف التی ادعی ( بدائع الصنائع ج ۶ ص۲۲۸ )
وهکذا فی الفقه الاسلامی ج۶ ص ۵۲۵)وقد اتفق العلماء علی انه لیس فی الاختطاف اوالخیانة فیما ائتمن علیه اوالاختلاس اوالنهب اوالغصب حد( الفقه الاسلامی ج۶ ص۹۳ )وقال الجمهور لایقطع جاحد المستعار ولاجاحد الودیعة ( الفقه الاسلامی ج۶ ص۹۴ ) وفی تهذیب القلانسی الوکیل من یباشر العقد والرسول من یبلغ المباشرة والسلعة امانة فی ایدهما( البحرالرائق ج۷ ص۱۴۰ )وقبض الامانة هوماکان فیه القابض غیر مسئول عن المقبوض الابالتعدی اوالتقصیر فی الحفظ کالودیعة او العاریة اوالمأجور اومال الشرکة فی ید الودیع اوالمستعیر اوالمستأجر اوالشریک( الفقه الاسلامی ج۴ ص۴۲۱ ) الوکیل امین فیما فی یده کالمودع فیضمن بمایضمن به المودع ویبرء به والقول قوله فی دفع الضمان عن نفسه( الفتاوی الهندیة ج۳ ص۵۶۷ )

اوهمدارنگه خزانه دارد بانک ودیع دی اوامین دی قول دده معتبر دی په حق کی ددفع دضمان دده دځپل ځان څخه نه په حق کی دایجاب دضمان پرطالب باندی بلکه طریقه هغه ده چې ذکر شوه چې که په خزانه دار باندی یوڅوک دعوه وکی اوشاهدان و نه لری نوده ته به قسم ورکول کیږی:

اذاامر صاحب الودیعة المودع بالدفع الی رجل بعینه فقال دفعتها الیه وقال ذالک الرجل لم اقبضها منک وقال رب الودیعة لم تدفع الیه ایها المودع فالقول قول المودع فی حق براءته عن الضمان لافی حق ایجاب الضمان علی المدفوع الیه کذافی الظهیریة (الفتاوی الهندیة ج۴ ص۳۵۸ )

لکن قسم خزانه دار اوطالب دواړته نه ایښوول کیږی بلکه مدعی که دهر یوه تصدیق وکی اودبل تکذیب یی وکی نوقسم به هغه چاته ورکول کیږی چې تکذیب یی شوی دی:

وتجب الیمین علی احدهما لاعلیهما لانه لابد للمؤکل من تصدیق احدهما وتکذیب الاخر فیحلف المکذب منهما دون المصدق(بدائع الصنائع ج۶ ص۳۴) المامور بالدفع الی فلان اذاادعاه وکذبه فلان فالقول له فی براءة نفسه الااذاکان غاصبا اومدیونا کمافی منظومة ابن وهبان( مجمع الضمانات ص۲۵۹)

مولانااحمدنوری عفی عنه مولاناعبدالحکیم عفی الله عنه ۱۹-۱۲-۱۳۷۵ مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء مرکزی دولت اسلامی افغانستان

**مستعير چي په ځمکه کي درختي کښيږدی**

**وارث دمعير رجوع پر درختوهم کولائ شي که پرنفس ځمکه ؟**

پوښتنه : که يوکس وبل کس ته زمکه په اعاره ورکړي وی مستعير درختي پر ايښی وی نواياورث دمعير داحق لری چې دغه درختي راوکرځوی کنه؟ بينو اتوجروا.

(المستفتی ملاعبد الستار مجاهد ۱۵-۸-۱۳۷۵)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون الوهاب

وارث حق درجوع په نفسی زمکی کی لری لکه په شرح المجلة لسليم باز ص۴۴۸ المادة ۸۰۷ کی وايي:

تنفسخ الاعارة بموت المعير اوالمستعير فلومات المعير فلورثته الرجوع...آه

هرچې درختی دی هغه دمستعيردی معير حق په درختوکی نه لری اونه هم حق داجرة لری ځکه چې منفعت دعارية دمستعيردی لکه چې په دغه نوموړی کتاب م۸۱۲ ص۴۵۰ کی وايي:

المستعير يملک منفعة العارية بدون بدل فليس للمعير ان يطلب من المستعير اجرتها بعد الاستعمال لان الاعارة تمليک المنفعة مجاناً ای بلاعوض وشرطها خلوها من شرط العوض لانها تصير اجارة...آه

په الدر المختار علی هامش ردالمحتارج۴ ص۵۶۳ کی وايي:

ولواعار ارضا للبناء والغرس صح وله ان يرجع متی شاءلماتقرر انهاغير لازمة ويكلفه قلعها الااذاكان فيه مضرة بالارض فيتركان بالقيمة مقلوعين لئلاتتلف ارضه آه والله اعلم وعلمه اتم

مولانااحمد نوری عفی عنه مولاناعبدالحکيم عفی الله عنه مولانانداحمدالحقانی

مولوی نورمحمد ثاقب رئيس دارالافتاء مرکزی دولت اسلامی افغانستان

# کتاب الهبه

## هبه دمشاع څه حکم لری اوپه هبه کي قبل القبض رجوع څنګه ده

پوښتنه : عبدالغنی دحاجی صبغت الله زوی د۴ ناحی اوسیدونکی پوښتنه دافغانستان داسلامی دولت محترم عالیقدر ددارالافتاء رئیس صاحب السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته ددارالافتاء عالیقدر رئیس صاحب دوی مسئلی دشرعی شریفی پوښتنه کوم (لومړی ) زمامور خپله حصه دبعض حویلی موروثه پدری وخپل وراره ته چې محمدولی نومیږی وباخښنه اوپه هبه ئې ورکړی په طور دمشاع بیله کوم امتیاز اوبیله قبض اوتسلیم پس له هبه ئې رجوع وکړه یعنی وئې ویل چې زه ردکوم آیا دغه رجوع دهبی قبل القبض اوقبل التسلیم صحت لری کنه ؟

(المستفتی عبدالغنی ولدحاجی صبغت الله)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون الله الملک العلی الاعلی

که چیر ی دغه حصه هبه کړي سوی دحویلی چې مشاع غیر مقسوم ده قابل دقسمت وی یعنی پس له قسمت څخه منتفع به پاته کیږی په هغه قسم دنفع سره چې پخواتر قسمت وی نوداهبه دسره سوی نه ده اونه صحت اوجواز لری ځکه چې شرط دجوازدهبی دپاره کیدل دموهوب دی مقسوم غیر مشاع (یعنی) قسمت شرط دجوازدهبی دی په هغه موهوب کی چې قابل دقسمت وی اوکه دغه حصه مذکوره قابل دقسمت نه وی نودغه هبه خوصحیح ده لکن دتمام دهبی دپاره خوبیاهم قبض شرط دی اوبله داخبره چې رجوع په هبه کی قبل القبض صحت لری اوکنه دواضح او روښانه ده دعباراتو دفقهاو څخه چې صحت لری.

ولکن لاتصح هبة مشاع یحتمل القسمة علی وجه ینتفع به بعدالقسمة کما قبلها کالدار والثوب والارض ونحوذلک ولوکانت الهبة لشریک الواهب لا ن القبض فی الهبة منصوص علیه فیشترط کماله والمشاع لایقبل لقبض الابضم غیره الیه وذلک غیر موهوب فلم یوجد القبض الکامل فاکتفی بالقبض القاصر ضرورة (مجمع الانهر ) (شرح المجلة لسلیم باز اللبنانی ص ۴۷۳ ) للواهب ان یرجع عن الهبة قبل القبض بدون رضاالموهوب (شرح المجلة المذکور م۸۶۲ ص۴۷۴ )وفی الزیلعی واماالقبض فلابدمنه لثبوت الملک اذ الجواز ثابت قبل القبض بالاتفاق انتهی سری الدین وهذ ایفید ان القبض شرط لثبوت

الملک لا للصحة خلاف مایعطیه کلام المصنف (قوله غیر مشاع) هذاشرط الجواز فی محتمل القسمة لافی غیر کمایأتی حاشیة الطحطاوی علی الدرج۲ ص۳۹۲ وایضاًفی تبیین الحقائق ج۵ ص۹۱ الی ج۵ ص۹۳



*مولانااحمدنوری عفی عنه مولانانذاحمدالحقانی مولوی مفتی نورمحمد ثاقب رئیس عمومی دارالافتاء مرکزی دولت اسلامی افغانستان*

## قباله دیو چاپرنامه جوړول معني دهبې لرې اوکنه

پوښتنه : وحضورته دفضیلت پناه عالیقدر محترم رئیس صاحب دعلماء کراموداردالافتاء دطالبانو اسلامی تحریک ته احتراما السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته امابعد زه حاجی محمد اسماعیل دحاجی عبد العزیز زوی دعبد الحلیم لمسی ستاسو محترم ته عرض لرم څنګه چې دنجیب دحکومت په دوره کی یوه اندازه ځمکه په څوقبالو شرعی سره خریداری کړې ده په قرار قباله ۶۰ - ۲۱۰ - ۱۷ - ۵ - ۶۸ اونمبر- ۲۶۵-۷-۵- - ۷۰ او نمبر۳۰-- ۴۹ - ۲۷ - ۱۲ - ۷۰ زما پرنا مه وکړه اوپه قباله من ۳۲ ۲۱۰ - ۱۲ - ۴-۲۸ - زمادزوی محمد ظاهر پرنامه اوبله قباله -۱۱۱ - ۵۵۴ -- ۱۵ - ۱۱-- ۱۳۶۸ زما زوی عبد الحکیم په نامه خریداری کړې ده چونکه زماټوله موروثی اوزرخریده زماپه تصرف اوملکیت جاري دی اودواړه زامن زماسره وجودلری نفقه اوکسوت ورکوم سره له دی خبری چې نورانات اوذکور اولادونه هم لرم اوټولوته زه محمد اسماعیل نفقه ورکوم وغتانوته می ودونه ورکړې دی اولادونه لری هغوته فعلا نفقه اوکسوت ورکوم نواوس چې دایوه قباله دمحمد ظاهر پرنامه اوبله قباله دعبد الحکیم پرنامه کړي ده آیا معنی دهبه ده اوکه څنګه تراوسه هیڅ نه په عقیده اونه په تصرف اونه په قولی نه فعلی ماوزامنوته هیڅ هبه کړی نه دی البته زمازامن چې محمد ظاهر اوعبد الحکیم به دغه فکر ولری چې قباله زماپرنامه ده نودغه دقبالی دمتن مال زماملک دی زه نه غوارم چې زمانوراولادونه دی ددغه مال اوملک څخه بی بهری شی ستاسو دلوړ حضور څخه استفتاء غوارم چې کوم کتاب اوڅنګه فتوی اوپه کوم مسئله شرعی په کومه صفحه سره څنګه حکم راته وفرمایاست چې دغه شک اوشبهه اومعضله حل وفصل شی.

والسلام مع الاکرام. (محمداسماعیل عارض- ۱۴- ۱۲ - ۱۳۷۵)

بسم اللّٰہ الرحمن الرحیم

الجواب بعون اللّٰہ تعالی په نفس قباله سره پرنامه دیوه زوی هبه نه ګرزی بل په ور کولو وزوی ته اوتصرف کول دزوی لاهم هبه نه ده ترهغه پوری چې دلیل دتملیک نه وی موجود شوی هبه که وبالغ زوی ته وی اوکه وغیرته وی سره دتسلیم دلیل دتملیک غواړی هغه دلیل نوکه الفاظ دایجاب اوقبول دهبه وی اوکه نورقرائن وی هرچې هبه وصغیر ولدته وی هغه تسلیم نه غواړی بلکه یوازی دلیل دتملیک کافی دی په ردالمحتار ج۴ ص ۵۶۷ کی راغلی دی:

وفی خزانة الفتاوی اذادفع لابنه مالافتصرف فیه الابن یکون للاب الااذادلت دلالت التملیک (بیری)قلت فقد افادان التلفظ بالایجاب والقبول لایشترط بل تکفی القرائن الدالة علی التملیک کمن دفع لفقیر شیئا وقبضه ولم یتلفظ واحد منهما بشئ.

په الدرالمختار علی هامش ردالمحتار کی راغلی دی ج۴ ص۵۶۸:

بخلاف جعلته باسمک فانه لیس بهبة آه په ردالمحتار کی دی قوله بخلاف جعلته باسمک قال فی البحر قید بقوله لک لانه لوقال جعلته باسمک لایکون هبة... آه

په ردالمحتار همدغه صفحه کی راغلی دی:

اتخذلولده الصغیر ثوبا یملکه وکذاالکبیر بالتسلیم (بزازیة )په منحة الخالق علی البحر الرائق ج۷ ص۲۸۸ کی راغلی دی قال الرملی وفی الحاوی الزاهدی دفع لولده الصغیر قرصا فاکل نصفه ثم اخذه منه ودفعه لاخر یضمنه اذاکان دفعه لولده علی وجه التملیک واذادفعه علی وجه الاباحة لایضمن قال عرف به ان مجرد الدفع من الاب الی الصغیر لایکون تملیکا وانه حسن... آه واللّٰہ اعلم

مولانامحمد اخلاص برکتی مولاناعبدالحکیم عفی اللہ عنہ مولانااحمد نوری عفی عنہ مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء مرکزی دولت اسلامی افغانستان

**بله پوښتنه**

پوښتنه : محترم رئیس صاحب دارالافتاء لوړ حضورته السلام علیکم ورحمة اللّٰه وبرکاته وبعد محترمه! موږ ۵ ورونه یوددومیندواولاده چې ۲ دیوې مور او ۳ دبلې یو پلاردد غه کشرانو ۳ورونو په نامه قبالی دمحکو کړی وی کله چې پلارمړکیدی په حضورد

شاهدانوېږ وصیت وکړی چې دغه قبالې چې ددغه کشرانوپه نامه دی ددوی نه دی زماټو
ل زامن اولوڼی پکښې مشترک دی اوس په دغه محکه کی چې قبالې دهغودروپه نامه دی
دپلاردوصیت له رویه موږدغه دقبالو په محکه کی ازروی شریعت حق لروکه ئې نه لرو
اوس ازروی شریعت اعتباروقبالی ته دی اوکه وصیت نامی ته دی.

(المستفتی جمال الدین)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب ومنه الصدق والصواب

مسئله داده چې پلاررخپلوزامنوته مځکه یامال ورکړی دپاره ددی چې هغه زامن تصرف
پکی وکړی په طریقه دهبې اوبیازامن هم تصرف پکښې وکی اوبیا پلارمړسی نوټوله
مځکه دهغه زامنوده اوکه ئې په طریقه دهبې نه وه ورکړی نوبیا مځکه یامال پرطریقه
دمیراث تقسیم کیږی یوازی قباله دچاپه نامه جوړول دلیل دهبې نه گرځی:

دفع لابنه مالالیتصرف فیه ففعل وکثرذلک فمات الاب ان اعطاه هبة فالکل له والا فمیراث
وتمامه فی جواهر الفتاوی(الدر المختار بهامش ردالمحتار ج۴ ص۵۸۲) یملک الموهوب له
الموهوب بالقبض فالقبض شرط لثبوت الملک الخ (شرح المجلة لسلیم باز م۸۶۱ ص ۴۷۳ )

اب انتقال ملک بغیر کسی عقد صحیح معتبر تام کی نہیں ہوگا... تاوقتیکہ کوئی عقد صحیح معتبر مفید انتقال ملک واقع نہ ہو حالانکہ
ہمیشہ تصرفات مالکانہ خود کرتا رہا(*) امداد الفتاوی ج ۳ ص۳۱ ) والله اعلم وعلمه اتم

مولوی ندا محمد الحقانی مولوی محمود میوندوال مولانا احمد نوری عفی عنہ

## دهبه خط په لیکلو دهبې څه حکم دی

### اودغه هبه خط قبل القبض دملک حجة دی کنه اوپه داسې هبه خط کې رجوع څنګه ده؟

پوښتنه:(۱)یوڅوک چې چاته خپل ملک ورهبه کړی اودهبې خط ددومسلمانانوپه
حضورکی ورکړی خوهغه ملک ورته تسلیم نکړی اوهغه سړی په دغه هبه شوی ملک کی
تصرف ونکړی نوداهبه صحیح ده کنه خوتقسیم معلوم ده چې هغه ځمکه ده (۲) که دغه هبه

(*) ترجمه: اوس دملک منتقلید ل بیله کوم صحیح معتبر اوتام عقدنه کیږی ترڅوچې کوم صحیح اومعتبر عقد دملک دانتقال
مفید واقع نشی حال دادی چې مالکانه تصرفات یې پخپله تل کول...الخ

شوی ملک هغه سړی بیرته راوګرزوی چې زه ئې نه درکوم اودابل ئې وړبرېږدی شفاهي داصحیح ده کنه ملک بیرته دکوم یوکیږی (۳) هغه هبه خط وروسته دوفات څخه شرعاهغه بل سړی چې ملک ورته هبه شوی مدارداعتبارده کنه اوو رثه دده دغه هبه ګرزولاي شی کنه ؟

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب ومنه الصدق والصواب

په دی اجزاکښی په دی هبی سره ثبوت دملک نه ده راغلی ځکه قبض نشته پکښی اوپه هبه کی قبض شرط دی داثبوت دملک دپاره نوپه دغه ۳ اجزاء کښی داستفتاء مال توله میراث دی په طریقه د میراث به تقسیم کیږی هبه خط هیڅ فائده نه کوی په شرح المجلة لسلیم باز ص۴۷۳ کښی لیکلی:

(المادة۸۶۱) یملک الموهوب له الموهوب با لقبض فا لقبض شرط لثبوت الملک لالصحة الهبة (طحطاوی) لان جواز ها قبل القبض ثابت بالاتفاق (مجمع الانهر)

والله اعلم بالصواب



مولوی نذاحمد اسحاقی مولوی محمود میوندوال مولوی عبدالحکیم عفی الله عنه مولوی احمد نوری عفی عنه

مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

**موهوب له چې په هبه شوی ځمکه کې تصرف وکړی واهب حق درجوع لری اوکنه**

پوښتنه: محترم استاد مولوی صاحب زه عبد الحبیب دمستوفیت مسئول غواړم چې په دی مسئله کښی چې لاندی لیکل کیږی پوره معلومات راکړی څو چې زموږ مشکل رفع شی په هبه شوی ځمکه کښی چې موهوب له تصرف پکښی کړی اعنی سرای ئې پرجوړکړی دی واهب بیرته رجوع کولای شی کنه؟ والسلام.

(عبدالحبیب مسئول مستوفیت)

بسم اللّٰہ الرحمن الرحیم

الجواب بعون اللّٰه الوهاب په هبه شوی شی کی چی موهوب له داسی زیادة وکړی چی دموهوب شئ سره متصل وی نه جداکیږی اودموهوب شئ قیمت په زائد کیږی نوواهب رجوع په دغه موهوب شئ کی نشي کولای نوکه موهوب مځکه وی موهوب له سرای پرجوړکړی وی (لکه چی مستفتی وایي) واهب لره حق درجوع نسته په تبیین الحقائق ج۵ ص۹۸ کی لیکلی دی:

(ومنع الرجوع دمع خزقة یعنی الموانع للرجوع فی الهبة اشیاء یجمعها هذه الحروف علی مانبینها فالدال الزیادة المتصله کالغرس والبناء والسمن) لان الرجوع لایصح الا فی الموهوب والزیادة فامتنع اصلا وبطل حق الواهب لان له حق التملک فی الاصل دون الزیادة لیست بموهوبة فلارجوع فیها والفصل متعذر لیرجع فی الاصل دون الزیادة وحق الموهوب له حقیقة الملک فیهما فکان مراعاته اولی عند تعذر الفصل ولایمکن ایجاب الضمان علیه لان حق التملک لا یجوز اخذ العوض عنه فبطل اصلا ...آه

په الدرالمختار علی هامش الطحطاوی ج۳ ص۴۰۱ کی لیکلی دی:

ویمنع الرجوع الرجوع فیها دمع خزغة یعنی الموانع السبعة الاتیة فالدال الزیادة فی نفس العین الموجبة لزیادة القیمة المتصلة کبناء وغرس ان عدا زیادة فی کل الارض والارجع ولو عدافی قطعة منها امتنع فیها فقط زیلعی...آه

په طحطاوی کی په شرح ددغه عبارت کی لیکلی دی:

وفی الهندیة عن الکافی ان وهب لاخر ارضا بیضاء فانبت الموهوب له فی ناحیة منها نخلا اوبنی بناء او دکانا وکان ذالک زیادة فیها فلیس له ان یرجع فی شئ منها ...آه

دغه مسئله چی زیادة متصله چی دموهوب په قیمت کی زیادة راولی مانع درجوع څخه د واهب ده دمذهب په دیروکتابونو کی ذکرشوی ده لکه ردالمحتار ج۴ ص۵۷۴ بدائع الصنائع ج۶ ص۱۲۹ مبسوط ج۱۲ ص۸۶

عبدالحکیم عفی اللّٰه عنه مولانا عبداللّٰه مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

## بي دقبضي له موهوب له دپلارهبه وزوی ته څنګه ده ؟

پوښتنه : که پلار په خپل ژوند کی یو چاته پیسی ورکی په شراکت او هغه سړی ته ووایي چې دغه پیسی ته چلوه پیسی اوګټه یی ټو له زماد مرګ وروسته زماد فلانی زوی دی او یو څو کاله وروسته پلا رمړسی او پیسی دهغه سړی سره وی آیا وروسته دغه پیسی یوازی دهغه زوی کیږی او که داحق مشترک دی دټوله ورثه وو والسلام بااحترم

(المستفتی ملاعبد الباسط)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون الله العلی الاعلی

دپلار تخصیص یوه زوی لره په هبی دمال خپل سره پس له مرګ څخه داشرعا وصیت بلل کیږی لکه په الفتاوی تنقیح الحامدیة ج ۲ ص ۲۸۰ کښی لیکل شوي دی اذاقال اوصیت ان یوهب لفلان سدس داری بعد موتی کان ذلک وصیة عملابقوله بعدموتی فالهبة بعد الموت هی الوصیة فتصح مع الشیوع ولایشترط قبضه فی حیاة الموصی تاتارخانیة اول کتاب الوصیة نوکله چې زوی وارث دی وارث لره وصیت نه صحیح کیږی بغیر داجازت څخه دنورو ورثه ووپس دغه پیسی داحق مشترک دی دټولو ورثا مګرکه هغوا جازت وکړی دغه یوه زوی دمړی لره کوم چې هغه ورته وصیت کړی وولکن دغه اجازت به هم وروسته تر مرګ دپلار وی څکه چې په حال دحیات دپلار کی داجازت څخه رجوع صحیح کیږی:

(ولالوارثه ) لقوله علیه الصلوة والسلام ان الله اعطی کل ذی حق حقه الالاوصیة لوارث ولان بقیة الورثة یتاذون بایثاره بعضهم ففی تجویزه قطیعة الرحم ( الاباجازة الورثة ) استثناء مما تقدم من عدم الصحة بمازاد علی الثلث وعدم صحة الوصیة لقاتله ووارثه یعنی لاتصح الوصیة بمازاد علی الثلث ولاللقاتل ولاللوارث فی حال من الاحوال الافی حال التباسها باجازة الورثة مجمع الانهر ج۲ ص۶۹۲ و الفتاوی تنقیح الحامدیةج۲ ص ۲۸۶ والدر المختار علی هامش ردالمحتار ج۵ ص۴۶۴ والله اعلم.

مولوی نذاحمد الحقانی مولانا احمد نوری عفی عنه مولوی نور محمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

**دتقیسم پر مهال که پلارځني ورثه پرېږدي نوهغوی دحق دعوی کولائ شي اوکنه؟**

پوښتنه :یوڅوک چې خپل ملکیت په خپل ژوند خپلوزامنوته ورکړي اوهریوته خپله حصه ورمعلومه کړي اوخپلې منکوحې ته حق ورنه کړي نووروسته دده له وفات څخه دده منکوحه دحق دعوی کولای شي کنه حق لري کنه لري؟

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب ومنه الصدق والصواب

چې پلارخپل زوی ته خپل ملکیت اومال ورکړي داورکړه ئې پردوه قسمه ده (۱) دادي چې پلارخپل زوی ته مال ورکې لپاره ددی چې هغه تصرف پکښې وکې اوبیافعلاً دی هغه تصرف وکې اودامال دیر کړي نوورروسته بیا پلار مړشي نواوس که داپلار دامال ورکړي وی(هبة) نوداټول مال دپاره ددغه زوی اواولاددی نورڅوک حق نه پکښې لري (۲) پلارخپل زوی ته خپل مال نه وی ورکړي په طریقه دهبې بلکه ورکړي وی په طریقه دقرض اویائې ورکړي وی دپاره ددی چې عمل وکړي دپاره دخپل پلارنو دامال بیا چې ورکړي دی ټوله په طریقه دمیراث دی اصل ئې ټوله میراث دی (ربح) ئې اوګټه ئې ټوله دده ده لکه په الدرالمختار بهامش ردالمحتار کی لیکلی دی ج۴ ص۵۸۲-

دفع لابنه مالا لیتصرف فیه ففعل وکثر ذالک فمات الاب ان اعطاه هبة فالکل له والافمیراث اوهمدارنګه په تکمله دردالمحتار کښې لیکلی دی ج۲ ص۳۸۶ دفع لابنه مالا لیتصرف فیه ففعل وکثر ذلک فمات الاب ان اعطاه هبة فالکل له والافمیراث (قوله : والا) ای وان لم یعطه هبة بان اعطاه قرضا اودفع الیه لیعمل للاب (قوله فمیراث) فالاصل میراث والربح له .

مولوی زاهداحمدالحقانی مولوی محمود میوند وال مولوی عبدالحکیم عفی الله عنه مولانااحمدنوری عفی عنه مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

**دپلارواولادته مشترکه یا جلاجلا څمکه هبه کول**

پوښتنه :محترم ددارالافتاء رئیس صاحب السلام علیکم ورحمة الله وبرناته محترمه! زموږ نیکه دپلارپه ژوند کی خپل جایداد په لاندی ډول په خپلواولاده ویشلی دی یوباغ چې ریکه باغ په نامه یادیږی خپلودوولونوته بل باغ چې دترنک دباغ اوڅو جووی نوری

چې دباد ام دجوو په نامه یادیږی وخپل زوی ته چې زموږ پلار کیږی ورکړي دی چې دغه سند په کورکی لیکل شوی دی اوشاهدان پرنیول شوی دی فعلاسند موجودنه دی اویوشاهد موجوداوژوندی دی همدارنګه په دی ویش اوسند زموږ دواړه عمه ګانی چې زما دپلار خوندی کیږی اګاهی لری کله چې تقیسم معلوم شوزموږ پلارپخپل باغ کی تصرف کړي دی اودهغه باغ سرپرستی ئې ترمرګ ترساعته پوری کړي ده اوهم زموږ دپلار ترمرګ وروسته بیا زموږ نیکه په شفاهی ډول وصیت کړي دی چې هغه زمادزوی حق زمادلمسیانودی اوبل زما دلونودی زموږ دپلارترمرګ وروسته دباغ تصرف زموږ ورونوپه لاس کی شوي دی څرنګه چې دپنځلس کاله راپدی خواتراوسه پوری زموږ عمه ګانی دهجرت په ډول په پاکستان کی ژوندکوی اودخپل باغ تصرف ئې تراوسه ندی کړی دوه کاله کیږی موږ دعمه ګانوباغ دپنځوکالودپاره وغلام جان ته ورکړی دی نوموړی شخص به پنځه کاله په باغ کی کارکوی حصول به ئې خوری پس له پنځه کاله بیرته موږته راتسلیمیږی موضوع مومحترم مقام ته عرض کړی په دی حصه کی دشرعی احکامو مطابق فتوای غواړم چې زموږ قناعت پوری حاصل شی والسلام .- ۲۵ - ۱۰ - ۱۳۷۵

بسم الله الرحمن الرحيم

بعون الله الكريم پلاروخپل اولادته مخکی ورو ویشی په طوردهبه دغه هبه صحیح ده په دې شرط چې دهریوه حصه به ئې هغه ته ورجلاکړي وي هغه به په مالکانه طور قبض کړی وی دوه اولادونه به ئې په یوحصه نه وی شریک که شریکان وه هبه دمشاع نه صحیح کیږی په استفتاء کښی مستفتی وایي چې یوباغ چې دریکه باغ په نامه یادیږی وخپلولونوته ورکړ دی که ئې باغ چیری تقسیم کړی وی دهرلورحصه ئې معلوم کړی صحی دی که ئې مشترک ورکړی وی نو دغه هبه نه صحیح کیږی لکن که چیری دغه لونې فقیراني وی نوهبه صدقه ګرزی صحي کیږی که څه هم مشاع دي هرچې وصية دنیکه دی ددغه باغ هبه که صحی نشی دوجه دشیوع څخه نودثلث مال څخه هم نه نافذ کیږی ځکه چې وصیت ووارث ته نه صحیح کیږی هرچې مستفتی وایي چې یو شاهد ژوندی اوموجوددی نورشاهدان مړه دی اوسندهم ورک دی دغه شواهد اوسندونه په وخت کی ددعوی په مخکی دقاضی پکاردی که موجودنه وه نوقسم دی هر چې دیانة ده دخولی ورکړی اوتسلیم ته اعتباردی ځکه عقد دهبه په ایجا ب وقبول په شرط دقبض تامیږی په شرح المجلة للاتاسی کی راغلی دی ج۳ ص۳۶۲ ؛

مادة ۸۵۰ ( اذاوهب احد لابنه الكبير البالغ العاقل شيئا يلزم التسليم وبدون قبضه لاتتم الهبة اذلافرق بينه وبين الاجنبى حينئذ په الدرالمختاركى راغلى دى وهب اثنان دار الواحد صح لعدم الشيوع وبقلبه لكبير ين لاعنده للشيوع فيما يحتمل القسمة ( الدرالمحتار على هامش ردالمحتار ج۴ ص۵۷۳ )

**په ردالمحتارج۴ ص۵۷۳ کی راغلی دی:**

قوله لكبير ين اى غير فقيرين والاكانت صدقة فتصح په البحر الرائق ج۷ ص۲۹۰ کی راغلی دی قوله وصح تصدق عشرة وهبتها لفقيرين لاللغنيين ) اى لايجوز التصدق بهما على غنيين ولاهبتهما لهما والفرق ان الصدقة يرادبها وجه الله وهوواحد فلاشيوع والهبة يرادبها وجه الغنى وهما اثنان و الصدقة على الغنى مجاز عن الهبة كالهبة من الفقير مجاز عن الصدقة.... الخ

**په تبيين الحقائق ج۶ ص۱۸۲ کښې راغلی دی:**

ولاتصح بمازاد على الثلاث ولا لقاتله ووارثه ان لم تجز الورثة اماالثالث فلقوله صلى الله عليه وسلم ان الله تعالى اعطى كل ذى حق حقه فلاوصية لوارث الخ والله اعلم



مولانا احمد نوری عفی عنه مولوی عبدالحکیم عفی الله عنه مولوی محمد اخلاص برکتی مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

**دځيني زامنوپه نوم رانيول شوى ځمكه دچاده**

پوښتنه :يوسړی مځکی رانيولی اوقباله ئې ديوه زوی په نامه اوبله مځکه ئې رانيولی قباله ئې دنورو زامنو په نامه ليکله دغه دقبالو داخلی مځکی مشترکی دوروڼوترمنځ دی اوکنه دپلاردمرګه وروسته ؟

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون ملهم الصواب

کچيری ئې دغه مځکه هبه کړی وی اوزامنو مالکانه تصرف پکښې کړی وويعنی دغه جائداد ئې ځان ته دپلاردلاسه تسليم کړی وونودا جائداد خاص دی په زامنو پوری مشترک نه ګرځی اوکه ئې هبه نوه کړی يازامنو دپلارپه ژوندکی قبض دمځکو نه ووکړی بيانو مشترک ګرځی يوازی قباله ديوچاپه نامه جوړول معنی دهبی نه لری اونه انتقال

دملک په کیدای سی:
دفع لابنه مالالیتصرف فیه ففعل وکثر ذلک فمات الاب ان اعطاه هبة فالکل له والا فمیراث (الدرالمختار بهامش ردالمحتار ج۴ ص۵۸۲) یملک الموهوب له الموهوب بالقبض فالقبض شرط لثبوت الملک الخ (شرح المجله لسلیم باز م ۸۶۱ ص۴۷۳)
اب انتقال ملک بغیر کسی عقد صحیح معتبر تام کی نہیں ہوگا ... تا وقتیکہ کوئی عقد صحیح معتبر مفید انتقال ملک واقع نہ ہو حالانکہ ہمیشہ تصرفات مالکانہ خود کرتا رہا(۱) الخ امداد الفتاوی ج۳ ص۳۱ هکذا فی امداد المفتیین ۸۴۴)

# کتاب الغصب

## دعقار دغصب حکم

پوښتنه ددارالافتاء فضیلت مآب رئیس صاحب لاندی عرض کوم یوقطعه مځکه چې تقریبا دوه جریبه دیار لس بسوی کیږی دکابل جادی ته نژدي ددوراهی په حدود کی په تاریخ ۱۵ - ۲ - ۱۳۵۴ په بیع قطعی دحاجی رحمت الله څخه رانیولی وه چې سندئې په لاس لرو اوپه ۲۰ - ۵ - ۱۳۵۶ کال رسمی عریضه دشرعي قبالی لپاره دوخت حکومت ته ورکړی وه تراوسه ذو الیده یوواوس خودسرانه ډبره پرلوید لي ده چې معلومات موو کړی عبد الولی دحاجی رحمت الله زوی په زبردستی داکارکړي دي موږ دقانون برابر ی داخله شعبی ته عاریضه ورکړي ده دامنیی قوماندانی دعبد الولی خودسرانه کاربندکړي دي په دي هکله ستاسو دمقدس مقام څخه هیله لرم چې موږ ته شرعی معتمده مسئله راکړی که موږ حق په جانب یو متجاوزدی مربوط شعبی ته معرفی اولازمه جزاء دي ورکړه سی والسلام.

(حاجی محمد اکبر عارض)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب ومنه الصدق والصواب
کومه ډبره چې عبدالولي دحاجی رحمت الله زوی په زبردستی پراچولی ده پردغه مځکه باندي داصورة دغصب دعقار دي اودعقار په غصب کی اختلاف دی په مینځ کی داامامینو

---

(۱) ترجمه: اوس انتقال دملک بیله کوم صحیح اومعتبر عقدنه تامیږی ترڅوکوم صحیح معتبر اود ملک دانتقال لپاره مفید عقد واقع نشی حال دادی چي تل بي دمالک په توګه تصرفات پخپله کول...الخ

اوامام محمد رحمه الله امامین رحمة الله علیهما وایي چې په عقار کی غصب نهٔ متحقق کیږی اوامام محمد رحمه الله وایي چې په عقارکی غصب متحقق کیږي اوحکم دغصب داده: که مغصوب موجودوي دده دعین مغصوب بل شی نشته په صورة مذکوره کي فقط دځمکی تسلیمی ده چی ځمکه وخپل خاوند ته تسلیم شی ځکه چی ځمکې ته کوم تاوان نه دی رسیدلی لکن خلاصه داده چې امامین رح چې وائې چې غصب په عقارکي نه متحقق کیږی داهغه (۱) وخت چې غصب دعقار په حکم دضمان کښی داخلی او(۲) هر چې په ماورا څخه دضمان چې واخلی نوبیا امامین رح هم قول کوی په غصب دعقار سره ځکه چې متحقق کیږي داغصب دعقار په وجوب سره درد (المغصوب الی مالکه) که چیري غصب متحقق په نزددامامینو رح په ماعد الضمان کي نوای نوته به وای متحقق شوی وجوب د رد ثم ان غصب العقار انما لایتحقق عند هما فی حکم الضمان امافیما وراء ذلک یتحقق الاتری انه یتحقق فی وجوب رد المغصوب الی مالکه فلولم یتحقق الغصب عندهما فیما عد الضمان لمایتحقق وجوب الرد (شرح المجلة لسلیم رستم ص۵۰۱ )وفی اجارة الفیض انمالایتحقق الغصب عندهما فی العقار فی حکم الضمان اما فیما وراء ذلک فیتحقق الاتری انه یتحقق فی الردالخ( الدر المختار علی هامش ردالمحتار ج ۵ ص ۱۳۱ اي فی وجوب رده علی مالکه فلولم یتحقق الغصب عند هما ایضاً فیما عدالضمان لمایتحقق وجوبالرد (ردالمحتار ج۵ ص ۱۳۱ ) والله تعالی اعلم بالصواب.

مولوی نذاحمد الحقانی مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

**دبیت المال کوم اجناس چې غصب شي**

پوښتنه : دبیت المال اجناس لکه آهنی گاډران اوتختی چې یو نفر پر خونه ایښی وی اوخونې یې پرې جوړی کړی وی په ده گاډران راوړل شی اوکه په عوض کي پیسی څنی واخستل شی په دی باب شرعی فتوی اوفیصله غواړو.

(دتحقیق مدیریت داستخبار اتو څانگه)

بسم اللّٰه الرحمن الرحيم

الجواب باسم ملهم الصدق والصواب

دغه دبیت المال اجناس چې خلقو وړي وي اوبناء یې پرجوړه کړي وي کچیرې دبناء قیمت پرقیمت ددغه اجناس ډیر وي نودهغه وړونکي نفر څخه قیمت ددغه اجنا س اخستل کیږي اوکه ددغه اجناس قیمت پرقیمت دبناء ډیروونو اجناس اخستل کیږي:

والبناء على ساجة وقيمته اى البناء اكثر منها اى من قيمة الساجة يملكها البانى بالقيمة (الدر المختار) (قوله وقيمته اى البناء اكثر منها) جملة حالية قال فى المنح واماذا كان قيمة الساجة اكثر من قيمة البناء فلم ينقطع حق المالک عنها كما فى النهاية عن الذخيرة وبه قيد الزيلعى كلام الكنز آه (ردالمحتار ج٥ ص١٣٥ كتاب الغصب)

اوکچیرې قیمت دبناء اوداجناسو برابر وونوکه دغه وړونکي اومتصرف داجناس پریوشئ صلح وکړه رواده اوکه یې صلح نکول نودغه بناء سره داجناس خر څیږي ثمن ئې په اندازه ددوی دمالو تقسیمیږي:

لوكانت قيمته الساجة والبناء سواء فان اصطلحا على شئ جاز وان تنازعا يباع البناء عليهما ويقسم الثمن بينهما على قدر مالهما شرنبلالية عن البزازية (الدر المختار على هامش ردالمحتار ج٥ ص١٣٥)

مولوی محمد اخلاص برکتی مولوی عبدالحکیم عفی اللہ عنہ مولوی نداحمد الحقانی مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

## دټوپکیانو په کورونوکي په اثبات رسیدلي دولتي اجناس

پوښتنه: هرهغه شئ چې دبیت المال وي دټوپکیانو په وقت کي په ځینو کوروکی موجود وي هغه په اثبات اوشواهد رسید لی وی لکه داوبو پیپونه چپرکتان اوتلیفون خادي اوداسې نورچکنه اجناس؟

بسم اللّٰه الرحمن الرحيم

الجواب باسم ملهم الصدق والصواب

دغه اشیاء چې په اثبات رسیدلی وی که اوس هم دهغو خلقو سره موجودوی عین دغه شیان اخستل کیږي او کچیرې دغه خلق دعوی کوی چې هلاک شوی دی اوس زموږ سره وجود نه لري حاکم به ئې بندیان کړي ترهغه وقت پوري چې حاکم ته معلوم شي کچیرې دغه شیان

ددغه خلقو سره موجودواى اقرار به ئې په كړى واى كه ئې اقرار وكړى نودغه شيان اخستل كيږى او كه ئې اقرار ونه كړى نومثل ددغه شيان كه چيرى مثلى وى ياقيمت كچيرى قيمى وى اخستل كيږى:

يلزم ردالمغصوب عينا وتسليمه الى صاحبه فى مكان الغصب ان كان موجودا( المجلة م۸۹۰ ) وهكذافى الدر المختار على هامش رد المحتار ج۵ ص۱۲۸ فان ادعى هلاكه حبس حتى يعلم الحاكم انه لوبقى لظهر اى لاظهره ثم قضى الحاكم عليه بالبدل من مثل اوقيمة اه( الدر المختار على هامش ردالمحتار ج۵ ص ۱۳۰

مولوى عبدالحكيم عفى الله عنه مولوى نذاحمد الحقانى مولوى محمد اخلاص بركتى مولوى نورمحمد ثاقب دافغانستان دمركزى دارالافتاء رئيس

**چاچي سلاح وړى وى**

پوښتنه :هغه سلاح چې دتوپكيانو په وخت كى ورل شوى وى يائې خر څه كړى وى د توپكيانو ياد تحريك اسلامى حكومت كى دغه نفر سره څنګه وكړو ؟

(دتحقيق مديريت داستخباراتو څانګه )

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب باسم ملهم الصدق والصواب

اسلحى دبيت المال چې توپكيانو په وقت يا تحريک اسلامى په وخت كى خلقو خپل پرسروړى وى يائې خرڅ كړى وى كه دغه اسلحى ددغه خلقو سره موجودوى دغه اسلحى اخستل كيږى كه موجودنه وى قيمت ددغه اسلحو اخستل كيږى لكه چې دپورتنى پوښتنى په جواب كې چى ذكرشول سره د حوالو والله تعالى اعلم.

مولوى عبدالحكيم عفى الله عنه مولوى نذاحمد الحقانى مولوى محمد اخلاص بركتى مولوى نورمحمد ثاقب دافغانستان دمركزى دارالافتاء رئيس

## مغصوب عنه كه دغاصب پرنور مال قدرت ومومي نو

پوښتنه : دافغانستان داسلامی دولت محترم رئیس صاحب دار الافتاء وعالی مقام ته السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته عالیقدره زموږ څخه یوه رمه چې ۲۶۱ میږی وی دغور په منطقه کښې ددوستم نفروه چې ارباب عبد الصمد اوارباب رحیم په زوره راڅخه بوتلل نواوس دارباب عبدالصمد نامی چې زمامال ئې بیولی دی دده نورپسونه دهلمند په ولایت کښې دآغا بادار پلاس کښې دی چې هغه هم کوچی دی نودمهربانی دمخی وماته داسی فتوی راکړی چې زما لاس په دغه مالو چې داغابادار پلاس کی دی لګیږی اوکنه ؟ (المستفتی ادم اکا ولد نیک محمد کوچی)

بسم الله الرحمن الرحیم

هوالله تعالى المستعان

امابعد فنقول ومن الله تعالى التوفيق محترمو خاوند لره دحق په اوس زمانه کی چې قدرة ئې پرهغه چا چې مال ئې ځنی اخستی وی که بعینه هغه مال چې له ده څخه ئې اخستی وی په زبردستی سره یابل چې هغه قدرقیمت لری واخلی روادی لکن په دی شرط چې یقینی معلوم شی چې دامال دعبدالصمد دی:

لیس لذی الحق ان یاخذ غیر جنس حقه وجوزه الشافعی رحمه الله قد منافی کتاب الحجران عدم الجواز کان فی زمانهم امااليوم فالفتوى على الجواز وهو الاوسع لتعينه طريقا لا ستيفاء حقه فينتقل حقه من الصورة الى المالية كمافى الغضب والاتلاف ( ردالمحتارج۵صـ ۳۰۰ )

(تنبيه) :قال الحموى فى شرح الكنز نقلاً عن العلامة المقدسى عن جده الاشقر عن شرح القدورى للاخصب ان عدم جوازه من خلاف الجنس كان فى زمانهم لمطاوعتهم فى الحقوق والفتوى اليوم على جواز عند القدر ة من اى مال كان لاسيما فى ديارنا لمداومتهم العقوق ردالمحتار ج۵ ص۱۰۵ كتاب الحجر والقاضى يحبس الحر المديون لبيع ماله لدينه وقضى دراهم دينه من دراهمه يعنى بلاامره وكذالوكان دنانير ( وباع دنانير بدراهم دينه وبا لعكس استحسانا ) لاتحادهما فى الثمنية (لا) يبيع القاضى (عرضه ولاعقاره ) للدين (خلافا لهماوبه) اى بقولهما ببيعهما للدين (يفتى) اختيار وصححه فى تصحيح القدورى ويبيع كل مالايحتاجه فى الحال ( الدر المختار) قوله ويبيع كل مالايحتاجه الخ قال فى التبيين ثم عندهما يبدء القاضى ببيع النقود ثم العروض ثم العقار الخ ( ردالمحتار ج۵ ص۱۰۵ كتاب الحجر والله تعالى اعلم :

مولانا ندامحمد الحقانی

## دغصب په ځمکه تصرف کونکي حق دتصرف لري کنه؟

پوښتنه : دمحترم ددارالافتاء وریاست ته السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته محترم څرنګه چې دمشکل په صورت کی ددغه مسئلی په ذکرکی معلومات مفصل راکی (۱) ددولت مځکه یونفر غصب کړی ده اوبل نفرته په اجاره ورکړی ده اجاره دار په هغه مځکه مصرف کړی دی اوس دولت بیرته هغه مځکه دمعلوماتو په صورت کی ضبط کړل اوس اجاره دار وایي چې زمامصرف په سوی دی چې ۱۲ سوه ګزه جر پکښی ویستل شوی اوبل په ټکټر اړول شوی اوخاوره ورکول شوی نودغه مصرف په کوم طرف پوری مربوطیت لری دامکان په صورت کی موږ ته ددغی مسئلی په باره کی معلومات راکړی والسلام.

(المستفتی حاجی خیر محمد معاون زراعت)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون الملک الوهاب

محترم مستفتی صاحب نوموړی اجاره دار چې کوم په استفتاء کی ذکرسوی مصارف په مځکه دغصب کړی دی هیڅ حق دعوض دمصارفو نه لری پرهیڅ چاباندی ځکه چې دی په حکم دعین غاصب کی شمیرل کیږی اودغاصب حکم دادی چې دی متبرع (یعنی ښه ځوانی کوونکی اواحسان کوونکی) بلل کیږی په هغه مصارفوکی چې مال متقوم نه وی لکه کوم مصارف چې په استفتاء کی مذکوردی:

(المادة ۹۰۸) اذاکرب ارضا غصبها ثم استردهاصاحبها فلیس للغاصب ان یطالب باجرة الکراب لکونه متبرعا ولیس الکراب مالا متقوما لیسترده الغاصب قال فی الهندیة وان کان الغاصب زاد فی الارض من عنده ان لم تکن الزیادة مالا متقوما بان کرب الارض وحفر النهر اوالقی فی الارض سرقینا واختلط بالتراب وصار بمنزلة المستهلک فان للقیم لیسترد الارض بغیر شئ آه وفی الخانیة ولو غصب نخلا اوزرعا فسقاه وانفق علیه حتی انتهی فلاشئ له وکذالوقصر الثوب المغصوب آه (المادة ۹۱۰) غاصب الغاصب فی حکم عین الغاصب وکذامودع الغاصب والمرتهن منه والمنتهب والمستعیر والمستأجر من الغاصب ردالمحتار وکذا من اخذ المغصوب من الغاصب لیرده الی مالکه (هندیة) شرح المجلة لسلیم باز اللبنانی من ص ۵۰۶ الی ص۵۰۷ والله اعلم وعلمه اکمل واتم.

مولوی نذاحمد الحقانی مولوی احمدنوری عفی عنه

# باب الضمان

## په ضياع سره دبل دمال ضمان لازميږی

پوښتنه : محترم دتميز عالي رياست رئيس محترم مولوی صاحب السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته ملاعبد القيو م اخند وايي چی ما دهرات مربوط دزنده جان په ولسوالی کی يوه عراده لنډ کروزر موټر په آويا خلتو ترياکو چی وزن دهری خلتی يومن ۲۳ سيره رانيولی چی دخپل ددغه سوداشاهدان دشخصيت تير کړی امادمخه تردی چی دی موټر راولی په هرات کی طالبانوداشتباه په خاطر موټر بيولی چی اخير موټرپه کابل کی سوی اوس مونږته شر عامعلومات نه کيږی ددغه موټر تاوان ورکړو که يا اوکه ئې ورکوبايد په څه ترتيب ئې ورکړو دوی مو دروا ستول تاسوبه معلومات راکړی والسلام.

(المستفتی ملاصاحب الحاج محمد حسن)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون ملهم الصواب

چاکه دبل چامال ضائع کړو اګر چې دائې ګمان وُ چی داځما مال ده نوضمان پری لازميږی په شرح المجلة للاتاسی ج۳ ص۴۵۶ کښی ليکلی دی:

لواتلف احد مال غير ه على زعمه انه ماله يضمن ) لان هذاحق العبد فلايتوقف على عمله وقصده کمافی مجمع الانهر نعم لايتعلق به اثم کما تقدم فی شرح المادة ۸۸۷ والثانی لايتعلق به المأثم وهوماوقع على الجهل کمن اتلف مال غيره وهوليضمن انه له فانه يضمن ويأثم لقوله عليه الصلوة والسلام رفع عن امتی الخطاء والنسيان معناه رفع مأثم الخطاآفاده الشلبی (شرح المجلة للاتاسی ج۳ ص۴۱۱.

اوکله داخليږی په حکم دغصب کښی غير غصب هم چې په دوارو کي ازالة دتصرف دمالک وی دخپل ملک څخه-

بينت هذه المادة انه قد يدخل فی حکم الغصب ماليس بغصب ان ساواه فی ازالة تصرف المالک عن ملکه الخ شرح المجلة للا تاسی ج۳ ص۴۳۲ )

نوبيابه ضمان په شان دضمان دغصب وی اوپه غصب کي که مال مغصوب دمثلياتو څخه وی نوبيابه اداء دمثل وی اوکه دقيمياتو څخه وی نو اداقيمة به کيږی په زمان د غصب اوهم په مکان دغصب کښی اوکه مثلی شئ وی خود مثل برابرل او اداءکول مشکل وی چی

دامثل نه پیداکیږی نوبیابه ددي مثلی هم قیمة آداکیږی خوزمونږ ددری امامانوپکښې اختلاف دی امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله فرمايي چې قیمة دیوم الخصومة عند القاضی واجب دی اوامام محمد رحمه الله وایي چې قیمة دورځې دانقطاع دمثل واجب ده اوامام ابویوسف رحمه الله وایي چې قیمة دیوم الغصب واجب ده دری واړه اقوال ترجیحات لری خوقول دامام ابویوسف رحمه الله اعدل الاقوال بلل شوی دی:

ویجب رد مثله ان هلک وهو مثلی وان انقطع المثل بان لایوجد فی السوق الذی یباع فیه وان کان یوجد فی البیوت ابن کمال (فقیمته یوم الخصومة )ای وقت القضاء وعند ابی یوسف یوم الغصب وعند محمد یوم الا نقطاع ورجحا قهستانی (وتجب القیمة فی القیمی یوم غصبه) اجماعا قوله( ورجحا) ای قول ابی یوسف وقول محمد وکان الاولی ان یقول ایضا ای کمارجح قول الامام ضمنا لمشی المتون علیه وصریحا قال القهستانی وهو الاصح کمافی الخزانة وهو الصحیح کمافی التحفة و عند ابی یوسف یوم الغصب وهو اعدل الاقوال کما قال المصنف وهو المختار علی ماقال صاحب النهایة وعند محمد یوم الا نقطاع وعلیه الفتوی کمافی ذخیرة الفتاوی وبه افتی کثیرمن المشایخ ( قوله یوم غصبه اجماعا) هذافی الهلاک کما هو فرض المسئلة قال القهستانی اما اذا استهلکت فکذالک عنده وعندهما یوم الاستهلاک اه وفی جامع الفصولین غصب شاة فسمنت ثم ذبحها ضمن قیمتها یوم غصب لایوم ذبحه عنده وعندهما یوم ذبحه ولوتلفت بلااهلاکه ضمن قیمتها یوم غصب.... آه ( الدرورد المحتار ج۵ ص۱۲۸ )

ان انصرم المثلی فقیمته یوم الخصومة یعنی اذاانقطع المثلی عن ایدی الناس یجب علی الغاصب منه یوم الخصومة وهذاقول الامام وقال الثانی یوم الغصب وقال محمد یوم الانقطاع لان المثل هوالواجب والقیمة انمایصار الیها للعجز عنه والعجز فی یوم الانقطاع فیعتبر فیه وللثانی ان المثل لما انقطع التحق با لقیمی وفیه یعتبر القیمة یوم الغصب وللامام ان المثل هوا لواجب بالغصب وهو باق فی ذمته مالم یقض القاضی با لقیمة ولهذالوصبر الی ان یعود لمثل کان له ذالک وحد الانقطاع ان لایوجد فی السوق الذی یباع فیه وان کان یوجد فی البیوت ذکره فی النهایة وقال فی النهایة فان قلت ولم قدم قول ابی یوسف فی التعلیل لم یوسطه کما هوحقه قلت لعله ان یکون هو المختار لانه اعدل الاقوال ( تکملة البحر الرائق ج۸ ص ۱۱۰ )

تجب قیمة یوم الخصومة المعتبرة وهی ماتکون عند القاضی وهذاعند ابی حنیفة رحمه الله تعالی وعلیه مشت المتون وهو الاصح کما فی الخزانة وهو الصحیح کمافی التحفة وعند ابی یوسف

یوم الغصب وهو اعدل الاقوال کما قال فی المنح وهو المختار علی ماقال صاحب النهایة وعند محمد یوم الانقطاع وعلیه الفتوی کما فی ذخیرة الفتاوی وبه افتی کثیر من المشائخ (کذافی الدر وحواشیه (شرح المجلة للاتاسی ج ۳ ص ۴۱۶ )



مولوی عبدالحکیم عفی الله عنه مولانامحمد مسلم حقانی مولاناحمدالله مولاناعبدالله مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

## دبل دمال پر اتلاف مجبورکړل شوی ضمان لازمیږی اوکنه

پوښتنه : چه میفرمایند علماء دین ومفتیان شرع مبین اندرین مسئله که درسال ۱۳۷۱ بامرتورن علاء الدین خان بمنطقه ولسوالی شهرک ولایت غور یکمقدار تریاک ازصاحبان تریاک اخذشده وبعدا بحضرعام مردم همان تریاک هاسوختانده شده است وعکس گیری شده/ازسوختا نده آنها ایاباموررین وعسکرهای تحت امرعلاء الدین خان ضمان توان است یاخیر بیوا بسند الکتاب دارالافتاء دباره حکم شرعی بدهید.

رئیس شوری مرکزی علماءمحترم اخندزاده صاحب عبد الغفور سینانی

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون ملهم الصواب این صورت صورت اکراه است واکراه بردوقسم است اکراه تام واکراه ناقص اکراه تام آنست که مکره بالفتح راقدرت واختیار باقی نباشد زیراکه باوتهدید قتل یااتلاف بعض اعضاء یااتلاف جمیع مال داده شده باشد واکراه ناقص آنست که قدرة واختیار مکره بالفتح راباقی باشد زیراکه اوراتهدیدی آسان داده شده باشد مثل تهدید بضرب یسیریاقید کردن یا اتلاف بعض مال یاالحاق ظلم مثل منع ترقی درکاریااخذنمودن وظیفه ازوپس اکراه براتلاف مال غیراگراکراه تام بودضمان برمکره بالکسر بود واگراکراه ناقص بودضمان برمکره بود بالفتح وشروط اکراه قرارذیل میباشد(۱) مکره بالکسر باید که قادرباشد برتعذیب وتهدید مکره بالفتح سلطان باشدیاغیرسلطان (۲) مکره بالفتح اگرغالب ظن اووقوع وعید ازجانب مکره بوداکراه صحیح باشد(۳) وعیدی که ازجانب مکره صادرشده قابل تحمل نباشد مثل قتل واتلاف عضو (۴) وعید مکره باید که عاجل بودنه آجل (۵) اکراه باید که برغیرحق باشد واگراکراه برحق باشد اکراه نبود وباید تذکرداده شود که اکراه درحضورمکره میباشد واگرمکره غایب بود اکراه نمیباشد پس اگردراتلاف این

افیون شروط مذکورہ موجودہ باشد وعلاء الدین در وقت اخذ مال مذکور موجود باشد ضمان برمکرہ ست بالکسر والضمان بر آخذین مال ومباشرین ان اتلاف میباشد الاکراہ نوعان ملجئی او کامل وغیر ملجئی اوناقص (الفقه الاسلامی ج۴ ص۲۱۳)

ومثله فى بدائع الصنائع ج۷ ص۱۷۵ اوشرطه قدرة المكره على ايقاع ماهددبه سلطانا او لصاوخوف المكره ايقاعه فى الحال وكون الشئ المكره به متلفا نفسا اوعضوا الخ وكون المكره ممتنعا عما اكره عليه قبله لحقه اولحق آخر اولحق الشرع متن الدر المختار على هامش ردالمحتار ج۵ ص۸۹ ويدل عليه مافى بدائع الصنائع ج۷ ص۱۷۶ ومثله فى الفتاوى الهندية ج۵ ص۳۵ واماشرطه فان يكون الاكراه من السلطان عند ابى حنيفة رحمه الله تعالى وعندهما اذاجاء من غير السلطان مايجئ من السلطان فهواكراه صحيح شرعا كذافى النهاية وعليه الفتوى فان غاب المكره عن بصر المكره يزول الاكراه ( الفتاوى الهندية ج۵ ص۳۵ ) ومثله فى بدائع الصنائع ج۷ ص۱۷۶ الاكراه يثبت حكمه اذاحصل ممن يقدر على ايقاع ماتوعدبه سلطانا كان اوغيره وان غاب المكره عن نظر من اكرهه يزول الاكراه ذكره قاضى خان (مجمع الضمانات ص۲۰۴ )(وفيه المكره على الا خذ والدفع انما يبيعه مادام حاضرا عنده المكره والالم يحل لزوال القدرة والالجاء بالبعد منه وبهذا تبين انه لاعذر لاحد من اعو ان الظلمة فى الاخذ عند غيبة الامير اورسوله فليحفظ قوله مادام حاضر اعنده المكره قال فى الهندية عن المبسوط فان كان ارسله ليفعل فخاف اويقتله ان ظفر به ان لم يفعل لم يحل الاان يكون رسول الامر معه على ان يرده عليه ان لم يفعل ولولم يفعل حتى قتل كان فى سعة انشاء الله تعالى ولوهدده بالحبس اوالقيد لم يسعه الاقدام آه قوله لزوال القدرة والالجاء بالبعد لكن يخاف عوده وبه لايتحقق الاكراه بزازية ( الدرالمختار وردالمحتار ج۵ ص۹۸ ومثله فى شرح المجلة للاتاسى ج۳ ص۵۶۲ ) والله اعلم

مولانا عبداللہ مولانا عبدالحکیم عفی اللہ عنہ مولانا احمد نوری مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

## دباغیانوسره دجنګ پرمهال تلف شوی مالونه ضمان لری اوکنه

پوښتنه:نورمحمد دداد مولی زوی دترینکوټ دچارچینودولسوالی دیخدان د اوسیدونکی غوښتنی لیک دافغانستان داسلامی دولت محترم عالیقدرمشر مجاهد امیر المؤمنین السلام علیکم ورحمة الله عالیقدره موږدوه موټر سیکلان هونډادتجارت لپاره کجران ته بیولی وه په ولسوالی باندی ټکان وسول اوپه نتیجه کښی زموږذکرسوی موټرسیکلان وسوځل سول اوس هغه قاتلان اومجرمان نیول سوی دی دحکومت په لاس کښی دی یادی زموږ خساره دولت راکړی اویادی‌دکجران ولسوال امرر اکړی ترڅوزموږ حق دشریعت مطابق ددغوباغیانوڅخه راواخلی چې اوس ورسره بندیان دی وکتل سو ددارالافتاء محترم رئیس دپورته موټر سیکلانو دضمان په هکله به معلومات راکړی چې پرچاکیږی .والسلام

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون الملک الوهاب

دافغانستان داسلامی دولت محترم عالیقدر مشرمجاهد امیر المؤ منین السلام علیکم ودام ظلکم العالی .کوم موټر سایکلان چې په استفتاء کښی بیان شوی دی دهغودضمان په باره کښی به داووایو چې ددغه موټرسیکلانو پرهیچاضمان لازم نه دی نه پردولت لازم‌دی اونه هم پر باغیانو لازمیږی اودامفت تلف دی یعنی هدردی ځکه چې داپه حین اووقت دقتال اوجنګ دباغیانوکی تلف شوي دی اوکوم شئ چې تلف شی دلاس څخه د باغیانو په حال دجنګ کښی هغه ضمان نه لری پرهیچا خودعدم ضمان دپاره یو څوشرطونه دی چې لږوروسته به ئې په حواله دردالمحتار سره ولیکو :

واذاانجلت الحرب ومع اهل العدل اموال ردت علیهم ومایتلف منها فی غیر القتال فهو مضمون علی متلفه وماتلف علیهم فی نائرة الحرب من نفس ومال فهو هدر ا(لاحکام السلطانیة للقاضی ابی یعلی محمد بن الحسین الفراء ص۵۴ (ب) ضمان ما اتلفوه من الانفس والاموال قال الحنفیة والمالکیة والحنابلة والشافعیة فی اظهر القولین عندهم لایضمن البغاة المشأولون بین الناس وفیهم البدریون فاجمعوایفی وقائعهم کوقعة الجمل وصفین علی الایقام حد علی رجل استحل فرجا حراما بتاویل القرآن ولایغرم ما ل اتلفه بتا ویل القران ولان البغاة طائفة ممتنعة با لحرب بتاویل سائغ فلم تضمن ماتلفت علی الاخری کاهل العدل ولان تضمینهم یفضی الی تنفیرهم

عن الرجوع الی الطاعة فلایشرع کتضمین اهل الحرب(الفقه الاسلامی ج۶ ص۱۴۴)۔
لکن دغه عدم دضمان پرتلف دباغیانو مالونو دخلقولره په وقت دجنگ ددوی کښی بناء دی پریوځو شرطونو باندی چې هغه په دی ډول دی (۱) دغه باغیان به ډیروی چې لښکرولری (۲) چې دوی به په جمع واری سره راجمع شوی وی جنگ داهل عدل لره (۳) چې دوی به په تأویل سره عقیده لری دحلال والی دجنگ داهل عدل سره اوکه دغه شرطونه نه وه موجود نوبیاپه دغه صورت کښی ضمان پر باغیانو لازمیږی په (ردالمحتار ج۳ ص۳۴۲ باب البغاة )کښی لیکلی دی:
قلت فتحصل من ذالک کله ان اهل البغی اذاکانو اکثیر ین ذوی منعة وتحیز والتقا لنا معتقدین حله بتأ ویل سقط عنهم ضمان ماالتلفوامن دم اومال دون ماکان قائما ویضمنون کل ذالک اذاکانوا اقلیلین لامنعة لهم اوقبل تحیزهم اوبعد تفرق جمعهم....الخ والله اعلم بالصواب

مولوی مداحمد الحقانی مولوی عبدالحکیم عفی الله عنه مولوی احمدنوری عفی عنه مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

## حکم دآلاتو دسروز

پوښتنه : محترم رئیس صاحب ددارالافتاء السلام علیکم ورحمة الله محترمه! الات دسروز لکه ټیپ اوریډیو ټلویژون وغیره ماتول څه حکم لری اوپورته شیان چې ګیرشی خلق هم ددغو شیانو څخه ناوړه استفاده کوی بهترینه لارڅې کومه ده څه په کوی په دغه شیانو والسلام.

(نورمحمد پوښتنه کوونکی)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون الملک الوهاب الات دلهو که داسی وی چې یوازی په لهو لعب کی مستعملیږی پرماتونکی ئې په اتفاق ضمان نشته اوکه په غیرکی دلهوهم مستعملیږی که ماتول په اذن دامام وه هم په اتفاق ضمان نشته اوکه په اذن دامام نه وه امام ابوحنیفة رحمه الله تعالی وایی ضمان شته اوصاحبان رحمهما الله تعالی وایی ضمان نشته ترجیح قول لره دصاحبانو ده دوجهی دفساددزمان هرچی الات دی چې په مباح ځایوکی مستعملیږی

لکه طبل دغزایاټیپ رادیو دمتدین شخص چې په لهو کې نه مستعملوی په اتفاق ضمان
پرماتونکی شته هرچې ټیپ یارادیو دفاسقانوده دهغه حکم دالات دلهو دی چې سابق ذکر
شو پرماتوونکی ئې پرقول مفتی به ضمان نشته که څه هم بلااذن دامام وی دغه مسائل
اوحکمونه دلاندی عباراتومدلول دی

(تنبیه)امام ابوحنیفة رحمه الله تعالى چې ضمان وایي هغه داسی ضمان چې کاردغیر
دلهوورڅخه اخسته کیږی مثلاپه ډول کې ضمان دقیمت دداسی ډول شته چې پنبه پکې
ساتی په (فتاوی هندیة ج۵ ص۱۳۱)کې راغلی دی:

اذاکسر بربط انسان اوطنبوره اودفه اوما اشبه ذلک من الات الملاهی فعلی قولهما لاضمان وعلی
قول ابی حنیفة رحمه الله تعالى یجب الضمان وذکر فی الجامع الصغیر ان علی قول ابی حنیفة
رحمه الله تعالى یضمن الااذافعل باذن الامام قال القاضی الامام صدر الاسلام الفتوی علی قولهما
لکثرة الفساد فیما بین الناس وذکر الشیخ فخر الاسلام فی شرح الجامع الصغیر ان قول ابی حنیفة
رحمه الله تعالى قیاس وقولهما استحسان وقال صدر الاسلام ثم عند ابی حنیفة اذاوجب الضمان
یجب علی وجه الصلاح لغیر التلهی علی ادنی وجه یمکن الا نتفاع بذلک وعلی هذاالاختلاف
النردو الشطرنج لانه یمکن ان یجعل هذه الاشیاء سنجات الوزن وفی القدوری فی مسئله الطنبور
والبربط انه یضمن قیمته خشبا منحوتا وفی المنتقی یضمن قیمته خشبا الواحا کذافی المحیط والذ
خیرة والطبل الذی یضرب للصبیان یضمن بالاتلاف من غیر خلاف کذافی التاتار خانیة آه په الدر
المختار کې راغلی دی (وضمن بکسر معزف ) بکسر المیم آلة اللهو ولو لکافر ابن کمال قیمته
خشبا منحوتا صالحا لغیر اللهو وضمن القیمة لاالمثل وباراقة سکر ومنصف سیجیئ بیانه فی
الاشربة وصح بیعها کلها وقالالایضمن ولایصح بیعها وعلیه الفتوی ملتقی ودررزیلعی وغیرها
واقره المصنف واماطبل الغزاة زاد فی حظر الخلاصة والصیادین والدف الذی یباح ضربه فی
العرس فمضمون اتفاقا ( الدر المختار بهامش ردالمحتار ج۵ ص۱۴۹ )په ردالمحتار کې راغلی
دی قوله وقالا الخ هذاالاختلاف فی الضمان دون اباحة اتلاف المعازف وفیما یصلح لعمل آخر
والالم یضمن شیئا اتفاقا وفیما اذافعل بلااذن الامام والالم یضمن اتفاقا...الخ

په تبیین الحقائق ج۵ ص۲۳۷ کې راغلی دی،

ومن کسر معزفا اوراق سکر اومنصفا ضمن وصح بیع هذه الاشیاء وهذاعند ابی حنیفة رحمه الله
تعالى وقالالا یضمنها ولایجوز بیعها لانها معدة للمعصیة فیسقط تقومها کالخمر ولانه فعله باذن

الشرع لقوله صلی اللّٰه علیه وسلم بعثت بکسر المزامیر وقتل الخنازیر ولقوله صلی اللّٰه علیه وسلم اذا ر ای احدکم منکر افلینکر بیده فان لم یستطع فبلسانه فان لم یستطع فبقلبه وذلک اضعف الایما ن والکسر هو الانکار بالید ولهذالوفعله بامر اولی الامر کالامام لایضمن فبامر الشرع اولی...الخ

(وروسته ترخو سطر وایی )

والفتوی فی زماننا علی قولهما لکثرة الفسادفیما بین الناس

په مجمع الضمانات ص۱۳۲ کی هم فتوی پرقول دصاحبین ذکر شوی ده په طحطاوی علی الدرج۴ ص۱۱۴ کی راغلی دی:

( قوله صاحا لغیر اللهو) ففی الدف قیمته دفا یوضع فیه القطن والبربط یضمن قیمته قصعة یجعل فیه الشربة ونحو ذلک ذکره قاضیخان –

په مجمع الانهر او الدر المنتقی بهامش مجمع الانهرج۲ ص۴۶۹ کښی ذکرد فتوی پرقول دصاحبین رحمه الله تعالی راغلی دی

(نوټ ) الات دلهو چې کیرشی مؤظفین به ئې ماتوی خپله به ئې نه مستعملوی ځکه مال دغیردی استعمال دمال غیر بلا اذن جائزنه دی هرچې ماتول دی هغه په اذن دشرعی دی لکن مؤظفین حضراتوته دیر احتیاط پکاردی د موټرانوهنداری به نه ماتوی که ئې ماتیکی ضمان پرشته او اذی به مسلمانانوته نه رسوی چې دثواب پرځای گناه زیاته نسی هرامیر اومشر مجبور دی چې خپل افراد به اصلاح کوی ځکه چې په حدیث شریف کی دی کلکم راع وکلکم مسئول عن رعیته والله اعلم

مولوی عبدالحکیم عفی الله عنه مولوی محمد اخلاص برکتی مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

# كتاب الدعوى

## دمدعي په قول كي كه تناقض راشي نوتوفيق ته آياړتياشته؟

پوښتنه : الحمد لله الذى هدانا للاسلام وصيرنامن امة خير الانام صلى عليه وسلم امابعد
څه وايي علماء د دين مبين اومفتيان دشرع متين په دې مسئله كې چې دوې قطعې مځكې
وې يوه په بله پورې متصله پردې
شــــكل باندې

| شمالى قطعه | زيد مشترى |
|---|---|
| شرق | غرب |
| جنوبى قطعه | عمرومشترى |

كه دغه دوې قطعې مځكه دوه نفره رانسي مثلا شمالي قطعه زيد رانسي اوجنوبي قطعه
عمرورانسي لكن په دې مځكه كې يوبل شريک هم وې دبائع سره چې هغه په وقت دعقد
كې غائب وې كله چې دغه شريک راحاضرشي نودخپل حق دعوى وكړي كله چې مدعى
دواړو قطعوحدودبيانه وې نودشمالي قطعې اضافة وزيد ته وكړي اودجنوبي قطعې
وعمرو ته وكړي يعني په بيان كه حدوددشمالي قطعې داسي وليكې چې جنوبا متصله ده
په مځكه پورې دعمرو داسې ئې نه وې ليكلي چې متصله ده په مځكه مملوكه ياپه ملک
پورې دعمرواوپه بيان دحدودد جنوبي قطعې دارنګه وليكې چې شمالامتصله ده په
مځكه پورې دزيد اضافة دمځكې وزيدته وكړي مدعى عليه په خپل دفع كې وليكې چې
مدعى اقرار كړى دى يعني مثلا عمروليكي چې مدعى اقرار كړى دى چې دغه مځكه
زمامدعى عليه ده ځكه چې دغه مدعى په خپل صورت دعوى كې دشمالي قطعې دحدود
په بيانولو كې اضافة دمځكې ومامدعى عليه ته كړى ده يعني داسې يې ليكلي چې جنوبا
متصله ده په مځكه پورې دعمرو نوبيادې څرنګه دعوى كوي چې په دې مځكه كې زه
شريک يم اوحق لرم مدعى په جواب كې داسې ووايي چې مادمځكې اضافت ومدعى

علیه ته کړی په اعتبار دتصرف اوذوالیدی یعنی چې مدعی علیه ئې متصرف اوذوالیددی
فی الحاله چې دی اضافی ته دعلم نحوی علماء اضافة دادنی ملابسة وایي نه په دی
اعتبار چې مدعی علیه یي مالک دټولی مځکی اومځکه ئې مملوکه ده ځکه که چیری
مادی مالک بوللای دټولی مځکی نومایباولی دعوی کوله اوبل جواب داسی وکی چې
माددغی قطعی دنصف دعوی کړی ده په حقیت سره اودهغه بل نصف دعوی چې کوم
نوهغه په شفع سره لکن دغه نصف خود مشتری ګرځیدلی په شراءسره نوزه مدعی اودی
مدعی علیه دواړه په دي مځکه کي سره شریکان شووکله چې اصحاب دیوحد متعددشی
نویوچې ذکرشی هم جوازلری آیادغه اضافة سره ددغه جوا بینو اقرار بلل کیږی اوکنه
بینوا بالبرهان واجرکم علی الرحمن.

(المستفتی عبدالله حقانی)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب حامداومصلیا

ددغه مدعی چې شریک دبائع سره ځان بولی په دغه دووقطعو دمځکی کی چې هغه په
سوال کښی په تفصیل سره بیان شوي دی نودده دغه اضافة سره دجوابینو اقرارنه بلل کیږی
ځکه چې ده توفیق راو ستلی دی بالفعل په جوابینو سره اودغه توفیق بالفعل دمدعی
اعتبار لری په دفع دتناقض کښی - المادة۱۶۵۷-

لوامکن توفیق الکلام الذی یری متناقضا ووفقه المدعی ایضا یرتفع التناقض مفاد قولهم ووفقه
المدعی ایضا انه لایکتفی بامکان التوفیق بل لابدمن التوفیق بالفعل وهذاالقول مختار من اربعة
اقوال الخ( شرح المجلة لسلیم باز اللبنانی ص۹۷۵)-

اوپه داسی محل کی چې هلته توفیق ظاهر غیر خفی وی لکه په استفتاء مذکور کښی چې
اضافة مدعی کړي دی مدعی علیه ته دمدعی به په اعتبار دتصرف سره دامجاز متعارف
دی صرف امکان دتوفیق هم کفایت کوی بغیر دتوفیق بالفعل:

وقد ذکرو االقولین فی مسائل التناقض والذی اختاره فی جامع الفصولین وقال انه الاصوب عندی
واقره فی نورالعین انه ان کان التناقض ظاهرا والتوفیق خفیا لایکفی امکان التوفیق والایکفی
الامکان الخ (الفتاوی تنقیح الحامدیة ج ۲ ص۳۸)-

اودغه شان که چیری صادرشی دمدعی څخه داسی یوشئ چې هغه محتمل داحتمالین وی

هم داقرار اوهم دعدم اقرار ترجیح به په هغه صورت کښی قرائنو اوعلاماتولره وی په صورت داستفتاء کی قرینه دعدم داقرار ده چې هغه دعوی دمدعی ده:
ولوصدر عنه مایحتمل الاقرار وعدمه فالترجیح بالقرائن والافلایکون اقرار اللشک(جامع الفصولین ج۱ ص۱۰۱) والسلام والله اعلم بالصواب

مولانااحمدنوری عفی عنه مولوی نذاحمد الحقانی مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

**کوم څوک چې پخپل ژوند کي دعوی ونکړی ورثاء یي حق ددعوی لری که نه؟**

پوښتنه : نحمده ونصلی علی رسوله الکریم امابعد څه فرمایی علماء ددین مبین اومفتیان دشرع متین په دې مسئله کي چې یوسړی وفات سی نروارث ئې پاته نسی بلکه یوه ماشومه لورئې پاته سی اونورزنانه ورثه ئې پاته سی اومیراث ئې اجنبیان خلق سره تقسیم کړی کله چې دغه ماشومه لویه سی نو ۷ یا ۸ کاله ژوند وکی بیاوفات سی مطلب داچې دخپل حق دعوی ونکی په خپل ژوندکي وروسته ددغه ښځی اولادددی دحق دعوی وکی مرور الزمان هم نه وی راغلی صرف داخبره نه وی چې والدی ئې دعوی نه وی کړی دخپل لوی والی په ژوندکی آیادغه دعوی په شریعت کی مسموع ده اوکنه؟ بینوا توجروا-
(المستفتی محمدعیسی)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب والله الموفق للصواب
چې یورجل تصرف وکی یوه زمانه چې هغه زمانه هم دمرور زمان نه وی په یوه ځمکه کی اوبل رجل ئې وینی هغه ځمکه اوهغه تصرف ددغه رجل اوبیاهم دعوه ونکی اومړسی نوددغه مذکور سړی دولد دعوی نه اوریدل کیږی اوپاته کیږی په لاس کی دهغه متصرف ځکه چې حال شاهددی نورنو الله هادی دی اوپرهغه زموږ اعتماددی لکن مشروط په دی شرط چې موانع به دمدعی دپاره نه وی موجود په دغه وقت کی دترک ددعوی لکه صغر دمدعی یاداچې مدعی علیه متغلب اوجابروی یاداسی نور اوهرهغه وقت چې مدعی ناظر اومطلع وی پرتصرف دمدعی علیه ترهغه وقته چې مړشی مدعی علیه نونه اوریده کیږی

دعوی پرورثه دهغه باندی اوهمدارنگه که مرسی مدعی نه اوریده کیږی دعوی دورثه د دغه مدعی چې دغه صورة په استفتاء کی هم دی:

قال فی فتاوی الولوالجیة رجل تصرف زمانا فی ارض ورجل آخر رای الارض والتصرف ولم یدع ومات علی ذلک لم تسمع بعد ذلک دعوی ولده فترک علی ید المتصرف (الفتاوی تنقیح الحامدیة ج۲ ص۳)

وایضا فی مجموعة الفتاوی علی هامش خلاصة الفتاوی( ج۴ ص۸۷ )رجل تصرف زمانا فی ارض ورجل آخر یری الارض والتصرف ولم یدع ومات علی ذلک لم تسمع بعدذالک دعوی ولده فترک علی ید المتصرف والظاهر ان الموت غیر قید بد لیل انهم لم یقید وابه هنا وبه علم ان مجردالسکوت عند الاطلاع علی التصرف مانع (ردالمحتار علی الدر المختار ج۵ ص۵۲۴ )سئل عن رجل له بیت فی دار سکنه مدة تزید علی ثلاث سنوات وله جار بجانبه والرجل المذکوریتصرف فی البیت المذکور هدما وعمارة مع اطلاع جاره علی تصرفه فی المدة المذکورة فحصل اذاادعی البیت اوبعضه بعد ماذکر من تصرف الرجل المذکور فی البیت هدما وبناء فی المدة المذکورة تسمع دعواه ام لا اجاب لاتسمع دعواه علی ماعلیه الفتوی آه فانظر کیف افتی بمنع سماعها من غیر القریب بمجرد التصرف مع عدم سبق البیع وبدون مضی خمس عشرة سنة اواکثر الخ(الفتاوی تنقیح الحامدیة ج۲ ص۴ ) والله اعلم وعلمه اتم

مولوی نداحمد الحقانی مولانا احمد نوری عفی عنہ مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

## دارث په دعوی کي مرور دزمان نه اعتبار شته اوکنه

پوښتنه :په حضور دمحترم ددارالافتاء رئیس صاحب السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته محترموستاسوپه حضورکی دمیراث په باره کی پوښتنه لرم عبد الحمید د محمد ایوب زوی دمحمد انور لمسی دشاه ولی کوټ دولسوالی اوسیدونکی چې ددغه عبد الحمید نامی خپله موروثي ځمکه زماد اکادزامنو سره ده اوډیره زمانه وتلی ده چې داځمکه موروثه ګرځید لی اوتقسیم نه دی شوی زه غواړم چې زمادشریعت غراء داحکامو سره سم خپل تقسیم راکړی والسلام س۱۵ - ۱۲ - ۱۳۷۵

(المستفتی غلام محمد)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب ومنه الصدق والصواب حکم ددعوی دارث په باب دمروردزمان کښی حکم دعامودعاوی ده یعنی کچیری امام قضاة منع کړی وه دسماع اواورید لوددعوی څخه پس له پنځلس کلونونودغه قضاة دمیراث په دعوی کښی هم منع دی داوریدو څخه اوپس له دیر شو کلونو یادری دیرش کلونو یاشپږدیرش کلونو بناء پر اختلاف دفقهاء رحمهم الله کله مدعی دعوی ونکړه نوقاضی به ئي دعوی نه اوری که څه هم امام ورته امرکړی وی راجح قول دشپږدیرش کلونوده هادعوی اوریدل کیږی که دایوڅو عذرونه وی چې مدعی غائب وی په دی زمانه کښی اویاصبی اویامجنون وی اوولی نه لری اویا مدعی علیه امیر جا بر ظالم وی په مجلة الاحکام مادة ۱۶۶۰ کی لیکلی:

لاتسمع دعوی الدین والودیعة وملک العقاروالمیراث ومالایعودمن الدعاوی الی العامة ولاالی اصل الوقف کدعوی المقاطعة اوالتصرف بالاجارتین والتولیة المشروطة والغلة فی العقارات الموقوفة بعدان ترکت خمس عشرة سنة ...آه

اوپه شرح المجلة للاتاسی ج۵ ص۱۶۸ کی په شرح ددی ماده کښی وایي: دغه ماده صریح ده چې دعوی دارث مستثنی نه ده دحکم څخه دنورودعاوی اوپه فتاوی تنقیح الحامدیة ج۲ ص۵ کښی لیکلی:

سئل فی رجل یرید الدعوی علی زید بمیراث امّه المتوفاة من اکثر من خمس عشرة سنة وزید یجحد ومضت هذه المدة من بلوغه رشید اولم یدعی بذالک ولامنع مانع شرعی وهما مقیمان فی بلدة واحدة فهل تکون دعواه بذلک غیر مسموعة للمنع السلطانی) الجواب نعم)-

اوپه ردالمحتار ج۴ ص۳۸۲ کی لیکلی:

وفی جامع الفتوی عن فتاوی العتابی قال المتأخرون من اهل الفتوی لاتسمع الدعوی بعد ست و ثلاثین سنة الاان یکون المدعی غائبا اوصبیا اومجنونا ولیس لهما ولی اوالمدعی علیه امیرآجائر ...آه

اوهرچې په الدر المختار علی هامش ردالمحتار ج۴ ص۳۸۲ کښی فتوی دابوسعود لیکلی په د اسی شان:

لوامر السلطان بعدم سماع الدعوی بعد خمس عشرة سنة فسمعها لم ینفذ قلت فلاتسمع الان بعدها الابامر الافی الوقف والارث ووجود عذ رشرعی وبه افتی المفتی ابوالسعود فلیحفظ

نوعلامه شامی په متعلق ددي فتوی کښی په الفتاوی تنقيح الحامدية کښی په ج۲ ص ۶ باندی ليکلی دی:

واماما افتى به العلامة ابوالسعود افندی وصاحب البيت كما قيل ادری فهذه صورته (ميراثه متعلق اللی الخ ) تعريب ددغه ترکی لفظ داده ( الدعوی المتعلقة بالميراث اذاتركت بعذر شرعی خمسين سنة فهل تسمع بلاامر عال الجواب تسمع اذاكان العذر (قويا...آه ) اوپه ردالمحتار ج۴ ص۳۸۱ کښی ليکلی ويخالفه ( اي استثناء الارث ) مافي الخيرية حيث ذكران المستثنى ثلاثة مال اليتيم والوقف والغائب ومقتضاه ان الارث غير مستثنى فلا تسمع دعواه بعدهذه المدة وقد نقل فی الحامدية من المهمنداری ايضاًانه كتب على سوال آخر فيمن تركت دعواها الارث بعد بلوغها خمس عشرة سنة بلاعذر ان الدعوى لاتسمع الابامر سلطانی ونقل ايضاً مثله فتوی تركية عن المولى الى السعود وتعريبها اذاتركت دعوى الارث بلاعذر شرعی خمس عشرة سنة فهل لاتسمع الجواب لاتسمع الااذااعترف الخصم بالحق ونقل مثله شيخ مشايخنا التركمانی عن فتاوی علی افندی مفتی الروم ونقل مثله ايضاً شيخ مشايخنا لسائحانی عن فتاوی عبد الله افندی مفتی الروم وهذاللذی راينا عليه عمل من قبلنا فالظاهر انه وردنهی جد يد بعدم سماع دعوى الارث والله سبحانه اعلم ...آه

مولوی احمد نوری مولوی عبدالحکیم عفی الله عنه مولوی محمد اخلاص برکتی مولوی نور محمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

**پرمورث که دعوی ونشي پروارث دعوی صحيح کيږی او که نه ؟**

پوښتنه :زه عبدالله دعبدالودود زوی دمعروف دولسوالی اوسيدونکی يم ددارالافتاء ومحترم رئيس صاحب حضور څخه دلاندی موضوع په هکله دشرعی فتوی پوښتونکی يم هيله کوم چې دشريعت په منورواحکامومنی ممنون وګرزوی په مورث چې دعوی نه وي شوی په وارث دعوی صحت لری که نه ؟

بسم اللہ الرحمن الرحیم

الجواب بعون الملک الوهاب

زید مثلا تصرف مالکانه په مځکه کی یاسرای کی کوی عمر مثلاً دغه تصرف وینی هیڅ دعوی یا انکارنه پرکوی دغه متصرف زید مړسی وروسته عمر پرورثه دزید دعوی وکی دغه دعوی ئې مسموع نه ده دغه رنګه چې عمر مړسی ورثه ئې دعوه وکی پرزید باندی دعوی مسموع نه ده: فی جامع الفتاوی اول کتاب الدعوی عن الخلاصة رجل تصرف فی ارض زمانا ورجل آخریری تصرفه فیها ثم مات المتصرف ولم یدع الرجل حال حیاته لاتسمع دعواه بعدوفاته وفی الحامدیة عن الولوالجیة رجل تصرف زمانافی ارض ورجل آخریری الارض والتصرف ولم یدع ومات علی ذلک لم تسمع بعدذلک دعوی ولده فتترک علی ید المتصرف... آه والظاهر ان الموت غیر قیدآه( ردالمحتار ج۵ ص۵۲۴ )هکذا فی الفتاوی تنقیح الحامدیة ج۲ص۳(وفیه واذاکان المدعی ناظراومطلعا علی تصرف المدعی علیه لاتسمع الدعوی علی ورثته کما مرعن الخلاصة وکذالومات المدعی لاتسمع دعوی ورثته کمامر عن الولوالجیة والظاهر ان الموت لیس بقید وانه لاتقدیر بالمدة مع الاطلاع علی التصرف...آه(ص۳ج۲)

که چیری ئې اطلاع پرتصرف نوه نه وئې دعوی ترهغه وخت صحی کیږی چې وخت دسماع ددعوی پرتیرېږی چې هغه وخت دیرش یادرودیریش یاشپږدیرش کاله بناء پرمنع فقهي یاپنځلس کاله بناء پرمنع سلطان ده

و الظاهر ان عدم سماعها بعد هذه المدة اعم من کونه مع الاطلاع علی التصرف اوبدونه لان عدم سماعها مع الاطلاع علی التصرف لم یقید و هنا بمدة فلا منافاة بین کلامهم تأمل آه ردالمحتارج۵ ص۵۲۴ ط رشیدیه )

مولانازمان شاه مولاناعبدالحکیم عفی اللہ عنہ مولانااحمد نوری مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

**دمالکانه تصرفاتوکولوسره بیله عذره**

**دمشتری په ژوندکي سکوت او دمشتری پراولا دودعوی**

پوښتنه :یو څوک چې مځکه خرڅه کړی او مشتری په هغه مځکه کښې دبایع په حضورکی تصرفات په ملکانه طور کوی او بایع ته شرعی عذر موجودنه وی او مشتری وفات شی

دمشتری په اولاد باندی دبایع دعوی صحت لری کنه؟
(المستفتی عبدالله ولد عبدالودود معروف ولسوالی)
الجواب بعون الملک الوهاب
بائع چی دمشتری سره بیع صحی شرعی قطعی وکړه وروسته حق ددعوی پردغه مشتری نه لری په وخت دحیات دمشتری وروسته ترمرګه دمشتری حق ددعوی پرورثه وودمشتری په طریق اولی نه لری ځکه دغه بائع نقض دهغه شئ کوی چې دده دجانب تام سوی دی من سعی فی نقض ماتم من جهته فیکون سعیه مردودا علیه (المجلة المادة ۱۰۰) دغه بیعه صحی قطعی په اقرار یاشاهدانو سره ثابت وه اوکه ددغه بائع نه اقرارئې په بیعه صحي قطعی ثابت وواونه هم شاهدان پربیع صحی قطعی وه بیائې دعوه دبیع فاسد اویا بیع وفاوکړه دعوی ئې صحي ده ځکه چی په بیع فاسد کی په مرګ دیوه دعا قدین حق دفسخ نه ساقطیږی:
ولایبطل حق الفسخ بموت احدهما فیخلفه الوارث به یفتی (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ج۴ ص۱۴۳ البحرالرائق ج۶ ص۹۴ اذااقراحد بصدور عقدباب صحیح منه وربط اقراره هذابسند ثم ادعی بان ذلک العقد کان وفاء اوفاسدا فلاتسمع دعواه راجع (المادة ۱۰۰)مثلالوباع احددازه لاخرفی مقابلة ثمن معلوم وسلمها ثم ذهب الی حضور الحاکم واقربقوله انی بعت داری المحدودة بهذه الحدود لفلان فی مقابلة هذاالثمن بیعا باتا صحیحا وربط اقراره هذابوثیقة شرعیة وبعد ذلک ادعی ان بیعی المذکور کان عقدابطریق الوفاء اوبشرط فاسد اه وکذافلاتسمع دعواه... آه(مجلة المادة ۱۶۵۸)-
والظاهر ان قوله وربط اقراره بسند لبس قیدا احترازیا انماهو مماشاة مع العادة الغالبة من ان المتعاقدین یربطان عقدهما بسندویصرحان فیه بان العقدالمربوط فیه وقع صحیحاباتا خالیاً من الشروط المفسدة والقیود المطلقة ونحوذلک حتی لولم یربط عقدهمابسند لکن ثبت اقرار هما بما ذکر بالبینة الشرعیة یکون الحکم کذلک لماصرحو ابه من ان الثابت بالبرهان کا لثابت با لعیان ولوذکر فی السند مجرد الایجاب والقبول ولم یذکر فیه الاقرار بوقوع العقد صحیح باتا فالظاهر انه تسمع دعوی الوفاء والفساد ونحوهما لان مجرد ذکر الایجاب والقبو ل لاینافی ان العقد وقع فاسدااو موقو فافلایکون مدعی الفساد ونحوه متناقضا ولایکون ساعیا فی نقض ماتم من جهته بل هوساع فی نقض مالم یتم من جهته علی زعمه فتسمع دعواه هذامایقتضیه مفهوم هذه المادة وهو

الذي يظهرْ فتدبر آه شرع المجلة للاتاسی ج۵ ص۱۵۶

مولوی زمان شاہ مولوی عبدالحکیم مولوی احمد نوری عفی عنہ مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

## دغه مدعي بهاماستاپرپلارخرخه کړی وه

پوښتنه :مدعی دعوی کوی چې دغه مدعی بهاپه بیع الوفاموستا (مدعی علیه) پرپلار خرڅه کړی ده اومدعی علیه په مورث ئې دعوی نه وی کړی په وارث ئې دعوی صحت لری اوکه دنوموړی وارث لپاره نوموړی بیع قطعی گرزی ؟

ستاسومحترم حضورڅخه هیله کوم چې مشکل مودشریعت په رڼاکی راحل کړی.

(په احترام عبدالله ۳ - ۹ - ۱۳۷۵)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون الملک الوهاب

که بیع صحی بات ثابت وه په اقراردبائع اویاپه شاهد انونویي بیادعوی دبیع الوفاءنه صحی کیږی لکه تفصیل ئې په جواب کی دپورتنی پوښتنی ذکر سوی دی اوکه دبائع اقرارثابت نه وی نوئې دعوی صحی کیږی یابه دغه مدعی خپله دعوه په شاهدانو ثابتوی یابه وارث ته قسم دعلم ورکوی مطابق دحدیث:

البینة علی المدعی والیمین علی من انکر وعلی العلم لوورث عبدافادعاه آخر لانه لاعلم له بما صنع المورث فلایحلف علی البتات البحر الرائق ج۷ ص۲۱۷ (والله تعالی اعلم وعلمه اتم) ۱۰-۹-۱۳۷۵

مولانازمان شاہ مولوی عبدالحکیم عفی اللہ عنہ مولاناعبداللہ مولانااحمد نوری مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

## دمالکانه تصرفاتولیدلوسره بې له عذرسکوت دعوی باطلوی

پوښتنه :وحضورته دمحترمو علماء کرامو ددارالافتاء السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته
اما بعد دلاندی موضوع په باب پوښتنه لرم امید لرم چې شرعی فتوی راکړی هغه دادی چې
موږ دسنګین په ولسوالی کی مځکه په بیع قطعی رانیوله اول څه وخت مو روپی ورنکړی
کچېری یوکس دعوی کول دشفعی یاغیره خوڅوک پیدا نه سوبیا موروپی ورکړی اوڅه
موده نورهم موکار معطل کړی بیا هم څوک پیدانسو اخرموکارپه هسته هسته شروع کړی
سرای پرتکمیل سوپه دغه جریان کی تریو کال ډیر وخت تیر سو اوټول خلک په دغه رانیو
لواوکار کولو خبروو کچیری اوس یوڅوک ددغه مځکي اویادشراکت دعوی وکی اوپه دغه
جریان هم خبروی آیاشرعاً ئې دعوه صحي کیږی که یا ؟فقط په احترام

(المستفی ډاکترملاعبدالرحمن)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون ملهم الصواب

کچیری یوکس مځکه یاغیره رانیول اومالکانه تصرف ئې پکښی وکی لکه کښت یابناء
مدعی په دغه بیع اوتصرف خبروو اوشرعی عذر دترک ددعوی ورته متوجه نه وو خوبیا هم
ساکت وو وروسته ئې دعوی وکړه ددغه مبیعی یاد شراکت په دغه مبیعه کی دعوی ئې
شرعا نه صحی کیږی که قریب دبائع وی اوکه اجنبی وی ځکه دغه سکوت ئې په منزلة
داقراردی نودغه مدعی کچیری اقرار وکی چې دغه خرڅ سوی شئ دبائع دی وروسته دعوه
په وکی دعوی نه صحی کیږی دغه رنګه دسکوت حکم هم دی سکوت چې مانع دسماع
څخه ددعوی وی هغه دری ۳ قسم دی اول سکوت دقریب دبائع دی لکه زوی اوزوجة دغه
سکوت مانع ددعوی څخه بشرط نفس اطلاع پربیع اوتسلیم دمبیعی دی دوهم سکوت
داجنبی که څه هم جاروی په وخت کی دبیع اوتصرف دمشتری په مبیعه کی ددغه اجنبی
سکوت وروسته ترعلم پربیع اوتصرف دمشتری مانع دسماع څخه ددعوی دی دریم سکوت
دی په معنی دترک ددعوی طویل مدة چې هغه دیرش کاله یادرودیرش کاله یاشپږدریرش
بناء پرمنع فقهی اویاپنځلس کاله بناء پرمنع سلطانی نودغه اندازه مده چې مدعی دعوی
ونکړی اوعذری شرعی هم نه وی نودعوی ددغه مدعی مسموع نه ده :

باع عقارا اوحیوانا اوثوبا وابنه اوامراته اوغیرهما من اقاربه حاضر یعلم به ثم ادعی الابن مثلا انه

ملکه لاتسمع دعوی وکذا اطلقه فی الکنز والملتقی وجعل سکوته کالافصاح قطعا للتزویر والحیل بخلاف الاجنبی فان سکوته ولوجارا لایکون رضا الااذاسکت الجار وقت البیع والتسلیم وتصرف المشتری فیه زرعا وبناء فحینئذ لاتسمع دعواه علی ماعلیه الفتوی قطعا للاطماع الفاسدة آه(الدر المختار علی هامش ردالمحتار)

(قوله حاضر) المراد من الحضور الاطلاع (رملی)(قوله وجعل سکوته کالافصاح)ای بانه ملک البا ئع( قوله بخلاف الاجنبی) قال الرملی اقول الذی ظهر لی فی الفرق ان الاطماع الفاسدة فی القریب اغلب فمظنة التلبیس فیه ارجح وکذالک غلب فی الاقرار خصوصا في دعوی الارث لسهولة اثباته بخلاف الاجنبی فان طمعه فی مال من هو اجنبی عنه نادر فلابد من مرجح یرجح جهة التزویروهي ان یتصرف فیه المشتری زمانا( قوله الااذاسکت الجار) وغیره من الاجانب بالاولی فتخصیص الجار بالذکر لانه مظنة انه فی حکم القریب والزوجة ( قوله وقت البیع والتسلیم ) ای وقت علمه بهما کما افاده کلام الرملی السابق وقد علمت ان البیع غیر قید بل مجرد سکوت عندالاطلاع علی التصرف مانع من الدعوی (قوله زرعا وبناء ) المراد به کل تصرف لایطلق الا للمالک فهما من قبیل التمثیل آه( ردالمحتار ج٥ ص٥٢٤ هکذافي موضع آخر من ردالمحتار ج٤ ص ٣٨٢ ) وهکذافی الفتاوی تنقیح الحامدیة ج٢ ص٣ وفی شرح المجله للاتاسی ج ٥ ص١٥٨)(سئلت) فیمن باع عقار اوسلمه للمشتری وتصرف فیه زمانا وجاره اوغیره حاضریری البیع والتسیلم والتصرف وهو ساکت بلامانع ثم یقوم ویدعی انه کله اوبعضه له هل لاتسمع دعواه هذه ؟الجواب لاتسمع لماتقرر ان من یری غیره یبیع ارضا اودارا فتصرف فیه المشتری زماناو الرائي ساکت تسقط دعواه کما فی جامع الفصولین والاشباه افاده فی الخیریة اقول ولایشترط حضوره مجلس البیع بل علمه کاف کمافی بهجة الفتاوی والله تعالی اعلم آه( الفتاوی الکاملیة ص١١٤ )ان باع احدما لاعلی انه ملکه فی حضوراخرلشخص وسلمه ثم ادعی الحاضر بانه ملکه مع انه کان حاضرآفی مجلس البیع وسکت بلاعذر ینظرالی ان الحا ظر هل کان من اقا رب البائع ام لا فان کان من اقاربه اوزوجها اوزوجه لاتسمع دعواه هذه مطلقا وان کان من الاجانب فلایکون حضوره وسکوته فی مجلس البیع فقط مانعا لدعواه بل بعد حضوره وسکوته فی مجلس البیع بلاعذران تصرف المشتری فی ذالک الملک تصرف الملاک بناء اوهدما اوغرساوراٰه الحاضر ثم بعد ذلک ادعی بقوله هذاملکی اولی فیه حصة لاتسمع دعواه( المجلة المادة ١٦٥٩)-

په شرح المجلة للاتاسی کی وروسته ترزیات تحقیق څخه راغلی دی:
والحاصل ان المصرح به عند السکوت المانع من سماع الدعوی علی ماعلیه الفتوی ثلاثة انواع سکوت القریب والزوجة عند مجرد اطلاعهما علی البیع والتسلیم وعللو اذالک کمافی ردالمحتار عن الرملی بان الا طماع الفاسدة فی القریب اغلب فمظنة التلبیس فیه ارجح فجعل سکوتهماعند مجر د البیع والتسلیم کالاقرار الصریح بان لاحق لهما فی المبیع النوع الثانی سکوت الاجنبی ولوجاراً عند کل من البیع والتسلیم مع تصرف المشتری بعد الشراء وعللو اذالک بان طمع الانسان فی من هو اجنبی عنه نادر فلابد من مرجح یرجح جهةالتزویر وهی ان یتصرف فیه المشتری زماناوالنوع الثالث السکوت بمعنی ترک الدعوی مدة طویلة هی خمس عشرة سنة علی ماورد به الامر سلطانی وثلانون سنة اوثلاث وثلاثون اوست وثلاثون علی ماذکره الفقهاء وقیل ثلاث سنوات فقط وهو قول مهجور ولایعمل به وعللوا ذالک بان ترک الدعوی جمیع هذه المدة مع التمکن منها یدل علی عدم الحق ظاهر آه شرح المجلة للاتاسی ج۵ ص۱۶۴)

مولانازمان شاه مولوی عبدالحکیم عفی الله عنه مولانامحمدنوری عفی عنه مولاناعبدالله مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

**پس له اوږدې مودې دعوی دمیراث څه حکم لری**

پوښتنه محترم رئیس صاحب دارالافتاء چه میفرماید علماء شرع مبین درباره شخص که دعوی مدت تقریبا هشتادسال در میراث نکرده باشد فعلا از کسی دعوی برای میراث برایش میشود یاخیر برای اتکامدعی علیه

(المستفتی مولوی عبد الوهاب هلمندی)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون ملهم الصواب
حکم د دعوی دارث په باب کی دمرور زمان حکم دعامودعاوی وی یعنی کچیری امام قضاة منع کړی وه دسماع څخه ددعوی پسله پنځلسو کلونو
نودغه قضاه په دعوی کی دارث هم منع دی دسماع څخه پسله دیرشو کلونو یادرودیرشو کلو یاشپږدیرشو کلو بناپر اختلاف دعلماء رحمهم الله که دعوی مدعی ونکړه قاضی به ئې

دعوی نه اوری که څه هم امام امرورته وکړی په مجلة المادة ص ۱۶۶۰-
لاتسمع دعوی الدين والوديعة وملک العقار والمير اث ومالايعود من الدعاوی الی العامة ولاالی اصل الوقف کدعوی المقاطعة اوالتصرف بالجار تين والتولية المشروطة والغلة فی العقار الموقوفة بعدان ترکت خمس عشرة سنة ...آه-
علامة اتاسی رحمه الله تعالی وايي په شرح کی ددغی مادی چی دغه ماده صريح ده چی دعوی دارث مستثنی نه ده يعنی دحکم څخه دنورو دعاوی ونه ده وتلی(شرح المجلة للاتاسی ج۵ ص۱۶۸ )په فتاوی حامديه کی ليکلی دی:
سئل فی رجل يريد الدعوی علی زيد بميراث امه المتوفاة من اكثر من خمس عشرة سنة وزيد يجحد ومضت هذه المدة من بلوغه رشيدا ولم يدعی بذالک ولامنعه مانع شرعی وهما مقيمان فی بلدة واحدة فهل تکون دعواه بذالک غير مسموعة للمنع السلطانی الجواب نعم (الفتاوی تنقيح الحامدية ج۲ ص۵ )اوپه ردالمحتار کی ليکلی دی (ج۴ ص۳۸۲ ) ذکره فی البحر فی کتاب الدعوی عن ابن الغرس عن المبسوط اذاترک الدعوی ثلاثا وثلاثين سنة الخ ثم قال وفی جامع الفتوی عن الفتاوی العتابی قال المتأخرون من اهل الفتوی لاتسمع الدعوی بعد ست وثلاثين سنة الا ان يکون المدعی غائبا اوصبيا اومجنونا وليس لهما ولی اوالمدعی عليه امير اجائرآه ونقل عن الخلاصة لاتسمع بعد ثلاثين سنة آه ثم لايخفی ان هذاليس مبنيا علی المنع السلطانی بل هو منع من الفقهاء فلاتسمع الدعوی بعده و ان امرالسلطان بسماعها...آه
اوهرچی فتوی دابوسعود ده لکه چی په الدرالمختار علی هامش ردالمحتار( ج۴ ص۳۸۰ )کی ليکلی ده:
لوامر السلطان بعدم سماع الدعوی بعد خمسة عشرة سنة فسمعها لم ينفد قلت فلاتسمع الان بعدها الابامر الافی الوقف والارث ووجودعذر شرعی وبه افتی المفتی ابوسعود فليحفظ...آه
علامة ابن عابدين په متعلق ددغی فتوی په الفتاوی تنقيح الحامدية (ج۲ص۶ ) کی ليکلی ويلی دی:
واماما افتی به العلامة ابوسعود آفندی وصاحب البيت کماقيل ادری فهذه صورته (ميراثه متعلق اللی الخ) تعريب ددغه ترکی لفظ دادی (الدعوی المتعلقة بالميراث اذاتر کت بعذر شرعی خمسين سنة فهل تسمع بلاامر عال الجواب تسمع اذاکان العذر قويا...آه
اوپه ردالمحتار کی ليکلی دی (ج۴ ص۳۸۱ ):

ويخالفه (اى استثناء الارث) مافى الخيرية حيث ذكران المستثنى ثلاثة مال اليتيم والوقف والغائب ومقتضاه او الارث غير مستثنى فلاتسمع دعواه بعد هذه المدة وقد نقل فى الحامدية عن المهمنداری ايضاً انه كتب على سوال اخر فيمن ترك دعوى الارث بعد بلوغها خمس عشرة سنة بلاعذر ان الدعوى لاتسمع الابامر سلطانی ونقل ايضاً مثله فتوى تركية عن المولى ابى السعود وتعريبها اذا تركت دعوى الارث بلاعذر شرعى خمس عشرة سنة فهل لاتسمع الجواب لاتسمع الااذااعترف الخصم بالحق... الخ

مولوی عبدالحکیم عفی الله عنه مولانا زمان شاه مولانا عبدالله مولوی نور محمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

## پس دمرورله زمانه اوبي وقاضي ته له حاضريدودعوى كول

پوښتنه : درخواستی عبدالواجد ولد حاجی محمدنبی مسکونه ارغنداب حضورته د محترم رئیس صاحب دارالافتاء السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته یونفر ملک عبدالله زماعارض ماما دی اوپه خپل قضائې مرګ سره مړشوي دی ماته ئې په خپل ژوندکی چې زمامورهم ژوندی وه زمادمورحق راکاوه اوکله چې زمامور مړه شوه بیائې هم حق راکاوه اوزه په دغه باندی حاجی عبدالنبیؒ اوحاجی محمدکریم عبدالعلی شاهدان هم لرم نوڅکه چې وماته دمور دحق میراث نه دی راکړل شوی هیله کیږی چې وماته اوومه برخه دمورحق رامعلومه کړی چې خپل حصه میراث یوسم او دغه ملک عبدالله چې مړشو دری لونې اودری داکازامن اویوزه خوریي په میراث پاته یو اویوه زمادماما ښځه باته ده نورو تولوخپل میراث وړی دی یوازی ماعارض دخپلی مورحصه نه ده وړ ی هیله کیږي که چیری زماحق کیږی ماته مسئله راکړی په درناوی.

(عبدالواجد)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون الله تعالی حکم ددعوی دارث په باب دمرور الزمان کښی حکم دعامو دعاوی ودی یعنی که چیري امام قضاة منع کړی وه دسماع ددعوی څخه پس له پنځلس کلونونودغه قضاة دمیراث په دعوی کښی هم منع دی داوریدو څخه اوپس له دیرشو کلونو

یادری دیرش کلونو یاشپږدیرش کلونوبناء پر اختلاف دفقهاؤ رحمهم الله تعالی که مدعی دعوی ونکړی نوقاضی به ئې دعوی نه اوری که څه هم امام امرورته وکی راجح قول دشپږدیرش کلونودی هادعوی اوریدل کیږی که چیر ی مدعی علیه اقرار په حق کاوه که څه هم دغه مذکوره مدة تیرشوی وی یادغه یوڅوعذرونه موجودوی هغه داچې مدعی غائب وی یاصبی وی یامجنون وی اوولی نه لری اویامدعی علیه امیر جائروی په فتاوی تنقیح الحامدیة ج۲ ص۵ ط بیروت کی لیکلی دی:

سئل فی رجل یرید الدعوی علی زید بمیراث امه المتوفاة من اکثر من خمس عشرة سنة فزید یجحد ومضت هذه المدة من بلوغه رشیدا ولم یدع بذالک ولامنعه مانع شرعی وهمامقیمان فی بلدة واحدة فهل تکون دعواه بذالک غیر مسموعة للمنع السلطانی؟ الجواب نعم په مجلة الاحکام مادة ۱۶۶۰ کښی لیکلی دی لاتسمع دعوی الدین والودیعة وملک العقار والمیراث ومالایعود من الدعاوی الی العامة ولاالی اصل الوقف کدعوی المقاطعة اوالتصرف بالاجارتین والتولیة المشروطة والغلة فی العقارات الموقوفة بعدان ترکت خمس عشرة سنة–

په شرح المجلة للاتاسی (ج۵ ص ۱۶۶ )کښی لیکلی دی:

والنوع الثا لث السکوت بمعنی ترک الدعوی مدة طویلة بغیر عذروهذاهوالمذکور فی مواد هذاالباب وقد اختلف الفقهاء فی تحدید هذه المدة فقیل هی ثلث سنوات وهو قول مهجور لاینفذ القضاء به کمافی تنقیح الحامدیة وردالمحتار والخیریة وقیل هی ثلاثون سنة وقیل ثلاث وثلاثون سنة وقیل ست وثلاثون سنة ونقل فی التنقیح عن جامع الفتاوی ان المتاخرین من اهل الفتوی قالو الاتسمع بعد ست وثلاثین سنة الاان یکون المدعی غائبا اوصبیا اومجنونا ولیس لهما ولی اوالمدعی علیه امیر اجائر ایخاف منه –

په ردالمحتار ج۴ ص۳۸۱ کښی راغلی دی:

الثالث عدم سماع القاضی لها انما هوعند انکار الخصم فلواعترف تسمع کماعلم مماقد مناه من فتوی المولی ابی السعو دافندی اذلاتزویرمع الاقرار–

اوهرچې په الدر المختار بهامش ردالمحتار ج ۴ص ۳۸۰ کښی لیکلی دی فتوی دابوسعود په داسی شان:

لوامر السلطان بعدم سماع الدعوی بعد خمس عشرة سنة فسمعها لم ینفذ قلت فلاتسمع الان بعد ها الابامر الافی الوقف والارث ووجود عذر شرعی وبه افتی ابوالسعود فلیحفظ–

نوعلامة شامی په متعلق ددي فتوی پهالفتاوی تنقیح الحامدیة ج۲ ص۶ کي لیکلی دی:
واما مالفتی به العلامة ابوسعود افندی وصاحب البیت کماقیل ادری فهذه صورته (میر اثه متعلق اللی الخ) تعریب ددغه ترکی لفظ دادی الدعوی المتعلقة بالمیراث اذاترکت بعذر شرعی خمسین سنة فهل تسمع بلاامر عال الجواب تسمع اذاکان العذر قویاآه فقیدها کماتری بالعذر وهذافی سائر الدعاوی وکتب احمد افندی المهمنداری علی سوال آخر انها لاتسمع الخ–

هرچې داخبره دمستفتی ده چې زماماما په وقت کبنی دژوند وماته دمورحق راکوی نواصل خبره داده چې ده په حضورکی دقاضی دعوی نه وه کړی بی حضور دمجلس دقاضی دعوی لره اعتبار نشته په الفتاوی تنقیح الحامدیة کی راغلی دی ج۲ ص۷ :

سئل فیما اذاترک زید دعواه علی عمرو لحق مدة خمس عشرة سنة ولم یدع زید علیه بذالک عند القاضی بل طالبه بذلک مرارافی غیر مجلس القضاء ویرید زید الان الدعوی علیه بذ الک متعللا بانه ماترک الدعوی فی المدة المزبورة فهل تسمع دعواه ام لا؟الجواب قال فی المنح من کتاب الدعوی وشرطها ای شرط جواز الدعوی مجلس القضاء فلاتصح الدعوی فی مجلس غیره حتی لایجب علی المدعی علیه جوابه آه ومثله فی الدرروقال فی البحر ومنها مجلس القضاء فلاتسمع هی والشهادة الابین یدی الحاکم آه ومقتضی هذه النقول المعتبرة ان دعواه غیر مسموعة بتعلله بانه ماترکت فی المدة المزبورة لعدم شرط الدعوی وهو کونها عند القاضی فافهم....آه واللّٰه اعلم

مولوی محمد اخلاص برکتی مولوی عبدالحکیم عفی الله عنه مولانا احمد نوری عفی عنه مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

## دمرور زمان خومره موده ده اوشرعي قباله اعتبار لري کنه؟

پوښتنه : نحمده ونصلی علی رسوله الکریم اما بعد څه فرمائي علماء ددین په دی مسئله کی چې یوسړی مځکه رانیسی تقریبا ۳۹ کاله ئې دی اودده اولادوخوری پیا بل څوک دعوی باندی وکی چې په دی مځکه کی زه حق لرم سړی په جواب کی ووای چې دغه مځکه ماپرخپل نام رانیولی ده موروثه نه ده شاهدان دشرايي وفات شوی وی لکن شرعی قباله موجوده وی اوددی قبالی مثنی هم په دفترکی دحکومت موجوده وی آیادغه قباله په شریعت کی حجت گرځی اوکنه ؟بینواتوجروا – (المستفتی محمدعیسی)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون ملهم الصواب

اول سوال جواب دمرور الزمان په مدة کی اختلاف دی څوک دیرش څوک دری دیرش څوک شپږدیرش کاله ورته تعینوی اوڅوک نور عددونه ورته تعینوی خود مجله المادة ۱۶۶۱ مطابق مختار قول شپږدیرش دی ددې څخه وروسته قضاء حق ددعوی نه لری اونه یی دعوی اوریده کیږی خوشرط دادی چې ترک ددعوی په دغه مدة کی بغیر عذر شرعی وی اوکه دعذر شرعی په وجه دعوی پریښوول شوی وه مثلامدعی صغیر وویائې مدعی علیه متغلب وویاداسی نورنومرورالزمان دوقت څخه دزوال دعذر معتبریږی مثلاصغیر چې هروقت کبیر شو نودمرور الزمان مدة شروع کیږی ترڅوچې ۳۶ کاله تیریږی امادیانة اود الله جل جلاله په نزد په مرورالزمان دچاحق نه باطلیږی که څه هم په سل ګونو کلونه تیرشی:

ونقل في التنقيح عن جامع الفتاوى ان المتاخرين من اهل الفتوى قالو الاتسمع بعد ست وثلاثين سنة الاان يكون المدعى غائبا اوصبياا ومجنوناوليس لهما ولى اوالمدعى عليه امير جائرا يخاف منه ( شرح المجلة للاتاسى ج۵ ص۱۶۷ )وليس هذامبنيا على بطلان الحق فى ذلك الخ فلايردمافى قضاء الاشباه ان الحق لايسقط بتقادم الزمان (الاتاسى ص مذكورة )-

ددوهم سوال جواب شرعی قباله اعتبار لری که لاندی ۳ شرطه پکښی کی وه اول داچې مثنی به یی موجوده وی دقاضی په کتاب کښی دوهم دقاضی کتاب به داسی ځای کی محفوظ وی چې دخلقو دچمونو اولاس وهلو څخه به محفوظ وی دریم به قباله کی په خلاف دشریعت حکم نه وی لکه حکم په ملکیت دمغصوب اوداسی نور...

ان الاعلام والسند الصادرين من حاكم محكمة يجوز بمضمونها الاسلام و المسند الصادرين من حاكم حكمه صور الحكم والعمل بمطلو به بلابينة اذاكاناعار يين وسالمين من شبهة التزوير والتصنيع وموافقين لاصولهما( المجلة المادة ۱۸۲۱ ) يعمل ايضاً بسجلات المحاكم اذاكانت قد ضبطت سالمة عن الفساد والحيلة على الوجه الذى يذكر فى باب القضاء ( المجلة المادة ۱۷۳۸ ) وماذكرناه عن الخانية محله ماذالم يكن للصک وجود فى سجل القضاة امالووجد فيه فانه يعمل به كما فى حواشى الاشباه (ردالمحتار ج۳ ص۴۴۳ ) لكن اذا كانت الاعلامات والسند ات مطابقة للاحكام الشرعية والا فلايعمل بها وان روعى فيها احكام التعليمات مثلااذاكان اعلام الحكم

يتضمن الحكم بدين على الميت (شرح المجلة للاتاسی ج۶ ص۱۱۷ ) والله اعلم وعلمه اتم



مولوی نذاحمد الحقانی مولوی احمد نوری عفی عنہ مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

**مدعي که ددعوی وکیل بل څوک جوړ کړی نو دمدعي عليه رضاغواړی کنه؟**

پوښتنه : ومحترمو علماء کراموته ددارالافتاء اولا السلام علیکم ورحمة الله پریوه مدعی علیه دوونفرو دعوی دمیراث کړي ده دځپلو له طرفه څخه يی وکیل بالدعوی مقرر کړي دی دغه مدعی علیه وایي چې دغه وکیل يو فاسق سړی دی زه دده په وکالت رضائیت نه لرمه يو داسی مسئله غوړامه چې زه په وکالت رضائیت نه لرمه ایازما رضائیت شرط دی کنه ؟زه ومدعیانو ته وایمه چې پخپله دعوی وکړی یابل وکیل صالح ودروی فقط والدعاء مع الاحترام .

(المستفتی حاجی محمد شاه )

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب ومنه الصدق والصواب

توکیل په خصو مت کی جائزدی په ټو لو حقوقوکی لکن په دي شرط چې رضاء دخصم به وی اوکچیری اعذار په موکل کی موجودوه ۱- مرض - ۲ غائب وی په هغه مدة دسفرسره - ۳ مرید دسفروی نوپه وجودکی ددغواعذارو بیا توکیل جائزدی بی له رضاء دخصم اودرایه دامام ابو حنیفة رحمه الله تعالی ده اوصاحبین وایي چی توکیل جائزدی په خصومة کی بی له رضاء دخصم اوکڅه هم یوعذ ر داعذارو څخه نه وی اوداقول دامام شافعی رحمه الله هم دی اومفتی به قول دامام ابوحنیفة رحمه الله دی اودلیل دامام ابو حنیفة رحمه الله مرجح دی اوغالب متون هم پردغه ترجیح دی اولازم دی عمل په هغه سره لوجه څخه ددفع دضررا وخاص بیاپه دی زمانه کی چې فاسده زمانه ده :

ای بجوزالتوکیل بالخصومة فی جمیع الحقوق بشرط ان یرضی الخصم الااذاکان معذورا بعذر من الاعذار التی ذکرها فحینئذ یجوز بغیر رضاء الخصم وهذاعند ابی حنیفة رضی الله عنه وقالا یجوز التوکیل بالخصومة من غیررضاء الخصم وان لم یکن به عذر وهوقول الشافعی رضی الله

تعالی عنه( تبیین الحقائق ج۴ ص۲۵۵ ) (خ) التوکیل بالخصومة لا یلزم بلارضاء الخصم عندح رحمه اللّٰه خلافا لهما ثم علی قوله قیل ارضاه شرط صحته والصحیح انه شرط لزومه فلایلزم بدونه الاان یکون موکله مریضا اوعلی مسیرة سفر والمنحدرة کمریض هوالمختار الخ ( جامع الفصولین ج۲ ص۱۷۹ )

(سئل ) فی الصحیح الجسد المقیم فی البلد اذاارادان یوکل وکیلا عنه لیدعی بحق علی الاخر هل للمدعی علیه ان یأبی حتی یحضر الخصم فیدعی بنفسه (الجواب ) قداجاب عن مثل هذاالسوال العلامة الخیر الرملی بما صورته صرح علماء ناقاطبة متوناوشروحا بان الوکالة بالخصومة لاتکون الا برضاء الخصم الاان یکون الموکل مریضا اوغائبا مدة السفر اومریداللسفر او منحدرة ووجه ذلک ان الجواب مستحق علی الخصم ولهذایستحضره والناس متفاوتون فی الخصومة فلوقلنا بلزومه یتضرربه فیتوقف علی رضاءه وهذامذهب ابی حنیفة رحمه اللّٰه تعالی واختاره المحبوبی والنسفی وصدر الشریعة وابو الفضل الموصلی ورجح دلیله فی کل مصنف وغالب المتون علیه فلزم العمل به لدفع الضرر لاسیما فی هذاالزمان الفاسد واللّٰه تعالی اعلم وقال فی الملتقی وغیره وصح ای التوکیل بالخصومة فی کل حق برضاء الخصم للزومها الاان یکون الموکل مریضا لایمکنه حضور مجلس الحکم اوغائبا مسافة السفر اومرید اللسفر اومنحدرة غیر معتادة للخروج الی مجلس الحکم (تنقیح الفتاوی الحامدیة ج۱ ص۳۴۶ )واللّٰه اعلم.

مولانا احمد الحقانی مولانا احمد نوری عفی عنه مولوی نور محمد ثاقب دافغانستان ومرکزی دارالافتاء رئیس

## مروردزمان په دعوی دمیراث کي څه حکم لري

پوښتنه : یک نفر بچه کاکا متوفی محمد ایوب مرحوم محمد عمر نام دعوی دارد که چینکه پدرم قبلا پنجاه ساله پیش فوت گردیده، همین مرحوم محمد ایوب بصفت وصی یک ثلث جایداد پدرم تسلیم کرده اکنون همین ثلث جایداد پدر خویش میخواهم وحال آنکه بگفتار محمد عمر که محمد ایوب مرحوم ثلث جایداد پدرم بصفت وصیت قبضه کرده وفعلا طالب هستند تقریبا پنجاه سال میشد وحالا محمد ایوب مرحوم بیک زوجه وسه بنات میراث گردیده طالب فتوی هستم که همین محمد عمر شرعا در مال متروکه محمد ایوب مرحوم از حصه ثلث وصیت پدرش بعداز پنجاه

سال مستحق شده میتواندیانه وهکذا بهمین بنات الاخ وابناء ابن الاخ شرعا بصفت عصبه مستحق مابقی ورثه شده میتواندیانه؟

بسم الله الرحمن الرحیم

بعون ملهم الصدق والصواب

همین یک نفر یعنی کاکا متوفی محمد ایوب مرحوم محمد عمرنام اگر ترک دعوی خود درهمین مورد که دارد درهمین مدت پنجاه سال بغیر از موانع شرعی دعوی باشد مثل غیبوبت مدعی ویاخورد ثک بودن اوویاجنون یابودن مدعی علیه امیر جائر وظالم که مدعی ازاو خائف وترسان باشد پس بناء براین تفصیل مذکور دعوی شان قابل سماع نیست ونه مسموع میشود عند الشرع چراکه مرور الزمان معتبر برای عدم سماع دعوی بنابرمذهب مختار ومفتی به ۳۶ سال است وهمچنین اگریک کسی را میند دیگر کس که یک چندزمان تصرف میکند در زمین وآن ناظر در وقت حیات متصرف در زمین هیچ دعوی نکند پس از وفات او دعوی شان مسموع نیست اگرچه مدت مرور الزمان هم نباشد

(سئل) فیمااذاکان بیدزید عقار متصرف فیه تصرف الملاک من مدة تزید علی اربعین سنة بلا معارض ولا منازع وعمرو مطلع علی تصرفه المذکورولم یدع بذلک علی زید ولامنعه من الدعوی مانع شرعی فهل لا تسمع دعواه بعد ذلک علی زید ولادعوی وارثه من بعده ویترک فی ید المتصرف لان الحال شاهد (الجواب) نعم قال فی جامع الفتاوی وقال المتأ خرون من اهل الفتوی لاتسمع الدعوی بعد ست وثلاثین سنة الا ان یکون المدعی غائبا اوصبیا اومجنونا ولیس لهما ولی اوالمدعی علیه امیراجائر ایخاف منه کذافی الفتاوی العتابیة وفی الخلاصة رجل تصرف فی ارض زمانا ورجل آخریری تصرفه فیها ثم مات المتصرف ولم یدع الرجل حال حیاته لاتسمع دعواه بعدوفاته (الفتاوی تنقیح الحامدیة ج۲ ص۳ وهکذافی شرح المجلة للاتاسی ج۵ ص۱۶۷ )والله اعلم وعلمه اتم.

مولوی محمود میوندوال مولوی ندااحمد الحقانی مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

## ذواليد طولاني په مقابل كي دسند شرعي اعتبارلري اوكنه

پوښتنه : شخصی سی سال متصرف وذوالید بیک قطعه اراضی میباشد دیگر هم مدعی ملکیت اراضی مذکوره وسند شرعی بدست دارد که محلی بحضر محکمه آنوقت وبورق رسمی هم است آیا ذوالیدی طولانی معتبراست ویا سند شرعی درحال که شامی دررد المحتار در بحث کتاب القاضی الی القاضی وهم دراول کتاب قضاء اسناد شرعیه که مامون ومحفوظ از تغیر باشد مطلقا معتبر گفته بلکه تقادم زمان را مؤید اعتبار اسناد شرعیه گفته ومرور زمان راهم فقهاء گفته اند که بعد سی سال مانع سماع دعوی است.

( المستفتی ملاسید صلاح الدین آغا)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون الله تعالى

ذوالیدی طولانی که به سی وشش سال رسیده باشد معتبراست هم درمقابل سند شرعی وهم درمقابل شهود باین معنی که دعوی خارج اگرچه صاحب سند شرعی باشد بعد ازین مدة مسموع نیست قضاة از شنیدن اینچنین دعوی ممنوع میباشند لکن مشروط باین شرط که مدعی ترک دعوی دراین مدت از جهت عذر نکرده باشد مثل صغرسن وغیبوبت مدعی وجور وقدرت مدعی علیه وغیر آن وآنکه صاحب رد المحتار تقادم عهد را مؤید اعتبار اسناد شرعی گفته منافاة باین مسئله ندارد زیراکه تقادم عهد دررد المحتار درمقابل سجل جدید واقع شده پس آن قدر تقادم معتبراست که دراصطلاح برای آن جدید گفته نشود نه انکه بمدة مرور الزمان برسد:

قال المتأ خرون من اهل الفتوى لاتسمع الدعوى بعد ست وثلاثين سنة الاان يكون المدعى غائبا اوصبيا اومجنونا وليس لهما ولى اوالمدعى عليه اميرا جائر ا(ردالمحتار ج۴ ص ۳۸۲) الفتاوى تنقيح الحامدية ج۲ ص۱۲ والمجلة المادة ۱۶۶۱ والظاهر ان وجه الا ستحسان ضرورة احياء الاوقاف ونحوها عند تقادم الزمان بخلاف السجل الجديد لامكان الوقوف على حقيقة مافيه باقرار الخصم اوالبينة فلذا لايعتمد عليه (الخ ردالمحتار ج۴ ص۳۴۳ )

## كه مدعي دخپل ملك دعدم اقرار وكړي په خارج دمحكمه كي نو

پوښتنه : ذوالید اگر اقرار میدهد بعدم مالکیت خود بلکه بمالکیت غیر خود آیا اگر اقرار خارج محکمه باشد وباقرار عملا هم کاری که دال بعدم مالکیت باشد میکند مثلا بناء خود را در آن اراضی خراب میکند آیا این اقرار برای مدعی سند میگردد دیانة بحیث اینکه همراه باعملی دال بعدم

ملکیت ذوالید برده است

(المستفتی ملاسید صلاح الدین آغا)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون الله تعالی

اگر مدعی دعوی اقرار کند یعنی دعوی کند که مدعی علیه خارج از محکمه بدون حضور قاضی اقرار کرده است این دعوی مدعی مسموع و صحیح نیست مگر اینکه اقرار را در خطی ثبت کرده شده باشد به وجهی که شبهه تزویر و حیله را در آن خط گنجائش نباشد و قرینه اگر قاطعه باشد که مستلزم یقین بود حجت میگردد و اگر قاطعه نباشد حجت نمیگردد:

واماذالم یقر المدعی علیه فی حضور الحاکم بل ادعی المدعی انه اقر فی محل آخر فکما لاتسمع دعواه الاصلیة کذلک لاتسمع دعواه الاقرار ولکن اذاکان الاقرار المدعی به قدربط بسند حاو الخط المدعی علیه اوختمه المعروفین ولم تمر مدة مرور الزمان من تاریخ السند الی وقت الدعوی فعند ذلک تسمع دعوی الاقرار علی هذه الصورةالمجلة المادة ۱۶۷۴ احد اسباب الحکم القرینة القاطعة ایضاً(المادة ۱۷۴۰)

القرینة القاطعة هی الامارة البالغة حدالیقین(المجلة المادة ۱۷۴۱)

**پس له پنځه ویشته کلونو یوورور په بل دعوی کولای شي کنه؟**

پوښتنه : ومحترم حضورته ددارالافتاء وعلماء کرامو السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته موږدوو ورونو ته خپل پلار په خپل حیات کی یوه ټوټه مځکه راجلاکړی وه زه صغیر وم اوهغه بل بالغ وه مځکه وهغه بالغ ته تسلیم سوي ده بیازما دصغیر په حالت کی زما ورور دپلاردمرګ څخه وروسته لږ حصه ماته جلا کړه ډیره حصه یي خپله کرزولی ده اوزما د بلوغ تقریبا پنځویشت کاله کیږی اوس پس له پنځویشت کاله څخه شریعت مقدس ماته اجازه راکوی چې په خپل ورور دعوی وکړم چې تقسیم راسره وکړی اوزما پوره حق وماته ورسیږی اوکیا ؟

(المستفتی خدای نظر)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب باسم ملهم الصواب
په مذکور صورت کی مستفتی خدای نظر په خپل ورور باندی دعوی کولای شی چې خپل پوره حق ورڅخه واخلی ځکه چې د مدعی د بلوغ څخه وروسته ترشپږ دیرش کاله پوری مدعی کولاسی چې دعوی وکی دخپل حق دطلب لپاره اوتر ۳۶ کاکله وروسته دعوی نسی کولای مګرپه هغه صورت کی که مدعی معذوروو:
وفی جامع الفتوی عن فتاوی العتا بی قال المتاخرون من اهل الفتوی لاتسمع الدعوی بعد ست وثلاثین سنة الاان یکون المدعی غائبا اوصبیااومجنو ناولیس لهما ولی اوالمدعی علیه امیرا جائرا( ردالمحتار ج۴ ص۳۸۲ اوشرح المجلة لسلیم باز المادة ۹۸۶ ) لا یعتبر الز مان الذی مرحال صغر المدعی وانما یعتبر من تاریخ وصوله الی حد البلوغ (شرح المجلة لسلیم باز ص۹۹)

**دمیراث دعوی پس له ۴۲ کلونوخه حکم لری**

پوښتنه : ومقام ته دمحترم رئیس صاحب دارالافتاء السلا م علیکم ورحمة الله وبرکاته محترمه! زماپلارچې وفات وکی زه د۳ کالو اوزماخور دیو کاله پاته شوه اوزموږ موروثه حق دخپل اکاپلاس کی ووکله چې زه لوی شوم و ماته خپل اکا څلورمه حصه حق راکړی ده اوزماڅخه په دغه لړ حق خط راڅخه اخستی ده چې زه ئې په خپل پوره حق رسولی یم اودخور ذکرنه زماپه حصه کی داکاله طرفه سوی دی اونه په خط ورکولوکی زماله طرفه او وهغی ته څه شی ورکول سوی دی اوزما عاجزه زورنه په رسیدی اوس زمادخور دواده ۴۲ کاله کیږی چې واده شوي ده اوس پس له ۴۲ کالوزماڅخه خپل موروثه حق غواړی اوزماداکادزامنو څخه نه غواړی نوکه چیری پس له ۴۲ کالودغه زماخور په ماکی حق ولری وماته درویه دشریعت هدایت راکړی چې زه ئې ورکړم اوکه په مرور الزمان د۴۲ کالو چې دی دحق غوښتنه کړي نه ده دحق جلاکید ودحق نه لری وماته درویه دشریعت معلومات راکړی چې زه دخپل خور مخنیوی په وکړم چې زمامشکل حل سی دابه ستالویه وسیله وی

(المستفتی امین الله ولد عبدالحق مرحوم ولایت هلمند )

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمد لله رب العالمین ولصلوة علی سیدنا محمد وعلی اله وصحبه وسلم

الجواب باسم ملهم الصواب په مذکورصورت کی چې امین الله دعبد الحق زوی دده دپلارپه حصه کی ورته څلورمه حصه دده داکا له طرفه ورته رسیدلی ده دامین الله دخوردعوی په ده باندی پس له ۴۲ کاله صحت نه لری ځکه چې امین الله دخپلی خور په حق سره اقرارهم نه دی کړی اومرور الزمان هم بیله عذر شرعی ثابت دی:

وفی جامع الفتوی عن فتاوی العتابی قال المتاخرون من اهل الفتوی لاتسمع الدعوی بعد ست وثلاثین سنة الاان یکون المدعی غائبا اوصبیا اومجنونا ولیس لهما ولی اوالمدعی علیه امیر اجائرا (ردالمحتار ج۴ ص۳۸۲ وشرح المجلة للاتاسی ج۵ ص۱۶۸ والفتاوی تنقیح الحامدیة ج۲ ص۳ )لایسقط الحق بتقادم الزمان فاذااقر المدعی علیه واعترف صراحة فی حضور الحاکم بان حق المدعی عنده فی الحال علی الوجه الذی یدعیه وکان قدمر الزمان علی الدعوی فلایعتبر مرور الزمان ویحکم بموجب اقرار المدعی علیه( شرح المجلة لسلیم باز م ۱۶۷۴ )

مولانا احمد نوری عفی عنہ

## په ذوالیدی کي اعتبار ید مقدم لره دی که مؤخرلره

پوښتنه: درشرح المجله لبنانی درباب التنازع بالایدی دریک موضع تحریر گردیده که الید الظاهرة لااعتبار لهادر موضع آخر مینوسد الید المنقضیة لاعبرة لهاکه یک مسئله همراه دیگر تضاددارد استفسارما این است که دراثبات ذوالیدی اعتبار برای مقدم است یامتاخر۔

(المستفتی مولوی حمد الله فائز)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون الله الوهاب

اعتبار برای ید متاخر است اگر شهود از جانبین بود: وفی العیو ن تنازعا فی شئ فا قام احدهما البینة انه کان فی ید ہ منذ شهرو اقام الاخر البینة انه فی ید ہ الساعة اقره القاضی فی ید مدعی الساعة لان ید الاخر منقضیة والید المنقضیة لاعبرة بها عند ابی حنیفة ومحمد رحمهما الله آه

(شرح المجلة لسلیم باز مادة ۱۱۱۱ ) ۔ومراد عبارة الید الظاهرة لااعتبار لها آن است که بمجرد ید ظاهره اثبات ملکیت

نیست کہ احتمال غصب وغیرہ دارد.



مولوی عبدالحکیم عفی اللہ عنہ مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

## قباله حجت گرزي کنه ؟

پوښتنه : چاچی قباله چی مثنی په محفوظ ځای کښې ولری په چا باندی حجت ده خاص په مقر او دهغی په ورثه وو او که په عامو خلکو.

(المستفتی مولوی حمدالله فائز)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون الله تعالى

قباله چې په دیوان کی دحکومت محفوظ ځای ولری او اعتماد پروی چې تغیر او تبدیل نه دی پکښې شوی نو حجت ده :

وبهذ ایتأ ید ماقاله المحقق هبة الله البعلی فی شرحه علی الاشباه بعد مامرعن البیري من ان هذاصریح فی جواز العمل بالحجة وان مات شهود ها حیث کان مضمو نها ثابتا فی السجل المحفوظ اه (ردالمحتار ج۴ ص۳۴۳ )وعلی هذافیعمل بما وجده القاضی فی ایدی القضاة الماضیین وله رسوم فی دواوینهم ای السجلات آه (شرح المجلة للاتاسی ج۱ ص۱۹۲ )په قلم دمحترم مولوی محمد رسول هوتکی بغلانی ترسیم شو۱۲



مولوی عبدالحکیم عفی اللہ عنہ مولوی عبداللہ مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

## آیا اعتبار شرعي حدودوته دی که نقشي ته؟

پوښتنه : ددوونفروپریوه ټوټه ځمکه دعوی ده چې په املاک کی دیوه نفرپه حدود کی داخله ده اودبل نفرپه نقشه کی داخله ده آیا شرعی حدود معتبردی او که نقشه معتبره ده ؟

(المستفتی بهاؤ الدین حقانی ۱۳-۲ - ۱۳۷۶ )

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون الله الوهاب

دفاتردحکومت حجة دی چې موافق دمقررات سره دحکومت وی سره لدی چې مخالفت به دقوانین سره دشرعی هم نه لری نوکه په نامه دحدود وی اوکه دنقشی وی په هریوه کی چې دغه شرائط وی هغه معتبردی او مدار دحکم گرځی؛

لايعمل بالخط والختم فقط ولكن اذاكان سالما عن شبهة التزوير والتصنيع يكون معمولا به يعنى يكون مدارللحكم لايحتاج الى الثبوت بوجه اخر المجلة الما دة ۱۷۳۶ البراءة السلطانية وقيود الد فتر الخاقانية لكونها امينة من التزوير معمول بها المادة ۱۷۳۷ يجوز العمل والحكم بمضمون الاعلام والسندات الذين اعطيا من طرف حاكم محكمة بلابينة اذاكانا عاريين وسالمين عن شبهة التزوير والتصنيع وموافقين لاصولهما (المجلة المادة ۱۸۲۱ )موافقة الاعلامات والسندات اى الحجج للاصول بان يراعى فيها التعليات التى نظمتها جمعية المجلة وجر ى التصديق عليها من الجانب السلطا نى بتاريخ ۳ جمادى الاولى سنة ۱۲۹۶ وهى تحتوى على ۲۵ مادة فاذااستوفيت الشروط المبنية فى تلک التعليمات يعمل بها ويحكم بلابينة لكن اذاكانت الاعلامات والسندات مطابقة للاحكام الشرعية والافلايعمل بها وان روعى فيها احكام التعليمات آه( شرح المجلة للاتاسى ج ۶ ص۱۱۷ )

مولوی نذاحمد الحقانی

مولوی عبدالحکیم عفی الله عنه مولوی احمد نوری عفی عنه

مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان ومرکزی دارالافتاء رئیس

# كتاب القضاء والشهادات

## والي يا اولسوال تعين دقاضي كولاى شي اوكنه

پو بنتنه : جناب محترم اميرالمؤمنين صاحب دامت حياته السلام عليكم وبعد استفتاء ميدارم اينكه قضاة كه درولسواليهاكه ازطرف واليان يارؤساي محكمه تعين كرديدندكه ازطرف وزارت عدليه يامقام امارت صلاحيت براى ايشان داده شده يانه بهرصورت حكم شان نافذاست يانه درين باره شمارشادات وهدايات لازمه مهربانى كردند

(المستفتي قاضي مولوى عبد الرحمن قاضي ولسوالى جوند ولايت بادغيس)

بسم الله الرحمن الرحيم

دقاضيانو مقررى دامام وظيفه ده خاص امام صلاحيت لري چې قاضي معين كړى اوياهغه څوک كولاي سى چې قاضي مقرر كړي چې امام اذن دقاضي دمقررى ورته كړى وي اووالي دولايت ياولسوالي ياقاضي دمرافعي يابل دمنصب دارانوڅخه دحكومت بدون اجازى دامام نسى كولاى چې ديوځاى دپاره دى قاضي معين كړى كچيرى ئې معين كړى قضا ئې نافذنه ده ديووطن خلق خپل په راى هم نسى كولاى چې په اتفاق يوقاضي مقرركړى حتى كه امام ئې هم نوى لاهم قاضي نسي مقرر كولاى بلكه دغه خلق به اتفاق كوى پر تعين اومقررى دامام وروسته به امام ددوى دپاره قاضي معين كوى حاصل دادى چې نصب اوعزل دقاضيانو خاص الخاص دامام اويادهغه كس چې امام اذن ورته كړى وى كاردي امام چې يو قاضي معين كړى ديوى خاصي ولسوالي دپاره اويادديوخاص ولايت دپاره اويادديو خاص فيصله دپاره اويادديومعين زمانى دپاره نو قضاء ددغه قاضي هم خاص په هغه پورى ده چې امام ورته معين كړى وي په غيركښى له هغه ئې قضاء نافذه نه ده ديو محل قاضي ته چې عذرپيښ سى بل عالم هلته پرخپل ځاى خليفه اونائب كولاي سى چې دامام يانائب دامام دخواه اذن په نيابت ورته سوى وى اوكه اذن نه وى ورته سوى نوقضاء دنائب ئې صحيح نه ده:

القضاء ولاية من الولايات المستمدة من الخليفة باعتباره ممثلا للامة فلابد للقاضي من تعين صادر عن الحاكم الاعلى اونائبه سواء كان عادلا ام جائر اولايصح ان يولي نفسه اويوليه جماعة من الرعية ( الفقه الاسلامي ج ۶ ص۷۵۲) الامير الذى ولاه السلطان ناحيه وجعل له خراجها واطلق له التصرف فى الرعية ومايقتضيه الامارة له ان يقلد ويعزل وكذا حال السلطان مع الخليفة

اما لوقال فلان ولايت رابتو دادم لايلى ذلک لانه تفويض المال (البزازية على هامش الهندية ج٥ ص١٢٩) اجتمع اهل البلدة وقدموارجلا على القضاء لايصح لعدم الضرورة وان مات سلطانهم واجتمعوا على سلطنة رجل جاز للضرورة (البزازية على هامش الهندية ج٥ ص ١٣٠)

ويتخصص بزمان ومكان وخصومة الخ( الدر المختار على هامش ردالمحتار ج۴ ص٣٨٠) قوله ولايستخلف قاضى الخ اى ولوبعذر بحر عن العنا ية فدخل فيه مالووقعت له حادثة فلايستخلف بلاتفويض الخ ) ردالمحتار ج۴ ص٣٥٩)(ولايستخلف قاضى ) اى لاينصب نائبا لان المفوض اليه القضاء لاالتقليد ولايتصرف فى غير مافوض اليه كالوكيل لايوكل بلا اذن الموكل الا اذافوض اى الاستخلاف اليه بان قيل له من قبل السلطان ول من شئت (دررالحكام فى شرح غرر الحكام ج٢ص٣٨)

## والي که دامير المؤ منين خلاف حکم وکړی؟

پوښتنه : چې يوه نفرمړه ځمکه اباده کړی وی او٢٢ کاله ئې خوړلی وی اصول ددغه ځمکی اوداؤد اظهارنامه ورکړی وی اوخلقيانو خلقی قباله ورکړی اودمجاهدينوپه وخت کی دمجاهدينو محکمی ورکړی وی اودطالبانو په وخت کی ئې دامير المؤ منين دمکتوبی هدايت سره سم يوکال اجاره ورکړی وی چې دهغه مکتوب مضمون داسی دی هغه دولتی ځمکی چې دحکومت جنګلات نه وی اوفارم نه وي اوصديان نه وی اومجاهدينو ياخلقيانو چاته ورکړی وی اودوی تصرف پکښی کړی وی ترامرثانی دی طالبانوته اجاره ورکوی په امرثانی کی موړدغه ځمکه دقانون سره برابر دغه خلقوته ورکوو آيادغسی ځمکه دولايت والی کولای شی چې ددغه شخص څخه ئې واخلی اوبل شخص ته ئې ورکړی کيا؟ والسلام

(المستفتی بهاؤ الدين حقانی)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب حامد اومصليا

چونکه دمستفتی سوال يوازی دغه وو چې تصرف دوالی دولايت پرخلاف دامردامير المؤمنين نافذدی کنه نوددغه په جواب کښی به ووايو چې دغه تصرف نافذنه دی ځکه چې تصرف دوالی هلته نافذدی چې موافق دامرسره د امير وی ځکه دی دجانب دامير وکيل دی:

( الحاکم وکيل من قبل السلطان لاجراء المحاکمة والحکم المجلة المادة ١٨٠٠ اصل الحکم

وادارة الشئون ان یکون للسلطان لانه صاحب الامامة الکبری وجمیع من یعمل للعموم یکون وکیلاعنه لکن الوکالة قدتکون بلاواسطة کان یقول السلطان لزید وکلتک بالحکم بین الناس ولاخر بجبا یة الاموال وحفظها ولاخر بحفظ الثغور ولاخر بادارة الامور السیاسیة ولاخربعقل المجرمین (وهکذا فی شرح المجلة للاتاسی ج۶ص۵۰ )واللّٰه اعلم وعلمه اتم

## کشف د موضوعاتوبه قاضي پخپله کوی که څنګه؟

پوښتنه: که لپاره دقاضی دمدعی بها کیفیت مجهول شی دحکم لپاره سازګارنه وي دچاپه ذریعه به داکیفیت ځان ته معلومه وی دهغو کسانونام څه اوعدد څومره دمسافی بعد یاقرب په لیږلوددي کسانوڅه اثرلری که نه مصارف دموټریاخوراک به ئې په چاوی ایادغوکسانوته دمدعی یامدعی علیه په کورکښی روادی اوکه خیر؟ قاضی په خپله دبعضی موضوعاتودکشف لپاره تلای شی اوکه خیر (بینوابالدلائل توجروابالفضائل)
(المستفتی رئیس تمیز)

بسم اللّٰه الرحمن الرحیم

الجواب ومنه الصدق والصواب

کله چې دپاره دقاضی کیفیت دمدعی به مجهول شی دحکم دپاره سازګارنه وی نودمعلومیة دپاره به هغه ځای ته پخپله قاضی ورځی که داورته اسانه وی والانوبیاکه دی مأذون بالاستخلافوی نوبل څوک به ولیږی چې دهغه څخه تعبیر په خلیفه اوهم نائب اوهم امین سره کیږی اوپه بعضی کتابونوکی ذکرده چې عدد د دوئ به دوه وی اودقرب اوبعد دمسافت دومره خبره ده چې که مسافت دومره بعید وی چې نه احضار دمدعی به ممکن وی اونه هلته ور تلل دقاضی اویادنائب نوبیا په معلومیت کښي ذکردقیمت هم کافی ده اومصارف به دبیت المال څخه کوی ځکه داعمل دقضاده اودمدعی یادمدعی علیه په کورکښی دی خوراک نه کوی ځکه داارفق بالناس اوابعد عن التهمة ده اوبل داچې دلته ولایة شته اوحرام ده هغه هدیه وغیرها چې سبب ئې ولایة وی په شرح المجلة دسلیم باز کښی په بیان دمعلومیة دمدعی به کښی ذکرکړی؛

ثم انه اذاتعذر احضار العین مع بقائها کرحی وصبرة طعام وقطیع غنم فا لقاضی بالخیار ان شا حضر ذالک الموضع لوتیسر له ذالک وان لم یتیسر له الحضور وکان مأذونا بالاستخلاف بعث امینه الی ذالک وهو نظیر ماذاکان القاضی یجلس فی داره ووقعت الدعوی فی جمل لایسع باب

داره فانه يخرج الى باب الدار اويأمر نائبه حتى يخرج يشير اليه الشهود بحضرته ولولم تكن العين باقية بل هالكة اوغائبة بحيث لايمكن احضارها ولاحضور القاضى اونائبه لبعد المسافة اومانع اخر فيكتفى بذكر قيمتها (تكملة ملخصا)( شرح المجلة لسيلم باز ص۹۱۵)

قال شمس الائمة الحلوانى رحمه الله تعالى ومن المنقولات مالايمكن احضاره عند القاضى كالصبرة من الطعام والقطيع من الغنم فا لقاضى فيه بالخيار ان شاء حضر ذالک الموضع لو تيسرله ذالک والافان كان مأ ذونا بالاستخلاف يبعث خليفته الى ذالک الموضع كذافى المحيط( الفتاوى الهندية ج۴ ص۵ )

**اوذكرشوى ده همدا عبارة په درر الحكام شرح غرر الاحكام ج۲ ص۳۳۱ اوددى درر الحكام څخه نقل سوى ده په تكمله درد المحتار كښې ج۱ ص۳۲۰**

وان كان التعذرلكونه يحتاج فى احضاره الى مؤنة ومصرف فالقاضى مخير ان شاء حضر الى موضعه يشار اليه فى الدعوى والشهادة ويحكم به هناک والا فان كان مأذونا بالاستخلاف ارسل خليفته فيحكم الخليفة والا بعث امينا ليشار اليه فى الدعوى والشهادة بحضوره فاذاسمع يخبر القاضى بذالک فيقضى باخبار امينه وحده انقروى عن القنية قال وفى الثانى من دعوى التاتارخانية معزيا للينابيع وكان شيوخنا يقولو ن ان شاء حضر عندها وانشاء بعث اليها امينين من امنائه.... آه( شرح المجلة للاتاسى ج۵ ص۲۶ ) وتعليل النبى صلى الله عليه وسلم دليل على تحريم الهدية اللتى سببها الولاية فتح قال فى البحروذكر الهدية ليس احترازيا اذيحرم عليه الاستقراض والاستعارة ممن يحرم عليه قبول هديته كمافى الخانية آه قلت ومقتضاه انه يحرم عليه سائر التبرعات فتحرم المحاباة ايضا الخ (ردالمحتار ج۴ ص۳۴۵ )

**اوپه هدايه كښې په كتاب القسمة كښې ج۴ ص۴۰۸ - ۴۰۹ باندى ذكردى چې هغه عمل چې دجنس دعمل القضاء څخه وى چې قطع دمنازعة پرى راځى اومنفعة عامه وى نوهلته رزق پرٖبيت المال ده اوبل داارفق بالناس اوابعد عن التهمة ده ۱۲**

مولوى عبدالحكيم عفى الله عنه مولانا محمد مسلم حقانى مولانا عبدالله مولوى نور محمد ثاقب دافغانستان دمركزى دارالافتاء رئيس

## بیله رسمي محکمي فیصله ملزم ده کنه ؟

پوښتنه : عارض ملافدامحمد ولایت زابل ولسوالی میزانه بحضور جناب علیقدر محترم المقام رئیس صاحب عالی تمیز السلام علیکم ورحمة الله محترم رئیس صاحب عالی تمیززه ملافدامحمد داعرض کوم چې فیصله بی له محکمې رسمي صادره سيي هغه قابل داعتبارده که نه ده ؟

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون الله الوهاب

فیصله قابله داعتبار یعنی ملزم ده چی له سلطان اویاقاضی اویامحکم دخواه وی که امیر دبلد فیصله وکړه اودسلطان له خواتفویض ورته سوی ووفیصله ئې ملزم ده که خلیفه دقاضی فیصله وکړه اوقاضی ته دسلطان له خوادغسی تفویض سوی وواوقاضی هم وخلیفه ته دغسی اجازه کړې وه فیصله ئې ملزم ده :

وفی النوازل السلطان اذاحکم بین الاثنین لاینفذوفی ادب القاضی للخصاف ینفذوهو الاصح وبه یفتی کذافی الخلاصة آه (الهندیة ج۳ ص۳۱۸ )وقدمنا ان السلطان لوحکم بین اثنین فالصحیح نفا ذه آه (ردالمحتار ج۴ ص۳۷۳ ) واما الحاکم فهو اماالا مام اوالقاضی اوالمحکم ه ( شرح المجلة للاتاسی ج ۶ ص۱۱ ردالمحتار ج ۴ ص۳۳۱ الحاکم هو من عینه و نصبه السلطان لاجل فصل و الدعوی والمخاصمات الواقعة بین الناس وفقا لاحکامها المشروعة (المجلة المادة ۱۷۸۵) استفید ان السلطان اذارائی الدعوی بین المتخاصمین وحکم بها موافقا لاصولها المشروعة صح بالاولی لان القاضی وکیل عنه (شرح المجلة للاتاسی ج۶ ص۱۲ )الحاصل ان السلطان اذانصب في البلدة امیراًوفوّض الیه امر الدین والدنیاصح قضاء ه-

(ردالمحتارص۳۸۳ج ۴) ولا یستخلف قاضي نائبا الا اذافوض الیه صریحاکول من شئت اودلالة کجعلتک قاضی القضاءوالدلالة ههنا اقوی لان فی الصریح المذکوریملک االاستخلاف لا العزل وفی الدلالة یملکهما.(الدر المختارعلی هامش ردالمحتارص ۳۵۹ج ۴)

واذانهی الامام القاضی عن الاستخلاف لم یکن له ان یستخلف وان اذن له فیه استخلف علی مقتضی الاذن ولا یستخلف القاضی اذا مرض اوسافرالاباذن الخلیفة لان الخلیفة انمافوض التصرف الیه برأیه الابرأی غیره فلایملک ان یستخلف الاباذنه وکذلک الخلیفة اذاامرالقاضي ان یستخلف خلیفة یحکم فامر رجلایحکم بین الناس جازفان قضی خلیفة ولم یکن امره الامام بذلک لم یجز اه

(معین الحکام ص ۲۶)الباب الرابع والعشرين فی التحکیم تفسیر تصیر غیره حاکمافیکون الحکم بین الخاصمین کالقاضی فی حق کافة الناس وفی حق غیرهمابمنزلة المصلح کذافی محیط السرخسی اه (الهندية ص۳۹۷ج ۳) کماان حکم الحکام لازم الاجراء علی جمیع من کان فی ولایتهم کذلک ینفذحکم المحکمین علی من حکمهم فی شان الذی حکمهم به ومن ثم لیس لاحدالخصمین ان یمتنع من قبول الحکم الذی صدرمن المحکمین اذاکان موافقا لاصوله المشروعة (المجلة المادة ۱۸۴۸)

(تنبیه ) دغه موجوده والیان دولایاتو اوولسوالان دولسوالیو فیصلی په مابین کی دخصومو نسی کولای ځکه چی په ولایاتو اوولسوالیو کی قاضیان مقررسوی دی هغه ته تفویض سوی دی داحکامو شرعیة والحاصل ان السلطان اذانصب فی البلد امیرا وفوض الیه امر الدین والدنیا صح قضاؤه واما اذا نصب معه قاضیا فلالانه جعل الاحکام الشرعیة للقاضی لا للامیر وهذاهو الواقع فی زماننا (ردالمحتارج۴ص۳۷۳)

مولوی عبدالحکیم عفی الله عنه مولانا احمد نوری مولانا زمان شاه مولانا عبدالله مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

**دولایت اومحکمي له خواماًمورشوی رسمي بلل کیږی کنه؟**

پوښتنه : دولایت او محکمی لخواچي یوڅوک ماًمورشی هغه رسمی بلل کیږی کنه ؟
(المستفتی ملافدامحمد ولایت زابل اولسوالی میزانه)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون الملک الوهاب
کچیر یوڅوک ولیږل سی دولایت لخوااویاد محکمی لخوادپاره دمطلق کشف الحال نودغه لیږل جائز دی خواه دسلطان لخوااذن وی اوکه نه کچیری لیږل دپاره دفیصلی اوحکم وی نوپه دغه صورت کی اذن د سلطان اوتفویض شرط دی:
وان کان التعذر (ای تعذر احضار المدعی به) لکونه یحتاج فی احضاره الی مؤنة ومصرف فالقاضی مخیر ان شاء حضرالی موضعه لیشار الیه فی الدعوی والشهادة ویحکم به هناک والاان کان مأذونا بالاستخلاف ارسل خلیفة فیحکم الخلیفة والابعث امینا لیشار الیه فی الدعوی

والشهادة بحضوره فاذاسمع يخبر القاضى بذالک آه( شرح المجلة للاتاسی ج۵ ص۲۶)



مولوی عبدالحکیم عفی الله عنه مولانا احمد نوری مولانا زمان شاه مولانا عبدالله مولوی نور محمد ثاقب د افغانستان د مرکزی دارالافتاء رئیس

## شهودګه دمفتي په مخکي تيرشي اوقاضي فيصله وکړی نو

پوښتنه : شهودچي بيله قاضی ومفتی ته تيرشی اوفيصله قاضی صادره کړی داقابل داعتبارده کنه؟

(المستفتی ملافدامحمد ولایت زابل ولسوالی میزانه)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون الملک الوهاب شهودچی ومفتی ته شاهدی اداکی که مفتی چیری دقاضی مأذون لخواه څخه نائب وونودغه ادادشاهدی معتبرده اوکه نائب نه وونونه ده معتبرځکه چی ادادشاهدی وحاکم ته معتبردی خواه سلطان وی یاقاضی وی یامحکم وی مفتی له دروحاکمانو څخه نه دی:

الشهادة هی الاخبار بلفظ الشهادة يعنى يقول اشهد باثبات حق احد هو فى ذمة الاخر فى حضور الحاكم (المجلة المادة ١٦٨٤ )قوله فى حضور الحاكم المراد منه ان يكون الاخبار فى مجلس الحكم ثم ان كان الحاكم منصوب الامام وجب ان تكون الشهادة فى المجلس الذى عينه له الامام للحكم وفى محل ولايته وان كان محكما من المتداعيين فلايتقيد حكمه فى مجلس دون مجلس بل كل مجلس حكم فيه كان مجلس حكمه فوجب ان تكون الشهادة فيه كمافى التكملة ( شرح المجلة للاتاسى ج۵ ص٢٠٠ )ويقضى النائب بماشهد وابه عند الاصل وعكسه (الدر المختار على هامش ردالمحتارج۴ ص٣٩٦ )للنائب ان يحكم بالبينة التى سمعها الحاكم وللحاكم ايضا ان يحكم بالبينة التى استمعها نائب ومن ثم لوسمع الحاكم البينة فى دعوى واخبر بها نائبه كان لنائبه ان يحكم باخبار الحاكم من دون ان يعيد البينة وكذااذاكان النائب مأ ذونا بالحكم فسمع بينة فى دعوى وانهى الامر الى الحاكم كان للحاكم ايضا ان يحكم بدون اعادة البينة امااذالم يكن النائب مأذونا با لحكم بل كان مأمور اباستماع البينة للتدقيق والاستكشاف فقط فليس للحاكم ان يحكم بانهائه بل يلزمه ان يستمع البينة بالذات ( المجلة المادة ١٨٠٦ ) والله تعالى اعلم-

(تنبیه) کچیری حاکم نائب وه په یوه حادثه کی که دغه نائب مأذون بالحکم وونو هغه شاهدان چی نائب ته تیرسی نائب ئي حاکم ته وړسوی دحاکم دحکم دپاره اعادة دشاهدانو ضروری نه ده اوکه نائب مأذون بالحکم نه وونودحاکم دحکم دپاره اعاده دشاهدانو ضروری ده .



مولاناسلطان شاه مولوی احمدنوری مولوی عبدالله مولوی عبدالحکیم عفی الله عنه مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

**بي دقاضي له حضوره اقرار صحت لري کنه؟**

پوښتنه : څه وايي علماء دين ومفتيان شرع متين په دی مسئله کی چی اقرار کول دیو شخص دقاضی بیله حضوره صحیح کیږی که څنګه؟ که زمونږ طرفته یو درحمت نظروکی معلومات راته راکی ډیر مهربانی به مووي والسلام.

(المستفتی علماء محکمه باغران)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون الله الوهاب

اقرارکول دیو شخص په مال سره دپاره د بل چاپی له حضوره څخه دقاضی داصحیح د ه اوپراقرار کونکی باندی لازم ده چی اداء به کوي ددغه مال لکه په بدائع الصنائع (ج۷ ص۲۲۳) کښی لیکلی دی:

واماحق العبد فهو المال من العين والدين والنسب والقصاص والطلاق والعتاق ونحوها ولا يشرط بصحة الاقرار بها مايشترط لصحة الاقرار بحقوق الله تعالى وهى ماذكرنامن العدد ومجلس القضاء والعبارة حتى ان الاخرس اذاكتب الاقرار بيده اواومأ بما يعرف انه اقرار بهذه الاشياء يجوز الخ اوپه (الفتاوى الكاملية ص۱۵۲) کښی لیکلی دی سئلت عن وصی سمع من اقرار الميت حال حياته ان لفلان عليه كذافهل يجوزله ان يدفع ذالک الدين بدون قضاء قاضى؟ الجواب مافى كتاب آداب الاوصياء وهذانصه وصي علم الدين باقرار الميت اوبالمعاينة له ان يؤ دى وان كان بالشهادة لاالاان يقضى به... الخ

اوپه الفقه الاسلامی وادلته (ج۶ ص۶۱۹) کښی لیکلی دی:

واماحقوق العباد اى حقوق الافراد فانواع منها حق طلب واستيفاء القصاص اوالدية ومنها الحق فى الاموال النقدية اوالعينية ومنها الحق فى الطلاق وحق الشفعة والنسب ونحوها ولايشترط لصحة الاقرار هذه الحقوق الفردية مايشترط للاقرار بحقوق اللّٰه تعالى من التعدد وكونه فى مجلس القضاء النطق بعبارة صريحة وانما يصح الاقرار فيها من الاخرس كما لايشترط لصحة الاقرار بها الصحو فيصح اقرار السكران بها وهذه الحقوق تثبت مع الشبهات بخلاف حقوق اللّٰه تعالى. واللّٰه اعلم بالصواب

*مولوی زمان شاه مولوی عبدالحکیم عفی الله عنه مولوی عبدالله مولوی احمد نوری مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس*

## آیادیوی محکمي فیصله امیر عملي کولای شي؟

پوښتنه : دیوی محکمی فیصله دامیر په امر عملی کیداشی ؟ بیله دی چي دمرافعی اود تمیز حق ورکړای شی.

بسم اللّٰه الرحمن الرحیم

الجواب بعون اللّٰه الوهاب

دیوی محکمی فیصله دامیرپه امرعملی کیدای شي اودا بالکل صحیح ده ځکه په قضاء کښې دسلطان اوامیر لخوا تقیدات اوتخصیصات په زمان اومکان اوهم بعضی استثناءات صحیح کیږی اوهغه معتبریږی حتی کچیری سلطان امرصادرکړی چې په یوه مسئله کی دی عمل وشی په رای دیوخاص مجتهد دمذهب نوقاضی لره جائزنه ده چې عمل وکړی په دی مسئله کښې په رایه دبل مجتهد باندی په شرح المجله دسلیم باز ص۱۱۶۷ کښې لیکلی دی:

(المادة ۱۸۰۰) القضاء يتقيد ويتخصص بالزمان والمكان واستثناء بعض الخصومات وذلک لان القاضى وكيل عن السلطان والوكيل يستفيد التصرف من موكله فاذاخصص له تخصص واذاعمم تعمم (حامدية )۔

اوپه ص۱۱۶۹ کښې لیکلی دی:

وكذلک لوصدرالامر السلطانى بالعمل برأى مجتهد فى مسئلة لان رايه بالناس ارفق ولمصلحة

العصر اوفق فلیس للحاکم ان یعمل برءی مجتهدآخر یخالف رأی ذلک المجتهد واذاعمل لاینفذ حکمه وذلک لان امرالسلطان متی صادف فصلامجتهد افیه نفذ امره (درمختار ) والله اعلم بالصواب .



مولوی ندااحمد الحقانی مولانا احمد نوری عفی عنه مولوی نور محمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

**دوسيي چي له اولسوالي څارنوالي**

**ته بيا محكمي ته ځي آياداكتاب القاضي الي القاضي دی كنه؟**

پوښتنه :ومحترمواعلماء کراموته ددارالافتاء السلام علیکم وایم وبعد محترمو قدرمنو ستاسودلوړ حضورڅخه داهیله کیږی چې ددوسییوپه باب باید داووایم چې دغه دوسیئي چې دهرات یافراه یانیمروزیاد کندهار ولسوالیوڅخه وڅارنوالی ته راځی بیا محکموته ځی نودغه دوسیی په طریقه دکتاب القاضی الی القاضی نه دي چې اخری قول دامام ابویوسف صاحب دادي چې شاهدان به شاهدی آداءکوي پردي چې دغه کتاب اومهر دفلان قاضی دي بینواتوجروا –

(المستفتی دمرافعی څارنوالی څارنوال مولوی الله نظر )

بسم الله الرحمن الرحیم

جواب د استفتاء دارنګه دی کتاب اوخط دقاضی یابه ووالی ته اوامیرته استه وی یابه وه بل قاضی ته لیږی که چری خط ووالی ته استوي چې ورسیدی ووالی ته شاهدان نه غواړی چې دغه خط دفلان قاضی دی لکن ښه کاردي چې شاهدان شاهدي ادا کی خوضروري نه دي ولی چې تکلیف دي هرسړی وه مجلس ته دامیر نشی رسیداي نودضرورة په خاطر شاهدان نه غواړی لکن دغه ضرورت هلته دي چې ښارونه دقاضی اودامیر جلاجلائې که یوښار ووبیاضرورت نشته شاهدان غواړی:

هکذافی تبیین الحقائق (ج۴ ص۱۸۵ ) ولکن استحسنو اذلک للعادة فان القاضی یکتب الی الوالی ویستعین به فیماعجز عن اقامته فی کل وقت ولوشرط ذلک لحرجو الان کل احد لایحضر مجلس الامیر فیشهد والامیر لایمکنه التفحص لکن هذه الضرورة والعادة فیما اذاکان الامیر فی

مصر آخر غير المصر الذي فيه-

اوكچيرى خط دقاضى و قاضى ته وو بيابه يا خصم اقرار كوي چې داغه خط دفلان قاضى دي په حق دفلان واقعى كنبى يابه خصم منكروى كچيرى اقرار كوي بيا شاهدان نه غواړي:

(هكذافى طحطاوى ج٣ ص٢١٠)ولايقبله الابحضور الخصم وشهوده الااذااقر الخصم فلاحاجة اليهم اى الى الشهود قوله الااذااقر الخصم آه انه كتاب القاضى فحينئذ يستغنى عن الشهادة حموى (هكذافى البحر الرائق شرح الكنز الدقائق ج٧ ص٤)

اوكه چيري خصم اقرارنه كوي بيادوه قسم حال دى يابه خط مستبين مرسوم اوعلامه داره وي يابه نه وي كچيرى مستبين اوعلامه داره وو بيا شاهدان نه غواړي :

هكذا فى العقود الدرية ج٢ص١٩ قالو االكتاب على ثلاث مراتب ١ مستبين مرسوم وهوان يكون معنونا اي مصدرا با لعنوان وهوان يكتب فى صدره من فلان الى فلان على ماجرت به العادة فهذاكا لنطق فلزم الحجة ٢ مستبين غير مرسوم آه اوعلى الكاغذ لاعلى وجه المعتاد فلاحجة الابانضمام شئ اخر اليه كا لبينة والاشهاد وقيل الاملاء بلااشهاد لايكون حجة والاول اظهر وهكذافى ردالمحتار ج٤ ص٣٩٢ ويستغنى منه ايضاً ماقدمناه وهوماذاكان على وجه الرسالة مصدرا معنونا وهو ان يكتب فى صدره من فلان الى فلان وهكذافى ص٣٩٣ قال فى خزانة الاكمل اجاز ابويوسف رح ومحمد رح العمل بالخط فى الشاهد والقاضى والراوي وان لم يكن الصک فى يد الشاهد لان الغلط نادر واثر الغلط يمكن الاطلاع عليه-

اوكچيرى پر داغه سوابق مذكوره رقم نه وى بياشاهد غواړي هكذا فى الفقه الاسلامى ج٦ ص٤٩٣ وقد اشترط علماء المذاهب

## مدعي ته دشاهدانو حاضرولولپاره بايد خومره وخت وركول شي

پوښتنه : به رياست محترم دارالافتاء السلام عليكم ورحمة الله وبركاته محترما لطفا خواهش ميشودكه اگر شخصى مى خواهد كه شاهدان خود راحاضردارم دقت برايم داده شود بناء ازروى شريعت غراء محمدى چند وقت برايش داده ميشود ازروى كتاب جراى ما معلومات بدهيد تاطبق قانون شريعت برايش اجازه داده شود تاشاهدان خود راحاضردارند والسلام

(مولوى سيد محمد عضورياست استيناف)

بسم اللّٰه الرحمن الرحيم

الجواب حامداو مصليا

که یوڅوک ووايي چې زه پرخپله دعوی شاهدان لرم اوهغه دلته په ښار کي دی نودری ۳ ورځی به وخت ورکول کیږی څوچې دی خپل شاهدان حاضره وی اوپه دغه دری ۳ ورځی کی به مدعی علیه یعنی منکرته قسم نه ایښوول کیږی بلکه دمدعی علیه څخه به یوثقه اوبااعتباره ضامن اخستل کیږی څوچې دی خپل شاهدان حاضروی اوکه یی وویل چې زه شاهدان لرم ولیکن غائب دی یامریضان دی نودی شاهدانو ته اعتبارنشته بلکه منکرته به قسم ایښوول کیږی اواندازه دغیبة اندازه دسفرده یعنی که شاهدان داسی ځا ی وه چې ترهغه ځایه مسافت دسفرنه ووهغه حاضر بلل کیږی دالازمه نه ده چې په ښارکی به وی :

قوله (ولوقال المدعی لی بینة حاضرة وطلب اليمين لم يستحلف وقيل لخصمه اعطه كفيلا بنفسک ثلاثة ايام ) كيلايغيب نفسه فيضيع حقه الخ والتقدير بثلاثة ايام يروى عن ابى حنيفة رح وهو الصحيح كذافى الكافى وصحح فى الخا نية انه الى جلوس القاضى مجلسا اخرالخ البحر الرائق ج۷ ص۲۱۰ وهكذافى الفتاوى الهندية ج۴ ص۱۴ )وفتح القدير ج۷ ص۱۸۰ والاختيار لتعليل المختار ج۲ ص۱۱۲ وردالمحتار ج۴ ص۴۷۴ وقيد بحضور ها لانها لوكانت خارج المصر فانه يحلف اتفاقا وفى المجتبى وقدرت الغيبة بمسيرة السفر البحر الرائق ج۷ ص۲۱۰ وهكذافى الدرالمختار بهامش ردالمحتار ج۴ ص۴۷۴ –

اوتطبیق په مابین کی ددی دووقولوچې څوک دری ۳ ورځی وخت ورکوی اوڅوک ترمجلس ثانی پوری دقاضی په دی ډول کیږی چې په هغه وقت کی قاضی دری ۳ ورځی وروسته قضاء ته حاضري دی لکه البحرالرائق چې په بحث د استمهال دمدعی علیه کښی وایی :

ففى البزازية ويمهله ثلاثة ايام ان قال المطلوب لى دفع وانمايمهله هذه المدة لانهم كانو ايجلسون فى كل ثلاثة ايام اوجمعة فان كان يجنس فى كل يوم ومع هذايمهله ثلاثة ايام جاز فان مضت المدة ولم يأت بالدفع حكم آه البحر الرائق ج۷ ص۲۰۲ والله سبحانه وتعالى اعلم وعلمه اتم واحكم



مولوی عبدالحکیم عفی الله عنه مولوی نذاحمد الحقانی مولوی محمد اخلاص برکتی مولوی احمد نوری عفی عنه مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

## شاهدی دتسامع څه حکم لري

پوښتنه محترم رئیس صاحب دارالافتاء څرنګه چې یوسړی په بل سړی دعوی کوی چې تاخپله لورچې لطیفه نومیږی وماته راکړی ده اوهغه مدعی علیه منکردی چې ما نه ده درکړی نوموړ محکمه دمدعی څخه شاهدان طلب کړه مدعی وویل چې زموږ په کورکی زماموراوزماخور اوزماورورشاهدان وه چې زماسره ایجاب اوقبول وکړی اوزموږ په کور کی نورخلق هم خبردی چې وریجی اوغوښې زمایی خوړلی دی نوموړ محکمه دغه موراو خور اوورورد مدعی راطلب کړه هغوپه اشهدبالله سره شاهدی اداکړه اودنورو خلقو څخه موپوښتنی وکړی هغوهم وویل چې موږ واوریدل په سماع سره اوپکښی ناست نه وونوموړ محکمه ستاسو څخه فتوی غواړوپه ډیر احترام

(محکمه ابتدائیه ولسوالی ډنډ کندهار قاضی مولوی دوست محمد)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون الله تعالی

نکاح لره دوه حالته دی یوحالت دانعقاد بل داظهارپه حالت دانعقاد کی شاهدی دفروع اواصول صحیح کیږی اوپه حالت داثبات کی چې انکارراسی بیانه صحیح کیږی:

فیصح فی النکاح شهادة الاصول والفروع ولکن شهادة هولاء وان کان ینعقدبه النکاح الاانه لایثبت بهاعند الانکار فشهادتهم تقع فی حل الزوجة دیانة لاقضاء ( الفقة علی المذاهب الاربعة ج۴ ص۱۷ )وینعقد بحضور من لاتقبل شهادته له اصلا کماتزوج امرءة بشهادة ابنیه منها وکذا اذاتزوج بشهادة ابنیه لامنها اوابنیها لامنه هکذافی البدائع والاصل فی هذا الباب ان کل من یصلح ان یکون ولیا فی النکاح بولایة نفسه صلح ان یکون شاهدا ومن لافلاکذافی الخلاصة ( هندیة ج۱ ص۲۶۷ وهکذافی ردالمحتار ج۲ص ۲۹۷ والاصل عند ناان کل من ملک قبول النکاح انعقد بحضرته ولایظهر عند التجاحد بشهادتهما عند دعوی القریب لانهما لدفع تهمة الزنا لالصیانة العقد عند الجحود کما بسط فی البدائع (الدر المنتقی بهامش مجمع الانهر ج۱ ص۳۲۱ وهکذافی مجمع الانهر ج۱ ص۳۲۱ وهکذافی البحر ج۳ ص۸۹ )-

اوشاهدی دتسامع په نکاح کی صحیح ده لکن په شرط دشهرة حقیقی یاحکمی اوبل په وقت داداء دشاهدی کی به لفظ داشهد و ایي داسی به نه وایي چې ماله خلقواوریدلی دی اوکه داسی شاهدی اداکی چې موږ نه یوحاضر شوی لکن دامشهورامردی زموږیقین دی

بیاهم صحیح دی:
ولایشهدا حد بمالم یعاینه الافی النسب والموت والنکاح والدخول بزوجته وولایة القاضی واصل الوقف وهو کل ماتعلق به صحته وتوقف علیه فله الشهادة بذالک اذااخبر ه بهامن یثق به من خبر جماعة لایتصور تواطؤهم علی الکذب بلاشرط عدالة اوشهادة عدلین الخ الدرالمختار قوله من یثق آه قال فی الفتوی الصغری الشهادة بالشهرةفی النسب وغیره بطریق الشهرة الحقیقیة اوالحکمیة فالحقیقیة ان یشتمل ویسمع من قوم کثیرین لایتصور تواطؤ هم علی الکذب ولایشترط فی هذاعدالته بل یشترط التواتر والحکمیة ان یشهد عنده عدلان من الرجال اورجل وامرء تان بلفظ الشهادة الخ (طحطاوی ج۳ ص۲۳۷ وهکذا فی ردالمحتار ج۴ ص۴۱۷ وحاشیة علامه ابی الاخلاص علی الدرر ج۲ ص۳۷۵)
وفتح القدیر ج۶ ص۴۶۶ )وان فسرالشاهد للقاضی ان شهادته بالتسامع اوبمعاینة الیدردت علی الصحیح الافی الوقف والموت اوقالا فیه اخبرنامن یثق به تقبل علی الاصح خلاصه بل فی العزیمة عن الخانیة معنی التفسیر ان یقولا شهد نا لاناسمعنا من الناس اما لوقالالم نعاین ذلک ولکنه اشتهر عندنا جازت فی الکل وصححه شارح الوهبانیة وغیره (الدرالمختار بهامش ردالمحتارج۴ ص۴۱۸)
**(نوټ) هغه اشخاص چې شاهدی یی په وخت دجحودکی نه قبلیږی که په حضور ددوی کی نکاح منعقده شی بیادوی اخبار وهغه چاته وکوی چې شاهدی یی قبلیږی بیاپه تسامع شاهدی هغه چاته رواده چې شروط دتسامع پرځای وی:**
وفی البدائع ان الاشهادفی النکاح لدفع تهمة الزنالالصیانة العقد عند الجحودو الانکار والتهمة تندفع بالحضور من غیر قبول علی ان معنی الصیانة تحصل بسبب حضور هما وان کان لاتقبل شهادتهما لان النکاح یظهر ویشتهر بحضورهما فاذاظهر واشتهر تقبل الشهادة فیه با لتسامع فتحصل الصیانة وظاهر ه ان من لا تقبل شهادته اذاانعقد بحضوره ثم اخبربه من تقبل شهادته جازله الشهادة بالتسامع( البحرالرائق ج۳ ص۸۹ وهکذافی الطحطاوی ج۲ ص۱۱ )اوشهرة حکمی هلته معتبردی چی مدعی استشهاد نه کوی اوکه مدعی طلب دشاهدی له شاهدأنووکاوه بیانه ده معتبر ولکن هذااذاشهدا عنده من غیر استشهادالذی قال انافلان ابن فلان الفلانی حتی اذالقی رجلین عدلین شهدا عنده علی نسبه من غیر استشهاده وعرفاحاله وسعه ان یشهدوان اقام هذاالرجل شاهدین عنده شهداعلی نسبه لم یسع ان یشهداعلی نسبه نص علیه محمد فی المبسوط لانه لمالم یعتمد قوله فی شهادته لایعتمد قول من اعتمد هذاالرجل علی قوله ۱۲ (معین الحکام

ص۱۳۵)-



مولوی عبدالحکیم عفی الله عنه مولانا عبدالله مولانا احمد نوری مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

## شرعي قباله حجت ده اوعمل يي پر مقتضا ضروري دی

پوښتنه: دکند هارولایت دعلماء کرامودد ارالافتاء محترم رئیس صاحب ته السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته زه حاجی راز محمد دمحمد کریم زوی دناحیه ۵ اوسیدونکی ستاسی درانه حضورته دارنګه عرض لرم محترمه زموږ باغ چې دد امان دولسوالی دخوشاب په کلی کښې موقعیت لری چې په ۱۳۰۷ کال کښې ئې شرعی قبالی صورت نیولی دی اودهمدغی قبالی په اساس ئې غرباراه عام موجوده ده چې دوهمه قباله ئې په ۱۳۵۳ شمسی کال کښې موږ په لاس راوړی ده چې هم ئې حدود غربا عامه لاره ده لکن دکلی خلګ موږته اذیت راکوی چې ستاسی حدودغربا دارغستان ویاله ده نوستاسی څخه احترامانه هیله کړودقبالی دمشاهدی پراساس زموږحدودتعین اومخالفت قطعه کړی اودوی چې کومی اوبه یادوی هغه اوبه هم نشته ومن الله التوفیق.

(المستفتی حاجی رازمحمد)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون الملک الوهاب

شرعی قبا له حجت ده عمل پرمقتضی دقبالی شرعی ضروری دی لکن په دی شرط قباله حجت ده اوعمل په ضروری دی چې دحیلو اوتزویر څخه ساتلی وی په دی طریقه چې مثنی به محفوظ ځای کی ولری اووخت هم پرتیر شوی وی هرچې دکلی خلق وائې چې غربا حدئې و یاله ده داوینائې هغه وخت معتبره ده چې په شرعی حجت ثابت وی خصوص په داسی وخت کی چې اوبه دویالی هم نوی نود قاضی دحکم دپاره نفس قول دخصم معتبر نه دی چې شرعی دلائل ورسره نه وی دغه حکمونه دلاندی عباراتود معتبرو کتابو څخه معلومیږی:

وبهذایتأید ماقاله المحقق هبة الله البعلی فی شرحه علی الاشباه بعدمامرعن البیری من ان هذاصریح فی جوازالعمل بالحجة وان مات شهودهاحیث کان مضمونها ثابتا فی السجل المحفوظ

آه لکن لابد من تقییده بتقادم العهد کما قلنا توفیقا بین کلامهم ( ردالمحتار ج۴ ص۳۴۳ )لایعمل با لخط والختم فقط ولکن اذاکان سالما عن شبهة التزویرو التصنیع یکون معمولا به یعنی یکون مدارللحکم لایحتاج الی الثبوت بوجه آخر المادة ۱۷۳۶ من المجلة اعلم اولان طریق القاضی الی الحکم یختلف باختلاف المحکوم به والطریق فیمایرجع الی حقوق العباد المحضة عبارة عن الدعوی والحجة وهی اما البینة اوالاقرار اوالیمین اوالنکول عنه اوالقسامة وهی من نوع ماالخذ فیه بالقرائن کماسیأ تی اوعلم القاضی علی خلاف المفتی به فی زماننا اوالقرائن الواضحة کالمثال فی المادة ۱۷۴۱ کذا فی قضاء ردالمحتارعن ابن الفرس شرح المجلة للا تاسی ج۵ ص۳۸۹ المادة ۱۷۴۱ القرینة القاطعة هی الامارة البالغة حد الیقین مثلااذاخرج احد من دار خالیة خائفا مدهوشا فی یده سکینة ملوثة بالدم فدخل فی الدارورؤی فیها شخص مذبوح فی ذالک الوقت فلایشتبه فی ان قاتله هو ذلک الشخص ولایلتفت الی الا حتمالات الوهمیةالصرفة کان یکون الشخص المذکور ربماقتل نفسه من المجلة ۱۷۴۱ والله اعلم.

مولانااحمدنوری مولانامحمداخلاص برکتی مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

**دمشهودبه معاینه دشاهدلپاره شرط ده**

پوښتنه (زید) پرعمر باندی دعوی کړي ده چې بکرچې دعمر پلاردی پرمایعنی پرزید مځکه اوا وبه په قطعي بیع سره خرڅه کړیده دزید پلاس کی کوم سند وجود نه لری دوه تنه شاهدان ئې راوستل چې یوخالددی اوبل والددی خالدو ایي چې زه فقط داسی شاهدیم چې بکردعمر پلارماته وویل چې دزید څخه زماپیسی راوړه ماپیسی راوړی په بیع اواجاره علم نه لرم والدوایي چې زه اوبل نفرچې حاجی طورنومیدی بکرته ورغلو چې زید وایي پرمامځکه اوا وبه خرڅی کړه بکروویل چې زه اوبه اومځکه خرڅه وم دبیعی په وخت حاضرنه وم بله ورځ والد وائې چې زه اوحاجی طور بکرته ورغلو بکر حاجی طورته وویل چې زید هغه باقی پیسی نه دی راکړی ستاسو څخه ددغه شهادت په باب فتوی غوارو چې آیاقابل قبول دی اوکه ندی؟ بینوا توجروا- (محکمه ابتدائیه ولسوالی دند)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون الملک الوهاب

دغه یوشاهد چې وائي چې بکردعمر پلارماته وویل چې دزیدڅخه څماروپې راوړه (ماوروړی) نودی کی خوډیر احتمالونه دي چې داپیسی دی دبل شئ وی نه دبیع دمځکی اوداوبواودغه بل شاهد چې وایي چې زه اوبل نفر بکرته ورغلوچې زید وائې پرمامځکه اوابه خرڅی کړه بکروویل چې زه ئې خرڅه وم نوپه دی کښی هم بیع قطع نشته بلکه داوعده دبیع ده دبل په خوله اوداچې وایي چې بکروویل چې زید هغه باقی پیسی نه دی راکړی نوداهم ډیر احتمالونه لری اومعتبر خوهغه شهادت ده چې معاینه دمشهودبه پکښی موجوده شوی وی لکه په فتاوی هندیه کښی وایي ومنه ان یکون التحمل بمعاینة المشهودبه بنفسه لابغیره الخ (ج۳ص۴۵۰)هاکچیرته شاهدمشاهداومعاینه دمالک اودملک وکړه اومالک یي پیژنده په چهره اونوم اونسب اوملک ئې پیژنده په حدودو اوحقوقو دملک سره او داملک په یدده کښی وی اوتصرف پکښی کوی تصرف دملاکواوشاهدپه زړه کښی هم واقع شی چې دادده ملک ده نوبیا حلال ده مشاهده لره چې شهادت آداکړی په ملکیت سره دپاره دده په( فتاوی هندیة ج۳ ص۴۵۳ )کښی لیکلی دي: وان لم یعاین الملک والمالک ولکن سمع من النا س قالو الفلا ن بن فلان فی قریة کذاضیعة حدود هاکذاوهو لم یعرف تلک الضیعة ولایده علیها لایحل له ان یشهد له بالملک وان عاین المالک دون الملک بان عرف الرجل معرفة تامة وسمع ان له فی قریة کذاضیعة وهو لایعرف تلک الضیعة بعینها لایسعه ان یشهد کذافی الکافی وان عاین الشاهد المالک والملک بان عرف المالک بوجهه واسمه ونسبه وعرف الملک بحدوده وحقوقه وراه فی یده یتصرف فیه تصرف الملاک ویدعی انه له ویقع فی قلبه انه له حل ان یشهد له بالملک هکذافی المحیط الخ والله اعلم

مولوی عبدالحکیم عفی الله عنه مولوی محمد اخلاص برکتی مولوی احمد نوری مولوی نور محمد ثاقب وافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

# کتاب الصلح

## په یوه مصلح صلح راتلای شي کنه؟

پوښتنه : وحضور ته دعالیقدرمحترم رئیس صاحب دارالافتاء مقام عالی تمیز السلام علیکم ورحمة الله محترمه داروزګان په ولا یت کی د ۲ کورنی پریوه اندازه مځکه دعوی ده بیادطرفین په مابین کی یوملاصاحب چې ددی صلح دپاره تعین اوراستولی وود دوی صلح وکړه داسی چې نیم مځکه د دی طرف اونیم مځکه ئې دبل طرف مونږ هم یعنی مدعی اومدعی علیه قناعت پروکې پرخپله مځکه ودریدلواوس یوملااوقاضی وایي چې ستاسو صلح صحت نه لری ولی چې مصلح یونفردی په یونفرمصلح صلح نسی کیدای نوستاسو صلح نقض ده فلهذاستاسو محترم لوړ حضورته موضوع عرض سوه موږته دمعتبرو کتابو څخه لطفا ومرحمة فتوی راکی چې دغه مسئله حل سی والسلام.

(المستفتی محمد نعیم)

بسم الله الرحمن الرحیم

بعون الملک العلی الاعلی

محترم مستفتی صاحب اصلادصلح په معاملاتوکی اتمام اوپوره والی متعلق دی تر رضائیت دمدعی اومدعی علیه پوری ځکه چې داصلح هم یوعقددی دعقودودشرع شریفی څخه اوهر عقد شرعی تمامیږی په خپلوارکانو سره ارکان دعقد صلح هغه ایجاب اوقبول دی اوددوی دواړو تعلق دمدعی اومدعی علیه سره دی نوداراومداردتمامیت دصلح صرف پررضائیت دمدعی اومدعی علیه باندی دی داچې دریم ګری ته مصلح ویل کیږی یاخوبه وکیل وی ددوی دطرف څخه اویابه فضولي وئ په دغه عقدکی نوخلاصه داده که مصلح یونفروی اوکه ډیر خوچې رضائیت دمدعی اومدعی علیه وی نوصلح تامه ده نقض یی راونه دی په دی وجه چې دریم ګری اومصلح یودی؛

(المادة ۱۵۳۱) الصلح عقد یرفع النزاع بالتراضی وینعقد بالایجاب والقبول لکنه یتم بلاقبول من المدعی علیه اذابدء هو بطلب الصلح بعد اقراره بالدین فقال المدعی صالحتک علی ذلک فلایشترط قبول المدعی علیه لان ذلک اسقاط من المدعی ویتم بالمسقط وحده (طحطاوی) شرح المجلة لسلیم باز اللبنانی ص۸۲۷ وهکذافی الفقه الاسلامی ج۵ ص۲۹۹ والدرالمختار بهامش الطحطاوی ج۳ ص۳۴۹ والله اعلم بالصواب

مولوی احمد نوری عفی عنه مولوی ندا محمد الحقانی

## صلح چي واقع سي بيا ما تيږی کنه؟

پوښتنه : صلح چي دڅوکسانوتر منځ وشی ترصلح کولوورسته داصلح ماتيږی اوکنه اوکه ماتيږی نو په کوموځايوکي ماتيږی.

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون ملهم الصدق والصواب

کله چې مابين کی دجانبين صلح وسی نو يوه جانب لره داحق نسته چې رجوع دصلح څخه وکی اوصلح پريږدی مگرپه يوڅو مسا يلوکی چې صورة دمستفتی دهغه اقساموڅخه نه دی:

اذاتم الصلح فليس لواحد فقط من الفريقين الرجوع المجلة الما دة۱۵۵۶ وهکذافی الفقه الاسلامی ج۵ ص۳۲۱ وبدائع الصنا ئع ج۶ ص۵۳ لان الصلح عقد لازم ليس لا حد هما نقضه الافی مسائل الاولی (شرح المجلة لسليم باز ص۸۴۵).

مولانااحمد نوری عفی عنه مولاناندامحمد الحقانی

## پس له صلحي نه يوفريق حق درجوع لری اونه يي وارث اوبيانه بينه قبليږی اونه اقرار

پوښتنه : څه وايي علماء ددين مبين اومفتيان دشرع متين چې زماپلار عبد القادر له حاجی عبدالکريم سره دشيلي پراوبوباند ی په دغه سنه د ۱۴۴۲ کښی دخپل حق آبه دعوی کړی وه چې مدعی عليه په حال دانکارکي وُ نتيجة الدعوی داشوه چې په هم دغه سنه کی د علماء کراموادوطن دمشائخوپه ذريعه دغه منازع فيها موضع داصلاح له لاری منحل اوفيصله شوه اوپه هم دی طريقه فيصله تحريری ترتيب شوه چې همدغه مدعی بهادسر خاوی اوبه ئې ومدعی عليه ته ورکړی اومدعی جانب ته ئې دمدعی عليه په يوه خرابه قطعه ځمکه کی قنات کاری ورکړه چې همد غه قطعه محدودشوی دی په تيريدود زمان سره دغه قنات نصف پرمخ بيول شوی اونصف ترهغه معلوم ځای پوری دنتوان په خاطر پاته شويدی اود غه نصف په وقت دحيات دمدعی عليه کښی په اجر ارسيدلی دی کله چې يوڅو کلونه بعد مدعی عليه مړشونود غه متباقی قنات کاری دده پروارث ياپرده باندی په وقت دحيات کښی الزام لری اوکه څنگه يعنی ددغه بدل متباقی کارترهغه معلوم ځای

پورې چې په فیصله کښې تعین شوي دي لازم دي او که نه ؟

(مستفتي عبدالصمد دغزني دولايت دمقردولسوالی دفتح خيلودکلی اوسيدونکی)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب ومنه الصدق والصواب

صلح چې وشي اوتام وګرځي بيانشته ديودفريقينودپاره رجوع ددی صلح څخه اوکله چې مړشي يودفريقينو نشته دوارث دپاره چې فسخ کړي هغه صلح دمورث خپل حتی بعد الصلح نه اقرار معتبرده اونه کومه بينه قبليږي:

اذاتم الصلح فليس لواحد فقط من الفريقين الرجوع عنه سواء كان الصلح عن اقرار اوانكار اوسكوت حتى لوادعى عليه شئيا فانكر فصالحه على شيئ ثم اقرالمدعى عليه لايلزمه مااقربه وكذالوبرهن المدعى بعد صلحه لايقبل (تكملة) الخ ويملك المدعى بالصلح بدله ولايبقى له حق فى الدعوى وليس للمدعى عليه ايضا ان يسترد بدل الصلح منه (المادة ١٥٥٧) اذامات احد الفريقين فليس لورثته فسخ صلحه لان الوارث قائم مقام المورث وحيث لم يكن للمورث ان يفسخ الصلح الواقع بتراضى الطرفين فليس لوارثه فسخه الااذاظهر فساد الصلح اوبطلانه شرح المجلة لسيلم باز ص٨٤٥ وص ٨٤٦ حتى لوانكر فصالح ثم اقربه وكذالوبرهن بعد صلحه لايقبل الخ (تكملة ردالمحتار ج٢ ص١٧٥) سئلت فيمن ادعى على اخر دينا فانكر وصالحه على شئي ثم اقام المدعى عليه البينة على القضاء اوالابراء هل ينتقض الصلح فالجواب لاينتقض بل هوعلى حاله قال فى الخانية ولوان رجلاادعى مالاعلى رجل فانكر وصالحه على شيئ ثم ان المدعى عليه اقام البينة على القضاء اوالابراء لاتقبل ولايبطل الصلح ويكون الصلح فداء عن اليمين اللتى كانت عليه آه( الفتاوى الكاملية ١٦١ )والله تعالى اعلم

مولانامحمد مسلم حقاني مولوی عبدالحکيم عفی الله عنه مولاناعبدالله مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئيس

**دمحکمي جوړشويو ليکونوځه حکم دی اوپس له صلحي طرفين درجوع حق لری کنه اوپه حدودوکي غلطي شبه ده کنه ابراء دمريض څه حکم لری اومرض موت څه ته وائي؟**

پوښتنه: یوشخص خیرمحمد ولدمیربازخیل ملک ابراء کړي دی عیانی وریروته چې هغه حضرت نور احمدنوردی لکن په دی وخت کښی علاتی ورور ژوندی ووچې محمد بازولد میربازووپس له هغه نه خیرمحمد وفات وکړو لکن دهغه ابراء خط غلط ووپه څومادوسره چې هغه دادی (۱) دکومی یوی محکمی په نامه چې داابراء خط جوړشوي ده هلته ثبت محفوظ نشته (۲) محدودونه ئې غلط دی ۷ قطعی مځکه ده ځنی کښی یو محدود اوځنی کښی ۲ محدوده اوځنی کښی دري ۳ محدوده غلط دی (۳)ذکر شوی مځکه په ابراءخط کي یونیم جریب ده اوپه محدودکی ۷ جریبه ده اویونیم جریبه مځکه يي په صلح کښی اخستی ده (۴) څه وقت پس محمد باز دعوی وکړه ا ومصلحین راغله صلحه ئې وکړه په نصف باندی په حضور دشاهدانوکی چې تواطؤ دهغوپه کذب باندی محال ده بنه په رضااورغبت سره لکن محمدبارفوت وکړو ۱۰ کاله دامځکه دهغه زامنو خوړ له اوفی الحاله ذواليدهم دی لکن پس دلس ۱۰ کاله حضرت نوراواحمدنور دمحمد باز په زامنو دعوی کوی آیاادعوی صحیح ده اوکه باطله (۵) دغه ابراء خط په حال دمرض کښی وو له دی وجهی نه دی مشهور په ناجوړ پلارسره وو مفتیان دشرعی دفقه حنفی په رڼاکښی په دی باره کښی څه وائی؟

( المستفتی مولوی محب الله حقانی سالابی)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب ومنه الصدق والصواب

ابراء خط یاهبه خط یانور خطونه چې دمحکمي څخه صادر شوی وی قابل داعتبار اودعمل کولودی که لاندی دری ۳ شرطه پکښی وه (۱) ثبت به یی په محکمه کی موجودوی (۲) دقاضی کتاب به داسی ځای محفوظ وی چې دخلقود چم اوتزویر څخه خلاص وی (۳) په دی خط کی به خلاف دشریعت حکم نه وی اوکه داشروط نه وه لکه دمستفتی په سوال کی چې دکوم خط بیان شوي دی نوقابل داعتبارنه دی لکه ردالمحتار چې وائی:

وماذکرناه عن الخانية محله ماذالم يکن للصک وجود فی سجل القضاة امالووجد فيه فانه يعمل به کما فی حواشی الاشباه( ردالمحتار ج۳ ص۴۴۳ )لکن اذاکانت الاعلامات والسند ات مطابقة

للاحكام الشرعية والافلايعمل بها( شرح المجلة لمحمد خالد الاتاسی ج۶ ص۱۱۷)
يعمل ايضاً بسجلات الحاكم اذاكانت قدضبطت سالمة عن الفسادو الحيلة على الوجه الذی يذكر فی باب القضاء ( المجلة مادة ۱۷۳۸ (۲)

دصلح په باره کی باید ووایو چې هرکله صلح وشی نوبیاطرفین لره حق ددعوی نه کیږی اونه ددوی ورثه لره داحق شته چې صلح فسخ اویادعوی وکړی که چیری بطلان افساددصلح نه وو راغلی لکه څنګه چې دراتلونکی عباراتوڅخه دفقهاء معلومیږی:

للصلح احكام هی اولا انقطاع الخصومة والمنازعة بين المتداعيين شرعا فلاتسمع دعواهما بعدئذ وهذاحكم ملازم جنس الصلح( الفقه الاسلامی ج۵ ص۳۲۱ )وهكذافی (شرح المجلة لسليم باز م۱۵۵۶ ص)۸۴۶ اذامات احد الفريقين فليس لورثته فسخ صلحه( المجلة المادة ۱۵۵۷ )فليس لوارثه فسخه الااذاظهر فساد الصلح اوبطلانه (سليم باز ص۸۴۶ (۳):

غلطی په حدودوکی یاداچې دابراء خط اودمحدود ترمابین په جریبوکی تفاوت کثیروی نوداشبهة ده اوهغه خط چې په هغه کی شبهه موجوده شی نوهغه قابل دقبول نه دی اوحجة نشی ګرځیدلای:

لايعمل بالخط والختم فقط ولكن اذاكان سالما عن شبهة التزوير والتصنيع يكون معمولا به يعنی يكون مدارالحكم لايحتاج الى الثبوت بوجه آخر (المجلة مادة ۱۷۳۶ )(۴):

ابراء دداسی مریض چې هغه ته مرض موت پیښ وی دوه ۲ قسمه ده یوه ابراء دوارث ده یوه ابراء داجنبی ده ابراء دوارث موقوفه ده پراجازه دنورورثه که هغوا جازه وکړه نوصحة لری اوکنه نی لري اوابراء داجنبی په ثلث کی دمال صحیح ده بی له توقفه پراجازه دورثه اوپه زائد کی ترثلث موقوفه ده ددوی پراجازه حاصل داچې ابراء اوهبه اوداسی نورتبرعات دمریض دپاره حکم دوصیة لری:

فان ابرء المريض وارثا توقف الابراء على اجازة الورثة ولوكان الدين اقل من الثلث وان ابرء اجنبيا والدين يجاوز ثلث التركة توقف الابراء فی الزائد عن الثلث على اجازة الورثة لان الابراء تبرع له حكم الوصية ( الفقه الاسلامی ج۵ ص۳۳۲ وهكذافی المجلة مادة ۱۵۷۰ ) -

اومرض موت ودی ته وایي چې انسان هغه افعال چې پخوایی اجراء کول نشی اجراء کولای اومخ کی ترکال پوره کیدو موت وده ته راشی اوکه دده مرض په حال کی دتزاید اوتغیروی نودوخت څخه دشدة دده مرض اعتبارلری که څه هم تریوه کال دیر وخت وغواړی اوبعض

كسان داسی تعریف کوی چې مرض موت هغه دی چې غالبا موت پرمرتب وی او صحت یابی څنی نادره وی که څه هم بسترنه وی:
قیل مرض الموت ان لایخرج لحوائج نفسه وعلیه اعتمد فی التجرید بزازیة( الدرالمختار بهامش ردالمحتار ج۵ ص۴۶۷ وهکذافی الفقه الاسلامی ج۴ ص۱۳۴ والمجلة المادة ۱۵۹۵ قوله (والمختار انه ماکان الغالب منه الموت ) کذااختاره صاحب الهدایة فی کتابه التجنیس.
(ردالمحتار ج۵ ص۴۶۷ )والله اعلم وعلمه اتم



مولوی نذاحمد الحقانی مولوی احمد نوری عفی عنہ مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

**پر صلح بدل اخستل اومدعي عليه دانكار سره صلح كول څنګه دی**

پوښتنه چې بعضی مال پرچاثبوت سی اوهغوی بیادنورمال څخه انکارسی اوس پوښتنه داده چې ددغه انکاری مال څخه صلح کول جائزدی کیا؟ ② اخستل دبدل دصلح څنګه دی؟
والسلام( المستفتی عبد الغنی)

بسم الله الرحمن الرحیم

بعون الله العلی الاعلی
سره دانکار دمدعی علیه هم جائز اوروا ده لکه څنګه چې سره داقرار جائز اوروا ده کله چې صلح دری ۳ قسمه ده صلح سره داقرار صلح سره دانکار صلح سره دسکوت دری قسمه دصلحی جائزاورواوی نوکله چې صلح صحیح او جائز شوه پس بدل دصلح اخستل مدعی لره جائزدی په دروسره قسمودصلح کښی:
الصلح بثلاثة اقسام القسم الاول الصلح عن الاقرار وهو الصلح الواقع عن اقرار المدعی علیه القسم الثانی الصلح عن الانکار وهوالصلح الواقع عن انکار المدعی علیه القسم الثالث الصلح عن السکوت وهو الصلح الواقع عن سکوت المدعی علیه بان لایقرولاینکر (مجلة الاحکام المادة ۱۵۳۵) وهو فی اقسامه الثلاثة صحیح شرعا حتی ان المدعی یملک بموجبه بدل الصلح ولا یسترده المدعی علیه ویبطل حق المدعی فی الدعوی

( شرح المجلة لسليم باز اللبنانى ص۸۲۸ وهو جائز باقرار وسكوت وانكار لاطلاق ماتلونا وماروينا ومابينا من المعنى وبقوله عليه ا لصلوة والسلام كل صلح جائز فيما بين المسلمين الاصلحا احل حراما اوحرم حلالا (تبيين الحقائق ج۵ ص۳۰ ايضاً فى الفتاوى الكاملية ص۱۵۸ ومجمع الانهر ج۲ ص۳۰۸ ) والله اعلم بالصواب



مولوی احمد نوری عفی عنه مولوی نذاحمد الحقانی مولوی نورمحمد ثاقب دافغانستان دمرکزی دارالافتاء رئیس

**دپیسوپه مقابل دخپل میراث**

**له حق څخه ابراء بیله دعوی صحیح کیږی کنه ا وحکم دبیع لری کنه؟**

پوښتنه : ازطرف ریاست محکمه مرافعه کندهار برای محترم رئیس صاحب دار الافتاء السلام علیکم -المرام اینکه یک زن که ازحق وحصه پدری موروثی برای عم خود ابراء وتبراء درمقابل ......۱۶۶ آفغانی بعد بدون دعوی صحت دارد یانه همین حکم بیع دارد یانه معلومات برای مایان بدهید حواله کتاب هم تحریر دارید فقط

(ریاست محکمه مرافعه قندهار )

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون ملهم الصدق والصواب

داول سوال جواب ابراء ددعوی څخه ددغه موروثی مځکی چونکه ابراء بالعوض ده اوابراء بالعوض حکم دصلح لری نوځکه دا اویو چې بغیرله دعوی څخه دغه ابراء صحت نه لری ځکه چې صلح موقوفه ده پردعوی:

الابراء بعوض عند الحنفية هوصلح بمال( الفقه الاسلامی ج۵ ص۳۴۶ )الصلح علی ثلاثة اضرب صلح مع اقرار وصلح مع انكار وصلح مع سكوت ....... ووجه الانحصار ان المدعى عليه عنددعوى المدعى اماان يجيب لدعواه اولايجيب فان اجاب فلايخلو اماان يكون الجواب بالاقرار اوبالانكار فهو الضرب الاول والثانى فان لم يجب اصلا فهو السكوت وكل ذلك جائز عندنا ( لسان الحكام بهامش معين الحكام ص۱۵۳)-

اوکه ترمخه دعوی نه وه شوی اودابراء خط لیکل شوی وی نوداابراء هبة بالعوض ده لکه

زوجة چې ابراء دخپل مهر څخه وکی اوقصد یی عفوکول دزوج وی دمهر څخه نوفقهاء دلته ابراء هبه بولی ځکه چې عوام دمصطلحات فقهیه امتیازنشی کولاي مثلادهبه بالعوض څخه تعبیر په ابراء کوی اوهبة بالعوض چونکه یوتبرع ده هرڅوک یی هرځای کولای شی سبق ددعوی نه غواړی:

ففي الوقت الحاضر الذى لايميز فيه الناس بين المصطلحات الفقهية يمكن جعل الابراء تمليكا ويكون حكمه حكم الهبة( الفقه الاسلامی ج۷ ص۲۸۶ )

ددوهم سوال جوا ب لکه په اول جواب کی چې تیرشول چې دغه ابراء خط ۲ احتماله لری که تر مخه دعوی شوی وه وروسته د ابراء خط لیکل شوی وونودا ابراء چونکه حکم دصلح بالمال لری اوصلح بالمال په لاندی دول حکم لری که چیر ی دغه صلح سره داقراره دمدعی علیه شوی وه نوصلح حکم دبیع لری اوکه سره دانکار یاسکوت شوی وه نوحکم دمعاوضی لری دمدعی لپاره اوخلاصوالی دقسم څخه دی دمدعی علیه لپار ه اوکه دعوی نه وه شوی اوابراء خط لیکل شوی وونوداجکم دهبة بالعوض لری اوهبة بالعوض هبه وی په ابتداء که بیع وی په انتهاء کي:

اذاوقع الصلح عن اقرار على مال عن دعوی مال معین فهوفی حکم البیع (المجلة المادة ۱۵۴۸) الصلح عن انکار اوعن سکوت هوفی حق المدعی معاوضة وفی حق المدعی علیه خلاص من الیمین وقطع للمنازعة المجلة الماد ۱۵۵۰ واذاوقعت الهبة بشرط العوض المعین فهی هبة ابتداء .... بیع انتهاء ( الدرالمختار بهامش ردالمحتار ج۴ ص۵۷۹ وهکذافی بدائع الصنائع ج۶ ص۱۳۲ و الفقه الاسلامی ج۵ ص۲۹ )-

لکن په هبه بالعوض کی یوه خبره ضروری ده هغه داچې دغه مځکه چې ابراء ځنی شوی ده اوهبه شوی ده دابه دنوری مځکی څخه جلاکیږی اوپس دجلاکیدوبه بیاموهوب له ته تسلیمیږی اوهغه به یی قبض کوی ځکه چې هبه دمشاع صحت نه لری چې په وقت کی دقبض هم پرخپل مشاع والی پاته وی:

وهبة المشاع فيما يقسم لاتنفذ الابالقسمة والتسليم ( بدائع الصنائع ج۶ ص۱۲۱ ) فلاتصح عند الحنفية هبة المشاع اذاكان يحتمل القسمة كالدار والبيت الكبير وتكون الهبة فاسدة فان قسم المشاع وسلم جازت الهبة وهذاشرط صحة للهبة (الفقه الاسلامی ج۵ ص۱۴ )و الله تعالى اعلم بالصواب

# كتاب الوكالة

## آياوكالت وركول دمحكمي په حضور شرط دى

پوښتنه : چې موكلين يووكيل ته وكالت وركوى ددواړو حضور محكمى ته ضرورى دى اوكياهرځاى موكلين كولاى سى چې وكيل ته وكالت وركړى يعنى كه يوموكل وكالت وركړى په حضوردشاهدانو بيله محكمى څخه داوكالت صحي دى اوكيا ؟

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون ملهم الصدق والصواب

فقهاء په وكالة كى داشرط ندى ذكركړى چې موكل اووكيل به محكمى ته حاضرېږى بلكه دفقهاء دعباراتو څخه دامعلومېږى چې داشرط نه غواړى هرځاى كولاى سى چې يوڅوك بل سړى وكيل كى ولى بناء دوكالة پرفراخى اوسهولة اواسانى باندى ده اوله دى وجهى څخه اتحاد دمجلس دايجاب وقبول دوكالة شرط نه دى كيدلاي سى چې ايجاب نن وسى قبول دوكالة بله ورځ اوكيدلاسى چې يوڅوك غائب وكيل دروى:

اتحاد المجلس شرط فى جميع العقود ماعد اثلاثةالوصيةوالايصاءوالو كالة ...واما الوكا لة... فمبنية على التوسعة واليسروالسما حة فلايشترط فيها اتحاد المجلس لان قبولها قديكون باللفظ لقول اوبالفعل بان يشرع الوكيل فى فعل ماوكيل فيه ويصح فيها توكيل الغائب (الفقه الاسلامى ج۴ ص۱۱۳ هكذافى بدائع الصنائع ج۶ص ۲۰)-

(نوټ ) داول سوال دجواب په تفصيل كى بايدزياته كړو چې كله جانبين يوچاته ووايى چې زموږ مابين كى ته تقسيم وكه موږ به راضى يواوهغه هم تقسيم وكى نوداصلح ده يوه جانب لره بيادا حق نسته چې رجوع وكړى اووايى چې زه داتقسيم نه منم لكه ۱۵۵۶ مادة دمجلى چې وائى:

اذاتم الصلح فليس لواحد فقط من الفريقين الرجوع عنه والله اعلم

مولوى احمدنورى عفى عنه مولوى ندااحمدالحقانى

## وكيل ترعمل كولو وروسته معزوليږى اوكنه؟

پوښتنه :وحضورته دعلماء كراموددارالافتاء السلام عليكم ورحمة الله وبركاته دالله جل جلاله په حفظ كى اوسى ۲ نفراوياډير كسان چې يووكيل ته په خپله رضا سره وكالت

شرعی ورکړی دتقسیم دمعلومولود پاره یعنی دویش دمعلومید ولپاره نووکیل چې عمل وکړی

یعنی ویش معلوم کړی ترعمل وروسته موکل کولای سی چې وکیل معزول کړی ایاترعمل وروسته معزول کیدای سی اوکیا ؟اوکه معزول کیدای سی څوقدرزمانه وروسته معزول کید ای سی اوکه ګرسره ترعمل وروسته بیانسی معزول کیدای.

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون ملهم الصدق والصواب

وکیل چې خپل کاراوعمل پای ته ورسوی په محض پاي ته رسید لوسره دعمل خپله وکیل معزول کیږی ضرورت ودی ته نسته چې موکل یې عزل کړی:

طرق انتهاء الوکالة ۳ انتهاء الغرض من الوکالة وهوان یتم تنفیذ التصرف الذی وکل فیه لان العقد یصبح حینئذ غیرذی موضوع( الفقه الاسلامی ج۵ ص۱۲۶) یترتب علی الوکالة ثبوت ولایة التصرف الذی تناوله التوکیل (الفقه الاسلامی ج۵ ص۹۳)

*مولانا ندا حمد الحقانی مولانا احمد نوری عفی عنہ*

**وکیل دغائب پرخپل وکالت پاتیږی ترڅوچي خیانت پکي څرګندنشي**

پوښتنه ومحترم ددارالافتاء ریاست لوړمقام ته السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته امابعد څرنګه چې زه نیازمحمد دنورمحمد زوی دکندهارولایت د۲ناحیة اوسید ونکی دارنګه عرض وړاندی کوم رام تلوهندو په شیر سرخ کي ۴۰۰ انګوری جوی لری ټوله ئې وماته په تسلیم راکړی دی اودی وهندوستان ته کډه شوی دی مادغه باغ په اول کال وحافظ آغاته په روزنه ورکی ترکال وروسته هغه بیرته راپریښود مابیرته ومعلم عبدالغنی ته په شراکت ورکی چې نیمایي دهندواونیمایي زمااوستا هغه تر اوسه وماته یوه افغانی هم نه ده راکړی دباغ مالک خوزماڅخه غوښتنه کوی اودغه انګوری جووی ئې پرخپل سرخرابه کړی دی زه په خبرنه یم څکه چې دی وائي دغه باغ دهندودی ته هیڅ حق نه لری یودانه واټرپمپ او۳ خونی ماپکښی آبادی کړی دی ستاسو دمحترم حضور څخه هیله کوم چې زموږدموضوع په باره کی شرعی فتوی راکړی اوقومندانی ته ولیکی چې په دې باب کی اجراء ات وکی والسلام.

(مستفتی نیازمحمد ولد نورمحمد)

بسم اللّٰہ الرحمن الرحیم

الجواب بعون الملک الوهاب

هندوچې په وقت دخپل موجودیت کی نیاز محمد دخپل باغ متصرف تا کلی دی نوبیابل ځوک نسی کولای چې په وخت کښې دغیبوبت دهند ودنیا ز محمد دلاسه دغه باغ وباسی مګر کچیری دنیازمحمد خیانت ظاهر سی نو به قاضی دنیاز محمد څخه باغ اخلی اوبل ثقه امین سړی ته به ئې ورسپاری په(الفتاوی تنقیح الحامدیة ج۱ ص۳۳۹ )کښې راغلی دی:

فان العرف فیمابین الناس ان من اراد سفرا یؤکل غیره بقبض دیونه اوبقبض حقوقه علی الناس ویرید بذلک التوکیل بالقائم والحادث جمیعا حتی لایضیع شئ من حقوقه فلمکان العرف صرفنا الوکالة الی الکل وهذانظیر من وکل انسانا بقبض غلاته کان وکیلا بالواجب وبما یحدث وانصرفت الوکالة الی الکل لمکان العرف فان الناس فی عاداتهم یریدون بهذاالتوکیل القائم والحادث حتی لایحتاجون الی تجدید الوکالة فی کل زمان ولایقعون في الحرج

اوپه (ردالمحتار ج۳ ص ۳۶۰ )کښې راغلی دی:

نقل ابن المؤید عن جامع الفصولین لو اخذ القاضی ودیعة الفقود ممن هی بیده ووضعها عندثقة لا بأس به آه وهذایخالف مافی المعروضات الان یقال ما فیها هوفی حق امین بیت المال فلیس له ذالک وان کان المفقود لاوارث له الابیت المال لان الوارث حقیقة لیس له ذلک فامین بیت المال بالاولی ومانقلناه انما هوفی القاضی الذی له ولایة حفظ مال الغائب والظاهر انه محمول علی ماالذاءی المصلحة فی ذلک بان کان من المال بیده غیر ثقة والافهوعبث تأمل-

حاصل دادی چې ددغه باغ متصرف نیازمحمد دی که ئې تفویض دهندوونیازمحمدته په حجة شرعی ثابت وی اوغلات اوحاصلات به وده ته تسلیمیږی اومعلم عبد الغنی ته صرف خپل حصه ده واللّٰہ تعالی اعلم وعلمه اتم واکمل

مولوی نذاحمد الحقانی مولوی احمد نوری عفی عنہ

# کتاب الشفعه

## دکان شفعه لری اوکنه ؟

پوښتنه :جناب محترم دمرکزي دارالافتاء فاضل اودانشمند رئيس صاحب السلام عليكم محترمه زموږدسترې محکمې نمايندګۍ ته يوتعداد ښاري خلک راځي اوداتپوس کوي چې دکان شفع لرې که نه؟ موږيه خپل واردالازم وګڼل چې داکار رسمي شکل پيداکړي اوتاسو محترم په دې باب شرعي فتوي دلاندې ټکو په باب صادره کړئ (۱) که چيرې ددکان څنګ ياشاته کومه ځمکه خرڅيږي ددغه دکان مالک اويا کرايه نشين داحق شرعا لري چې دشفع دعوی ئې وکړي اوکه يا اوچې دوکان خرڅيږي دبل دوکان مالک حق لری کنه ؟ اميدواريوچې دخلګودمشکل دحل په منظورپورته معلومات راته راکړې ستاسو مهرباني او مرحمت به وي والسلام

(المستفتي خطيب دسترې محکمې نمايندګي مسئول)

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمدلاهله والصلوة على اهلها امابعد شفعه په هرهغه شئ کی چی نه نقل کيږي اوثابت دپارد استمراروی يعنی غير منقول وی لکه ځمکه ژرنده کوهي اوداسې نورشيان شته نوکه پرچا باندي بله خونه سربيره وه شفعه لری يعنی که سربيره خونه خرڅه شوه دلاندي صاحب حق دشفع لري اوکه لاندي خونه خرڅه شوه دسربيره خوني صاحب ئې حق لری که څه هم لاري سره جلاوي هم دارنګه که دري دوکانه څنګ پر څنګ لاري وعام لاري ته راوتلی وي يوه سړی لره پرڅنګ ددي دردوکانونودادري دوکانونه خرڅ شوه داڅنګ دوکاندارحق دشفع لری دلاندی مسئلو :

وشرطها ان يكون المحل عقاراالمراد بالعقار ههناغير المنقول فدخل الكرم والرحاء والبئر وان لم يكن طريقه فی السفل الخ (ج۵ ص۱۵۲من ردالمحتار ) لانه التحق بالعقار بماله عن حق القرار الخ ( الدر المختار على هامش ردالمحتار ج۵ ص۱۵۳ )(ومنها ) ان يكون المبيع عقارااوماهو بمعناه فان كان غير ذلک فلاشفعة فيه عندعامة العلماء سواء كان العقار مما يحتمل القسمة اولايحتملها كالحمام والرحی والبئر والنهر والعين والدور الصغار (الفتاوي الهندية ج ۵ ص ۱۶۰ )وعن محمد رح حوانيت ثلاثة يلی بعضها بعضا وباب كل واحد الی الطريق الا عظم ولرجل الی جنب حانت منها حانوت فبيعت الحوانيت الثلاثة فله ان يأ خذ بها وهی كالبيوت فی داړواحدة(

بزازيه بهامش الهندية ج ۶ ص۱۵۹)

اودسرقلفی والاکه همیشه ددوکان مستحق شی په شفعه کي اختلاف دی بهتره داده چې حق دشفع نه لري په قرار دلاندی مسئلی:

بقی لوکان الخلو بناء اوغراسا بالارض المحتكرة اوالمملوكة يجرى فيه حق الشفعة لانه لما اتصل بالارض اتصال قرار التحق بالعقار آه قلت ذكره من جريان الشفعة فيه سهو ظاهر لمخالفته المنصوص عليه فى كتب المذهب كما سيأتى فى بابها ان شاء الله تعالى (ردالمحتار ج۴ ص۱۹ والله اعلم)

**دفضولي په بيع كي دعوى دشفعي صحت نه لرى ترڅوچي مالک اجازه ونکړى**

پوښتنه : ددارالافتاء رئيس صاحب دحاجي وزير محمد اوعبد الله موضوع تاسوته راجع سوه دپوره څېړنی وروسته به تاسی خپل نظر او فيصله موږته راوليږی. والسلام ۶-۸- ۱۳۷۵

(امير المؤ منين مجاهد ملا محمد عمر)

هو الله المستعان

دافغانستان داسلامی دولت محترم عالی قدر اميرالمؤمنين ته السلام عليكم ورحمة الله و بركاته جناب فضليت ماب تاسوچې موږته دحاجي عبد الله اوحاجی وزير موضوع راليږلی وه هغه موږته په ۲۸ – ۸-۱۳۷۵ راتسليم شوه زموږ دمرکزی دارالافتاء علماء دغور لاندی ونيوله ترڅيړنی روسته موږ چې کوم مطلب ته ورسيدو هغه داده چې په فيصله کښې ذکرشوی دی چې بائع هندووه لکن معلوم نه ده چې کوم هندووه خوحاجی وزير وايي چې هغه هندو نندلال وه دبگوانداس زوم په دوسيه کښې خودير اوږد جريان ذکرشوی خوموږ به يوه نوی خبره پکښې وکړو هغه داچې نندلال چې زوم دبگوانداس ده هغه خوپه ميراث دبگوانداس کښې حق نه لری اودغه نندلال دحاجی وزير سره بيع په وکالت دورثه دبگوانداس هم نه ده کړی څکه چې دنن دلال يواقرار خط پروت ده په دوسيه کښې چې دسفارت مهرهم پری لگيدلی هغه ويلی چې ورثه رضايت ونه ښوده اوحاضر نشول چې دابيع ومنی نوکله چې دابيع بلاوكالت شوی ده نوبيع دفضولی بلل کيږی اوپه بيع دفضولی کښې دعوى دشفع نه صحيح کيږی ترڅو اصل مالک اجازه ونکړی لکه چې په الدر المختار على هامش ردالمحتار کښې په ج۵ ص۱۵۴ کښې وايی؛

وتجب بعد البيع ولو فاسد انقطع فيه حق المالک...آه

اوپه مجلة مادة ۱۲۶ کښی وايي:

يشترط ان يزول ملک البائع عن المبيع:

نو ظاهره داده چې دلته شفع نشته بل خواته شفيع دخپلی شفع داثبات دپاره هم ډیر څه ویلی دی البته مونږ مصلحت اومناسب دابولو چې کچیری امیر المؤمنین مدظله العالی په خپل صلاحیت او اختیار سره دادواړه دتمیز فیصلی معطله کړی ترهغی چې ټول جوانب حاضر شی او حالت روښانه شی بیاپه امردامیر المؤمنین جدیددابتداء څخه داموضوع په جریان کښي واچول شی دابه دجنجال په ختمولو کښی مؤثر واقع شی.

مولوی عبدالحکیم عفی عنه ۱۳-۹-۱۳۷۵ مولوی احمد نوری عفی عنه مولانا عبدالله مولانا زمان شاه مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء امارت اسلامی افغانستان

**دشفعي په دعوى كي كه مدعي عليه حاضرنشي دمدعي په جانب فيصله څنګه ده؟**

پوښتنه : وحضورته د محترم رئیس صاحب دارالافتاء یونفرپه نامه عطاء الله اوبل په نامه داسدالله نومیږی چې دګل اغاڅخه مځکه رانیولی ده تقریبا ۲۰ خرواره مځکه ده نوزه حاجی نصرالله اوبل حاجی خان بل آیات الله بل حاجی عبدالکریم نومیږو موږ په دغه ورځ چې خبرسو دشفع دعوی وکړه نوموړی عطاء الله اواسد الله نامي زموږڅخه وتښتیده کابل ته ځان نه حاضروی نوموږ دنوموړی پلار حاضرکی او ۲۰ ورځی موږ وخت ورکړی او پلار هم حاضرنکړه اودست برداره سوه بیاموږ په رادیو کی اعلان وکړی اوس غواړو چې دغه مځکه موږته تسلیم اوقیمت وحکومت ته ورتسلیم کړی یاڅنګه وکړو؟ ستاسوڅخه افتاء غواړو په ډیر احترام

(محکمه عدلیه د ډند ابتدائیه قاضی دوست محمد و ملامحمد خان)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون الملک الوهاب محترمو مستفتیانو تاسو په استفتاء کی داسی لیکلی دی چې هغه ورځ چې موږ دشفع دعوی وکړه عطاء الله اواسد الله زموږڅخه وکابل ته وتښیتدل اوس غواړو چې موږته مځکه راتسلیم شی او قیمت وحکومت ته ورتسلیم کړو د شریعت منوره له مخی تاسو حق نه لری ترڅوچې مدعیان علیهما حاضرشی اوبیا ملامت

شی قاضی حکم پرو کوی بیا حق د تسلیم لری ځکه چې پر غائب حکم نه کیږی:
ولایقضی علی غائب ولاله اي لایصح (قوله ولا يقضی آه) ای بالبینة سواء کان غائبا وقت الشهادة اوبعدها وبعد التزکیة وسواء کان غائبا عن المجلس اوعن البلد وامااذااقر عند القاضی فیقضی علیه وهو غائب لان له ان یطعن فی البینة دون الاقرار( قوله ای لایصح )لما فی الفتح من ان حضرة الخصم لیتحقق انکاره شرط لصحة الحکم ( ردالمحتار ج۴ ص ۳۷۳ )۔
او هغه عبارت چې په درمختار کی لیکلی دی:
و لوقضی علی الغائب بلانائب ینفذ وقیل لا :
**هغه دهغه قاضی حکم ده چې قضاء پرغائب صحیح بولی لکه چې تفسیریي کړی ده :**
اي قضی من یری جوازه کشافعی لاجماع الحنفیة علی انه لایقضی علی غائب( ردالمحتار ج۴ ص۳۷۶) والله تعالی اعلم



مولوی عبدالحکیم عفی عنہ مولانا زمان شاہ مولانا عبداللہ مولوی نور محمد ثاقب رئیس دار الافتاء دولت اسلامی افغانستان

## دشفیع ترمرگ وروسته وارث حق ددعوی لری کنه؟

پوښتنه : دعبد الصمد دنظرمحمد دزوی دپنجوایي داوسیدونکی غوښتن لیک دتمیز دعلماء کراموحضورته السلام علیکم ورحمةالله وبرکاته عالیقدروپنجوایي کی پلار محمد انور دملک دشفع دعوی کوله اوس دغه پلاروفات سو دهغه زوی میرحمزه غواړی چې دعوی وکړی زه په دی هکله ستاسو عالیقدر رودحضور څخه مسئله غوارم چې زوی ئې ددعوی حق لری او که ئې نه لری ؟

بسم الله الرحمن الرحیم

نحمده ونصلی علی رسوله الکریم الجواب ومنه الصدق والصواب
کله چې شفیع مړشی دبیع څخه وروسته اومخکی تراخستلو دهغی مخکی یاسرای چې شفیع یی په شفعه باندي اخلی په مذهب داحنافو رحمهم الله دهغه وارث حق داخستلو په شفعه سره نه لری که چیری قاضی قضاء په شفعه سره د شفیع لپاره نه وه کړی ورنه حق دشفعی وارث لری:

اذامات الشفيع بعدماقضى القاضي له بالشفعة قبل ان يقبض الدار وقبل اوينقد الثمن كانت الدار لورثة الشفيع لان قضاء القاضي بالشفعة بمنزلة البيع ....واذامات الشفيع بعد البيع قبل ان يأخذ بالشفعة لم يكن لوارثه حق الاخذ بالشفعة عندنا( الهندية ج٥ ص١٩٨) ويبطلها موت الشفيع قبل الاخذ بعد الطلب اوقبله ولاتورث خلافا للشافعي ولومات بعد القضاء لم تبطل( الدر المختار )( قوله يبطلها موت الشفيع الخ ) لانها مجردحق التملک وهو لايبقى بعدموت صاحب الحق فكيف يورث (قوله ولومات بعد القضاء لاتبطل ) لما تقدم متنا انها تملک بالاخذ بالتراضي وبقضاء القاضي (ردالمحتار ج٥ ص١٧٠)

مولوی عبدالحکیم عفی عنه مولوی نذاحمد الحقانی مولانا محمود میوندوال مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دار الافتاء دولت اسلامی افغانستان

## دشفيع دځمکې سره متصله ځمکه که بائع ومشتري ته وبخښي نو ....

پوښتنه :کله چې محمدزی پرما ځمکه خرڅول ١٠ منه تخم ریزه ځمکه ئې زماپه خوارئ کې په بخښنه راکړل هغه ١٠ منه دمحمد انور سره وبغل ته دی اوهغه بله خوائې راباندی خرڅه کړل اوس ددی مسئله راکړی چې دشفع دعوی ئې صحیح کیږی کنه؟

(المستفتی عبدالصمد)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون الملک الوهاب

په مذکوره صورت کی دمحمد انور دشفعی دعوی د محمدزی پرمځکه پرمشتری د عبدالصمد باندی صحت نه لری ځکه ١٠ منه تخم ریزه مځکه دمحمد انور سره متصل د محمدزی له طرفه وعبدالصمدته په هبه باندی ورکول شوي ده دهبی څخه وروسته يي باقی حصه پرخرڅه کړی ده نوپه دی صورت کي د ارض مشتراة اتصال دعبدالصمد دځپلی موهوبی مځکی سره سته د محمد انوردمځکی سره اتصال نشته :

(ومن جملة ذلک) ای ومن جملة الحيل لمنع وجوب الشفعة ان يبين موضعامن الدارويخط خطا ويتصدق عليه بذلک الموضع بطريقه اويهبه ذلک الموضع بطريقه ثم يشتری بقية الدارفلايثبت حق الشفعة للشفيع وانما قال يخط خطا کی لاتكون هذه هبة المشاع فيما يحتمل القسمة وانمالايكون

فی هذه للشفیع حق الشفعة لان المشتری صار شریکا والشریک مقدم علی الجار وانما شرط ان یتصدق علیه بطریقه لانه اذالم یتصدق بطریقه صارالمتصدق علیه جاراللدار المشتراة فلایتقدم علی الجار غیران هذه الحیلة انماتکون حیلة لابطال حق الجار لالابطال حق الخلیط( الهندیة ج۶ ص۴۲۲ )

وان باع رجل عقار االاذراعا مثلافی جانب حد الشفیع فلا شفعة لعدم الاتصال وکذالاشفعة لووهب هذا القدر للمشتری وقبضه ( قوله لووهب هذا القدر ) ای الذراع مثلا والظاهر ان المراد وهبه بعد بیع ماعداهذاالقدر بقرینة قوله للمشتری ....ویحتمل ان الهبة قبل البیع الخ (ردالمحتار ج۵ ص۱۷۱ )والله اعلم بالصواب

مولوی ندامحمد الحقانی مولانامحمود میوندوال مولوی عبدالحکیم عفی عنہ مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء دولت اسلامی افغانستان

**په ځمکه کې دخپل حق ددعوی ګټلو وروسته په پاتې ځمکه دشفعې دعوی کول**

پوښتنه زه بی بی روزی ګله چې خپل میراثی ملک اوجائداد می دخپلو ماما ګانو څخه په لاندی ډول جلاکړی یو باغ چې زماماما ګانو زماپه غیاب کی بغیرله اجازی څخه خرڅ کړی وو اوزه هم په دی باغ کی شریکه وم اومشتری زمادحق دراکولو څخه منکروو کله چې خبره شریعت ته شوه نوماخپل حق پیداکړ او بیامی دبائع اومشتری په حضورکی خپله حصه جلا کړه ماته له حق سپارلو څخه وروسته مادستی دشفعی دعوی وکړه اومشتری ته می وویل چې زه خوپه اوبو لښتی اودباغ په هرحساب کی شریکه یم ځکه زه یووارثه یم اوته غیر سړی یی نوزه شفیع یم اودباغ دغه نوره حصه زماپه شفع ده تاته ئې نه درکوم مشتری راته وویل چې ستا شفع حق نکیږی ولی تاپخوادشفعی بڼغ نه دي کړی ماورته وویل چې پخواماخپل حق نسوژوندی کولای ماڅه بڼغ کړی وای نواوس سوال دادی چې زه شفع پیداکولای شم اوکیا؟

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون ملهم الصواب

په شفع کی طلب مواثبت شرط دی طلب مواثبة دادی چې شفیع په بیع ددغه زمکی چې دی یې شفیع دی خبرشی په دغه مجلس کی دعلم طلب دشفع وکی حتی که دغه شفیع په دغه زمکه کی دعوی درقبی اودشفعی ددواړوکول دواړی دعوی به په یوه کلام کوی اوکه ئې اول دعوی دملکیت درقبی وکړه وروسته ئې دعوی دشفع وکړه نوئې دعوی دشفعی نه صحیح کیږی اوس نوحکم دادی کچیری دغه بی بی روزیگله په هغه وقت کی چې په بیع دباغ خبره شوه دعوی دخپل حصی اودشفعی په دغه نورباغ کی کړی وی نوئې دعوی د شفعی صحیح کیږی اوکه ئې محض خپل دحصی دعوی کړی وه نوئې شفع ساقط ده:

یلزم الشفیع ان یقول کلامایدل علی طلب الشفعة فی المجلس الذی سمع فیه عقد البیع في الحال کقوله اناشفیع المبیع اواطلبه بالشفعة ویقال لهذاالطلب طلب المواثبة (مجلة الاحکام المادة ۱۰۲۹) ولو بیعت دار بجنب داررجل هوشفیعها وهویزعم او رقبة الدار المبیعة له وهو یخاف انه اذاادعی رقبتها تبطل شفعته وان ادعی فیها تبطل دعواه فی الرقبة فیقول هذه الداردار ی وانا ادعی رقبتها فان وصلت الیها والاانا علی شفعتی لان الجملة کلام واحد فلایتحقق السکوت عن طلب الشفعة غمز عیون البصائر شرح الاشباه والنظائر ج۳ ص۱۹۱ وهکذافی طحطاوی علی الدرالمختار ج۴ ص۱۳۱) والله اعلم وعلمه اتم واحکم

مولوی عبدالحکیم عفی عنہ مولوی احمد نوری عفی عنہ مولانا محمود میوندوال مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء دولت اسلامی افغانستان

**په بیع فاسد کي ترهغو شفعه نه صحیح کیږی ترڅوحق دفسخ ساقط شي**

پوښتنه: زه حاجی عبدالله جان یوه پوښتنه لرم هغه داده چي محمد هاشم نامی یوسرای رانیوو د فیض الله څخه په دي شرط چې مسجدته وقف کړی مائې دشفیع دعوی وریاده کړه محمدهاشم ئې جواب راکړچی دغه سرای دپاره دمسجد شریف دضرورت دپاره رانیسم دغه سرای محمدهاشم رانیوی قباله ئې دمسجد دملاامام په نام جوړه کړه ووسته ترقبالی ئې اقرار دوقف نویشته کړی چی دسرای دعوی نه زه کوم نه ئې زما اولادکوی وروسته

حاجی خیرو جان نامی راغلی چې زه ئې شفیع یم او شفعه په مشترک ځای سره کوی په نام دشفیع دغه قباله ئې دمحمدهاشم څخه واخیسته قیمت ئې ورکړی اومونږ مسجد وال ئې هم شفیع یو نوشرعی حکم څه ده ؟

بسم الله الرحمن الرحیم

که بیع په مابین دمحمدهاشم اوفیض الله په شرط دوقف دمسجد سوی وی بیع ئې فاسدده په بیع فاسد کی ترهغه پوری شفعه نسته چې حق دفسخ نه وی ساقط سوی په بناء سره دمشتری یاپه بیع یاغیره چې په فقهه کي ذکر سوی دی اوکه پدغه بیع کی دغه مذکور شرط نه وي بیع بیاصحي ده شفعه دشفیع پکي سته چې په صحي شرعی طلبات سره مسبوق وی اګرچې وقف کول دمځکی وروسته تربیع وی بلکه شفیع حق دشفع لری اووقف نقض کیږی هرچی شفع دحاجی عبدالله جان اودده دشریکانو ده هغه ساقط ده ځکه چې طلبات ئې پر وجه شرعی نه دي کړی هرچی بیع په شرط دوقف دمسجد فاسدده ځکه په ردالمحتار کی راغلی دی؛

وکذا اذاکانت المنفعة لغیر العاقدین ومنه اذاباع ساحة علی ان یبنی بها مسجداا وطعاما علی ان یتصدق به فهو فاسدا ه( ردالمحتار ج۴ ص۱۳۷ وهکذافی فتح القدیر ج۶ ص ۷۸)

هرچی عدم شفعه په بیع فاسدکی ترهغه وخت چې حق دفسخ ئې ساقطیږی ځکه په هندیة کی راغلی؛

ولاشفعة فی الشراء الفا سد سواء کان المشتری مما یملک بالقبض اولایملک وسواء کان المشتری قبض المشتری اولم یقبض اه( الهندیة ج۵ ص۱۶۴ وکذافی المجلة المادة ۱۰۶۶ )فی الکاملیة ص ۲۲۰سئلت عمن اشتری ارضا شراء فاسدا هل تثبت فیها الشفعة فالجواب لاتثبت فیها الشفعة ففی منح الغفار اذااشتری دارا شراء فاسد ا فلاشفعة فیها اما قبل القبض فلبقاء ملک البائع فیها واما بعده فلاحتمال الفسخ لان لکل من المتبا یعین سبیلا الی فسخه ولم یسقط فسخه فان سقط فسخه بان بنی المشتری فیها وجبت الشفعة...آه

هرچی وقف کول شفع نه ساقط وی ځکه په الدرالمختار کی راغلی:

کما ینقض الشفیع جمیع تصرفاته فی المشتری حتی الوقف والمسجد والمقبرة والهبة (زیلعی وزاهدی ) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ج۵ ص۱۶۴ )وفی الکاملیة ص۲۱۸ سئلت عمن اشتری ارضا فبنی فیها مسجدا اووقفها ولها شفیع هل له الاخذ بالشفعة وهدم المسجد وابطال

الوقف فالجواب نعم قال الکفوی سئل عمن اشتری ارضا فبنی فیها مسجداووقفها ولها شفیع هل له الاخذ بالشفعة ویهدم المسجد اجاب نعم له الاخذ ویومر البانی بالهدم ابن نجیم فی الشفعة اه

هرچې سقوط دشفعې دحاجي عبدالله جان دی ځکه چې مجلة کی راغلی دی ان اخر الشفیع طلب المواثبة مثلالووجد فی حال یدل علی الاعراض عنداستماعه عقد البیع ولم یطلب الشفعة فی ذالک المجلس بان اشتغل بامرآخر وبحث صددآخر اوقام من المجلس من دون ان یطلب الشفعة یسقط حق شفعته آه( المادة ۱۰۳۲ )وفی مجمع الانهر وتبطل الشفعة بترک طلب المواثبة اوطلب التقریر حین علم مع القدرة علیهما لانها تبطل بالاعراض وترک الطلبین اواحد هما دلیل الاعراض آه( ج۲ ص۴۸۳ )والله اعلم-

**هرچي شفعه په سبب د مشترکه مشاع مځکې ده یعنی دهغه مځکې چې شفیع په سبب ددغه مځکې دعوی دشفع کوی هغه مشترکه په مابین کی دشفیع اودنوروکسانووی دشفیع شفعه په سبب ددغه مځکې صحي کیږی ځکه په تبیین الحقائق کی راغلی دی؛**

وکذالوکانت داربین رجلین ولاحدهما فیها بئر مشترکه بینه وبین آخر غیر شریکه فی دار فباعها کان الشریک فی الداراولی بشفعة الدار لانه شریک فیها والاخر جاروالشریک فی البئر اولی لانه شریک فیها والاخرجارآه (ج۵ ص۲۴۱ )والله تعالی اعلم

وفی الخانیة علی هامش الهندیة (ج۳ص ۵۳۶ )واذابیعت الدار بجنب دار مشترکة بین رجلین کان لکل واحد من الشرکین فیها الشفعة وتسلیم احدهما للشفعة یصح فی حق نفسه دون صاحبه ...آه

مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دار الافتاء دولت اسلامی افغانستان مولوی عبدالحکیم عفی عنہ مولانااحمد نوری مولانازمان شاہ مولاناعبداللہ

# کتاب المزارعة

## دمزارعة په هکله دارغستان دعلماء کراموځومهمي مسئلي

دغه مسائل چې په ارغسان کښی علماء ترتیب کړی دهغه ځای دولسوال ملاحاجی محمد اخند لخوادافغانستان مرکزی دارالافتاء ته تقدیم شوی ترڅوئې تصویب یاتردید وکړی دارغستان دولسوالی دمسئولینو لخوا دارغستان دولسوالی وټولو اوسید ونکوته خبر ورکول کیږی چې دغه یو څو مسئلې چې ډیری ضروری دی اودو لسوالی دجیدواومشرانو

علماء په اتفاق سره فيصله سوی اوترتيب کړه سوی ضرور بايد ومنی اوهغه رواعملی اودهغه ناروا څخه پرهيزوکړی که چيری دغه دعلماء دفيصلواوحکمونو مخالفت وکړی شرعی جزاء به ورکره سی

(۱) په ترکتوراوتريشل ډاک کوټل په يوحصه دهغه دغنمو جائزاوروانه ده بايد په پيسو ساعت واره اويا په ټيکه وکړل شی

(۲)لوی دهرکښت په يوحصه دهغه کښت غير جائز اوناروا ده بايد په پيسو او مثلی شيانو وکړل شي

(۳) کاريز کارول په يوڅوشباروزو ددغه کاريز غير جائز اوناروادی بايد په پيسو يامثلی شيانو وکړل شي

(۴) خرابه مځکه جوړول په منافع اوکښت ددغه مځکی غير جائز اوناروادی بايد په پيسو اويامثلی شيانو وکړل شی

(۵) دزراعت دری قسمه روادی هغه داچی (الف) مځکه ديوه وی تخم غويی اوعمل دبل وی (ب) اويا عمل ديوه وی هغه نوردری دبل وی (ج) اويا مځکه وتخم ديوه اوغويی وعمل دبل وی اوغير جائز څلور قسمه دی (الف) مځکه اوغويی ديوه تخم اوعمل دبل (ب) ياغويی وتخم ديوه هغه نوردوه دبل (ج) ياغويی ديوه اوهغه نوردبل (د) اوياتخم ديو ه هغه نوردبل نوبايد هغه روادری قسمونه عملی اوهغه نارواڅلورقسمه څخه پرهيزوکره سي

(۶) پرپاخه کښت بزګردرول په يوحصه دهغه کښت غيرجائز اوناروادی بايدپرهيزځنی وکړه شي دحکم کونکوعلماء کرامونومونه اولاسليکونه په لاندی ډول دي:

مولوی عبدالکريم صاحب–مولوی مولاداد صاحب–مولوی عبدالرزاق صاحب–مولوی عبدالولی صاحب – مولوی محمودصاحب –مولوی جمعه ګل صاحب مولوی خدای نظر صاحب – مولوی عبدالرشيد صاحب – مولوی عبدالصمد صاحب – مولوی محمد الله صاحب – مولوی عبد الحي صاحب – مولوی نعمت الله صاحب –مولوی عبدالغفور صاحب حاجی بابا قاضی محکمه ارغسان( دولسوالی ملاحاجی محمد اخند لاسليک)

بسم اللّٰه الرحمن الرحيم

الجواب حامدا ومصليا

والمسئلة الاولى والثانية والثالثة والرابعة عندنا قابلة للنشر ومثلها ان يدفع رجل ارضا الى آخر ليغرس اشجار امثل الكرم اوغيزه على ان تكون الارض والشجر بينهما نصفين وهذامروج فى بعض القراء والحال انه غير جائز في البحر الرائق ج۸ ص۱۱ وفى المحيط دفع ارضه لرجل ليغرس اشجارا على ان تكون الارض والشجر بينهما نصفين لم يجزو الشجر لرب الارض وعليه قيمة الشجروله اجرما عمل الخ وهكذافى الخانية على هامش الهندية ج۲ ص۳۳۱ ) والمسئلة الخامسة عندناصحيحة ذكرت فى شرح المجلة للاتاسى با لتفصيل الكامل ج۴ ص۳۷۸) والمسئلة السادسة مطابقة لعبارات الفقهاء والنقول فيها موافقة لمراجعها واللّٰه اعلم



مولوی عبدالحکیم عفی عنہ مولوی نذاحمد اسحاقی مولوی محمد اخلاص برکتی مولوی احمد نوری عفی عنہ مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء دولت اسلامی افغانستان

## دغيني موادود قرار داد په سپارلویو فیصدی کته اخستل څه حکم لری؟

پوښتنه : دتمیز دریاست ولورمقام ته السلام علیکم ورحمة اللّٰه وبرکاته محترمه! دکرنی اومالداری ریاست دکمیاوی کود ادویه جات حیوانی اوزراعتی کوچنی ماشین آلات خرڅول اواردول ئې دحاجی محمد نسیم دحاجی نظر ګل دزوی سره قرارداد کړي دی چې تول بودجه ئې دحاجی محمد نسیم لخوا دری فیصد کته دبزګرانو څخه واخلی اویو فیصد ئې دکرني وریاست ته ورکوي دغه موضوع ستاسی حضورته په عرض ورسیده هیله ده چې ومونږته هدایت راکړی چې دغه یوه فیصد کته چې ومونږته راکوی جواز(روایت) لری که څنګه ؟بااحترام. (ملامحمدصادق اخند دکرنی دریاست مرستیال )

بسم اللّٰه الرحمن الرحيم

په استفتاء کښی دري پوښتنی معلومیږی یوه صراحتاًاودوه ضمنا صریحی پوښتنه داده چې دغه یوفیصد کته چې دحکومت دکرنی ریاست ته ورکوی آیاصحت لری اوکنه اوضمنی یوه پوښتنه داده چې محمدنسیم باندی دااینبودل شوی ده چې صرف دری فیصده کته دبزګرانو څخه واخلی نه زیاته اوبله ضمنی پوښتنه داده چې دا قرار داد دحاجی

محمد نسیم سره شوی اوبل څوک نشی کولای چې دغه مالونه وارد کړی دحکومت لخوابندیزده ورباندی نوجواب داولی پوښتنی داده چې دغه یوفیصد ګټه چې دکرنی ریاست ته ورکول کیږی صحت اوجواز نه لری ځکه دامال دجملی دحلال مال څخه نه ده په( شرح المجلة للاتاسی ج۶ ص۴۲ او ج۶ ص۴۳) کی اول دحلال مالونوبیان کړی چې هغه دادی چې دامال ورته په میراث کي پاتی وی اویاورته په معدن کي لاس ته ورغلی وی اویاپه غنیمة کي اویا فیئ وی اویا په بیع کي لاس ته ورغلی وی اویاپه مهرکښی وی اویااجرة وی اویاورته چا هبه کړی وی اویا صدقه وی اویائې په ښکار ( اصطیاد ) سره حاصل کړی وی اویا ئې په غره کښی بوټی کړی وی:

وغیرذالک اوبیائې ویلي فهذه فجامع مداخل الحلال وماسوی ذالک فحرام لایجوز اکله وکذا اذاکان من هذه الجهات وصرفه الی غیر المصارف الشرعیة کالخمر والزمر والزنی واللواطة والمیسر والسرف المحرم وکل هذه الوجوه داخلة تحت قوله سبحانه ( لاتأکلوا اموالکم بینکم بالباطل )

اوبل داده چې داعقد فاسددی اوهرعقد فاسد ربا (سود) بلل کیږی په البحرالرائق ج۶ ص۶۸ کښی لیکلی دی:

ان کل عقد فاسد فهو ربا ...الخ

اوجواب ددویمی پوښتنی چې حاجی نسیم باندی دااینبودل شوی چې صرف دری فیصده ګټه دبزګرانو څخه به اخلي نه زیاته نودانرخ مقرره ول اویوخاص مقدار ګټه اینبودل دطرفه دحاکم څخه هغه وقت صحیح کیږی چې تجاران تعدی اوتجاوز اوزیاتی کوی لکه په دوچند قیمت ئې خرڅوي اوداعام ده په مواد خوراکیه کښی وی اوکه غیر خوراکیه کی:

(ولایسعر حاکم) لقوله علیه الصلوة والسلام لاتسعروافان الله هو المسعر القابض الباسط الرازق ( الااذاتعدی الارباب عن القیمة تعدیا فاحشا فیسعر بمشورة اهل الرای وافادان التسعیر فی القوتین لاغیر وبه صرح العتابی وغیره لکنه اذاتعدی ارباب غیر القوتین وظلموا علی العامة فیسعر علیهم الحاکم بناء علی ماقال ابویوسف ینبغی ان یجوزذکره القهستانی فان ابایوسف یعتبر حقیقة الضرر کماتقرر فتدبر (قوله بناء علی ماقال ابویو سف ) ای من ان کل ماا ضر بالعامة حبسه فهواحتکار و لوذهبا اوفضة اوثوبا قال ط وفیه ان هذافی الاحتکار لافی التسعیر ...آه قلت نعم و لکنه یؤخذ منه قیاسا اواستنباطا بطریق المفهوم ولذاقال بناء علی ماقال ابویوسف ولم یجعله قوله

تامله على انه تقدم ان الامام يرى الحجر اذعم الضرر كما فى المفتى الماجن والمكارى المفلس والطبيب الجاهل وهذه قضية عامة فتدخل مسئلتنا فيها لان التسعير حجر معنى لانه منع عن البيع بزيادة فاحشة وعليه فلايكون مبنيا على قول ابى يوسف فقط كذاظهر لى فتامل (الدرالمختار وردالمحتار ج۵ ص۲۸۴ )اوجواب ددریمی پوښتنی چې داقرارداددحاجی نسیم سره شوی اوهرچاته اجازه نشته چې دامالونه واردکړی دحکومت لخوابندیزده نودامسئله دانحصارده چې حکومت په بعضی شیانوکښی انحصارات وضع کوی اوهرچاته په دی شیانوکښی اجازه نه وی نوکه چیری په انحصاراتوکي فائده عامه وی ملت ته اودفع دعام ضرروی دملت څخه نودغه عمل بیا جائزده که څه هم یوه اندازه حجر دتجارانو پکښی راځی په تبیین الحقائق ج۵ ص۱۹۳ کي لیکلی دی:حتی لوکان فی الحجر دفع ضرر عام یحجر علیه عنده وذالک کالحجر على المتطبب الجاهل...الخ–اوتصرف دامام پررعیة باندی دپاره د مصلحت جائزدی چې مخالف دشرع نه وی په الاشباه والنظائرد ابن نجیم کښی په ۵ قاعده کي دنوع ثانی دقواعدو ص۱۲۳ کي لیکلی: تصرف الامام على الرعية منوط بالمصلحة اوهمدارنګه په مجلة الاحکام مادة ۵۸ کښی لیکلی التصرف على الرعية منوط بالمصلحة والله اعلم بالصواب

مولوی محمد اخلاص برکتی مولوی احمد نوری عفی عنہ مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دار الافتاء دولت اسلامی افغانستان

# كتاب الحجر

## دانحصاراتوله لوری پرځيني موادوکنترول لګول څنګه دی؟

پوښتنه : ددارالافتاء محترم عالی ریاست ته السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته څرنګه چې دظاهر داؤد په وختونوکی ددولت مقرراتوسره سم دانحصاراتو ریاست پرتنباکو بوری تیلو اوداسی نوروشیانوباندی کنترول درلوداودهغوی بیله مشوری اوموافقی څخه به اجراات نه ترسره کیدل موږ اوس پورته اجراات شاید ترسره کړو په دی هکله ستاسو محترمو علماء کرامو فتوای غواړو والسلام . (ملامحمدحسن رحمانی دکندهاروالی)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون الملک الوهاب

کچیری په انحصاراتوکی عام فائده وی و ملت ته اودفع دعام ضرروی نودغه عمل دانحصاراتو جائزدی که څه هم یو اندازه حجرد تجارانو پکښی راځی په تبیین الحقائق ج۵ ص۱۹۳ کی په بیان دحجردعاقل بالغ اودمبذرکی وایی :

ولان فی حجره الحاقه بالبهائم واهدارالادمية وهو اشد ضررا من التبذير ولايتحمل الاعلى لدفع الادنى حتى لوكان فی الحجر دفع ضررعام يحجر عليه عنده وذالک كالحجر على المتطبب الجاهل الخ

اوتصرف

دامام پررعایت باندی دپاره دمصلحت جائزدی په الاشباه والنظائر اوپه مجلة مادة ۵۸ کی وایی: التصرف على الرعية منوط بالمصلحة...آه

دغه حجر دتجارانو په واقع کی دباب دامربالمعروف دی لکه حجر دطبیب جاهل اومفتی ماجن اومکاری مفلس علامة کاسانی رحمه الله په بدائع الصنائع ج۷ ص۱۶۹ کی وایی چې منع ددغه دروکسانودباب دامربالمعروف اونهی عن المنکرده دباب څخه دحجر نه ده نود مذهب سره دامام ابوحنیفه رحمه الله تعالی مخالفت نه لری حاصل دادی چې باید دحکومت لخوایوهیئت دمتدینوکسانو اودماهرانو ددغه کار مقرر کړی شی چې هغه کسان نفع اوضرر لحاظ کړی چی دامعلوم سی چې په انحصاراتوکی نفع عام اودفع دضررعام شته وروسته دی دغه عمل ترسره شی لکه په باب کی دنرخ ابینولو په درمختار ج۴ ص۱۶۱ کی وایی:

ولا ينبغي للسلطان ان يسعر على الناس الا ان يتعدى ارباب الطعام تعديا فاحشا فی القيمه فلابأس بذالک بمشورة اهل الخبرة به...آه

اوعام ده چې په مواد خوارکیه کښی وی که په غیر خوارکیه کښی (ردالمحتارج ۵ ص۲۸۴) باید په دغسی امورکی امام اوحکومت ډیر غور اوفکروکی چې ظلم ورڅخه پیدانشی وبعض ظالمانوته لاری خلاصی نشی والله اعلم



مولوی احمد نوری عفی عنه مولانا نان شاه مولوی عبدالحکیم عفی عنه مولانا عبدالله مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دار الافتاء دولت اسلامی افغانستان

## ناقصه یاتروخت تیره دواخرخونکي حکم

پوښتنه: هغه دوافروشان چې ناقصه دواتروخت تیره دواخرڅه وی جزاء لری کنه که ئې لری ترکومې اندازې ؟

(دامنیی قوماندانی لخوا)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون الله تعالی ددغه قسم دوافروشانو جزاء داده چې دواوی ئې بندی شی دوی ددواء خرڅیدوڅخه منع شی ځکه دغه قسم دواءفروشان دقسم څخه دطبیبانو جاهلانودی منع دجاهل طبیب که څه هم ظاهراحجر دحر دی لکن په واقع کی د بابه دنهی عن المنکردی لکه چې په بدائع الصنائع ج۷ ص۱۶۹ کښی وايي: یمنع هولاء الثلاثة عن عملهم حسا لان المنع عن ذلک من باب الامر بالمعروف والنهی عن المنکر لان المفتی الماجن یفسد ادیان المسلمین والطبیب الجاهل یفسد ابدان المسلمین والمکاری المفلس یفسد اموال المسلمین... الخ- نوچې دغه حجرپه واقع کی نهی عن المنکرشوه حجرنشو نوپه مذهب دامام ابوحنیفة رحمه الله تعالی جائزشو په (الفقه الاسلامی ج۵ ص۴۴۹ )کي راغلی دی:

فیحجر علی هؤلاء وامثالهم لان دفع الضرر العام واجب وان کان فیه الحاق الضرر الخاص و مصارمة الحریات والحجر فی هذه الحالات عقوبة مناسبة لزجرهم ودرء المفاسدعن الناس لهذا روی عن ابی حنیفة رحمه الله تعالی انه کان لایجری الحجر الاعلی هؤلاء الثلاثة لان الطبیب یضر الابدان والمفتی یضر الادیان والمکاری یضر الاموال-

الحاصل ددغه قسم دوافروشانو منع ددوا فروشي څخه پرحکومت واجب دی ترهغه وخت پوری چې دوی ددغه عمل څخه تائب کیږی اودحاکم په رایه کی هم دغه اندازه منع ده

# کتاب احیاء الموات والشرب

## غرني درختي اوځمکي بي دامام له اجازی مملو که گرځي کنه؟

پوښتنه : اشجار جبال وزمین آن بواسطه تقسیم اهالی آن منطقه بدون اذن امام مملوکه شان میگردد یانه؟

(المستفتي مولوی حمید الله فائزرئیس محاکم ولایت پکتکا)

بسم الله الرحمن الحیم

الجواب بعون الملک الوهاب

تقسیم اشجار جبال وزمین ان بدون اذن امام جائز نیست وآن زمین مملوکه شان نمیگردد زیراکه اذن امام نزدامام ابی حنیفه رح دراحیاء شرط است اگریک شخص حطب جبل جمع کند مالک میگردد زیراکه حطب جبل مثل صید حکم دارد؟

ومن احیاه باذن الامام ملکه وهذا عند ابی حنیفة رح (تبیین الحقائق ج۶ ص۳۵ قوله وهذاعند ابی حنیفة رح وقد اخذالطحاوی فی مختصره بقول ابی حنیفة رحمة الله علیه حاشیة الشیخ شهاب الدین احمد الشلبی علی هامش تبیین الحقائق ج۶ ص۳۵



مولوی عبدالحکیم عفی عنه مولانا عبدالله مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دار الافتاء دولت اسلامی افغانستان

## دامام په اجازه دځمکي احیاء باعث دملک دی که چاغصب کړه بیرته به ورده وی

پوښتنه :څه فرمایي علماء کرام په دغه مسئله کی چی یوسړی ته حکومت اسلامی زمکه ورکی په اسنادصحی وی یعنی نوم دپلارنوم په کتاب کی نوشته وی حدود دمځکی هم په کتاب کی معلوم وی شرقا غربا شمالا جنوبا تمام حدود معلوم وی په داسی ډول بل سړی قبضه کړی وی چی هیڅ شرعی لارنه ولری اوقانونی لارهم په داسی حیث مثلا زید فوت شوپه میراث کی دغه مځکه ئې ولونو ته پاته شوه اوپه حکومت کی رشوت ورکی مځکه تقریبا دیرش کاله وخوری اوهیڅ سند شاهدهم نه ولری اوس که مالک دمځکی خپله مځکه ځنی واخلی څه مشکل شرعی خوبه نه لری آیاپه خوړل سوی وخت کی اصل مالک حق لری چې طلب ئې کړی که نه دتیرشوی حاصلات اوپه حقیقت کښی ددي فوت شوی

سړی هیڅ لور هم نه وی اوداچې دی قابض لیکلی دی په دی خاطر چې حکومت ئې ونه ګرځوي ځکه هغه وخت داقانون وه چې حکومت به چاته مځکه ورکړه نوچی هغه به وفات شواوورثه به ئې نه وونوبه حکومت بیرته ګرځوله اوس حقیقت داده چې دمالک دوه ځامن پاته دی او پنځه دیرش کاله تیرشوی دوفات اوځامنو ترک ددعوی په وجه دمسکنة کړی ده چې دتنګ اوراتګ کرایه هم ورسره نه وه یتیمان اوطالبان وه اوبل خلکوبیرول چې مقابل طرف رشوت ورکړی اوحکومت دوخت هم رشوت خوری اوپه هیڅ صورت تاسودانشي ګټلی نوځکه زامنو داجرأت نه ووکړی .

(المستفتی محمدعیسی عفی عنه)

بسم اللّٰه الرحمن الرحيم

الجواب بعون الوهاب

امام اویا هغه څوک چې امام اجاره ورکړی وی چې ځمکه معینه یوکس ته ورکی هغه کس ئې اباده کړی دغه ځمکه ئې مملوک ګرزی وروسته ترمرګ ئې ورثه ووته پاتیږی که یوچاقبضه پروکړه بنایي پروکړه یائې درختی یائې زراعت په وکی ځمکه به مالک یادمالک ورثه ته ردوی هرچی بناده هغه که ددغی ځمکی له خاوروجوړه وه مالک ته به ئې پریږدی اوکه دخښتوددغی ځمکی څخه جوړه وه خښتی هم وروسته ترنړیدو ثابت پاتیدی خښتی دبانی دی مالک ته به دنقصان ضمان ورکی که په زمکی کی نقصان راغلی اوکه بناءټول یابعض ددغی زمکی نه وه هغه دبانی ده دغه رنګه درختی هم دقابض دی مالک ته به زمکه فارغ کوی دغه حکم دبناء دنړیدو اوددرختو دختلو په دی شرط ده چې زمکی ته نقصان فاحش نه رسوی اوکه ئې نقصان فاحش رسوی بناء اودرختی به مالک ته دزمکی پریږدی مالک به دمقلوع قیمت چی دمزدورمزدوری دختلوهم ورڅخه کم کړی ورکوی هر چی زراعت دی هغه زراعت چی قابض خوړلي وی پرقابض ئې ضمان نسة اوهغه زراعت چی بالفعل زمکه په مشغوله وی قابض مجبوردی چی دغه زراعت به کاږی زمکه به فارغ کوی دزمکی دنقصان ضمان به ورکوی هغه دقبض لیکل چی دفوت شوی سړی دوی لورانی پاته دی یانورڅه خبری چی قابض ئې کوی هغه وخت معتبری دی چی په حجج شرعی ووثابت شی هرچی سکوت دمدعی په معنی دترک ددعوی دی اصلی حکم دشرعی په باب دترک ددعوی چی مدعی ترک ددعوی دیرش کاله پریوقول دردیرش کاله پربل

قول شپږ دیرش کاله پربل قول چی فقهاؤ راجح بللی دی وکی قاضی به ئې دعوی نه اوری که څه هم امام امر ورته وکی اوکه مدعی ترک ددعوی پنځلس کاله وکی قاضی به ئې دعوی نه اوری په شرط ددی چی امام قضاة منع کړی وی دسماع څخه ددعوی وروسته ترپنځلس کاله لکن که امام امرپه سماع ددعوی ددغه مدعی وقاضی ته وکی قاضی به ئې سماع کوی اوپرامام واجب ده که مدعی حیله گر اومزورنه وو چی دعوی به ئې خپله اوری یابه بل ته امرد سماع کوی که څه هم پنځلس کاله تیرشوی وی لکن دغه مرور الزمان هغه وخت معتبردی چی اعذار شرعی به مدعی لره نه وی که مدعی صغیر وو که څه هم وصی لری مرور الزمان ئې دبلوغ څخه معتبردی اومدعی علیه کچیری متغلب وی که امیروی اوکه غیر دامیروی لکن تزویر ددعاوی کوی لکه ملک یاخان چی درشوت خور حکومت سره همراه وی نومرورزمان هغه وخت معتبردی چی دغه تغلب ئې زائل شی:

اذااحیا ارضا میتة ان کان باذن الامام ملکها (خانیة علی هامش الهندیة ج۳ ص۲۱۹ وهکذا فی تبیین الخقائق ج۶ ص۳۵ )قوله ان اذن له الامام فی ذالک والقاضی فی ولایته بمنزلة الامام تاتارخانیه عن الناطفی ( ردالمحتار ج۵ ص۳۰۷ و(هکذافی البحر الرائق ج۸ ص۲۱۰ )

اذااحیا ارضا من الاراضی الموات بالاذن السلطانی صار مالکا لها وان اذن السلطان اووکیله لشخص باحیاء ارض علی ان لایکون متملکا بل لمجرد الانتفاع فذالک الشخص یتصرف بتلک الارض کما اذن له لکن لا یکون مالکا تلک الارض مجلة المادة ص۱۲۷۲ )

افادت هذه المادة ان اذن وکیل السلطان کاذنه بنفسه وبه صرح فی مجمع الانهر فقال باذن الامام اونائبه وفی رد المحتار عن التاتارخانیة مانصه والقاضی فی ولایته بمنزلة الامام اه ( شرح المجلة للاتاسی ج۴ ص ۲۰۴ ومن بنی اوغرس فی ارض غیره بغیراذنه امر بالقلع والرد ولوقیمة الساحة اکثر کمامر ولمالک ان یضمن له قیمة البناء اوشجرا امر بقلعه ای مستحق القلع فتقوم بدونها ومع احدهما مستحق القلع فیضمن الفضل ان نقصت الارض به ای بالقلع ( الدرالمختار )

(قوله ومن بنی) ای بغیر تراب الارض والافالبناء لرب الارض لانه لوامر بنقضه یصیر ترابا کما کان قوله ای مستحق القلع وهی اقل من قیمته مقلوعا مقدار اجرة القلع فان کان قیمة الارض مأته وقیمة الشجر المقلوع عشرة واجرة القلع درهم بقیت تسعة دراهم فالارض مع هذا الشجر تقوم بمأ ته وتسعة دراهم فیضمن المالک التسعة ( منح ) قوله ان نقصت الارض به ای نقصانا فاحشا بحیث یفسدها امالو نقصها قلیلا فیأ خذ ارضه ویقلع الاشجار ویضمن النقصان (سائحانی عن

المقدسی )( ردالمحتار ج۵ ص۱۳۷) وهکذافی شرح المجلة للاتاسی وفیه اقول یعنی بان کان البناء لبنا محضا اخذه من تراب الارض وانظر ماذاامکن نقضه لبنا علی هیئة هل یتملکه البا نی ویضمن قیمته التراب اونقص الارض باخذ التراب منها الظا هر نعم لانه اخرج التراب عن اسمه بجعله لبنا بالصنعة فانقطع حق المالک اه وفیه ایضاً اقول ولا تنس مامر فی الماد ة ۹۰۰ من ان النقصان الفاحش ماکان مساویا ربع القیمة فصاعداا ه( شرح المجلة للاتاسی ج۳ ص۴۴۳)لو غصب اخذ عرصة اخر وزرعها ثم استردهاصاحبها یضمنه نقصان الارض الذی ترتب بزراعية (المجلة المادة ص۹۰۷ )وعبارة الهندیة فی المسئلة الاولی غصب من آخر ارضا فزر عها ونبت فلصاحبها ان یاخذ الارض ویأمر الغاصب بقلع الزرع تفریغا لملکه فان ابی ان یفعل فللمغصوب منه ان یفعله بنفسه فان لم یحضر المالک حتی ادرک الزرع فالزرع للغاصب وهذامعروف وللمالک ان یرجع علی الغاصب بنقصان الارض ان انتقصت بسبب الزراعة اه( شرح المجلة للاتاسی ) والنوع الثالث السکوت بمعنی ترک الدعوی مدة طویلة بغیر عذر وهذاهو المذکور فی مواد هذاالباب وقد اختلف الفقهاء فی تحدید هذه المدة فقیل هی ثلاث سنوات وهو قول مهجور لاینفذ القضاء به کمافی تنقیح الحامدیة وردالمحتار وقیل هی ثلاثون سنة وقیل ثلاث وثلاثون سنة ونقل فی التنقیح عن جامع الفتاوی ان المتأخرین من اهل الفتوی قال لاتسمع بعد ست وثلاثین سنة اه( شرح المجلة للاتاسی ج۵ ص۱۶۷ )ویتخصص القضاء بزمان ومکان وخصومة حتی لوامر السلطان بعدم سماع الدعوی بعد خمسة عشر سنة فسمعها لم ینفذ ه (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ج۴ ص۳۸۰) وقدافاد فی ردالمحتار ان القاضی الممنوع من سماع دعوی مضی علیها خمس عشرة سنه لوسمعها وحکم لاینفذ قضاؤه لانه معزول عن سماعها لما تقرر ان القضاء یتخصص بزمان ومکان وخصومة الا ان یأ مره بسماعها بعدهذه المدة فحینئذ یجب علیه سماعها ثم نقل عن الاشباه ان السلطان الذی منع قضاته عن سماع الدعوی بعد مضی المدة المذبورة یجب علیه ان یسمعا بنفسها اویأ مر بسماعها کیلا یضیع حق المدعی ثم قال والظاهر ان هذاحیث لم یظهر من المدعی امارة التزویر وهذا بخلاف ماذامضی علیها ست وثلاثون سنة فان القاضی لایسمعها وان امره السلطان بسماعها لان عدم سماعما بعدهذه المدة لیس مبنیا علی المنع السلطانی بل هو منع من الفقهاء وکذافی التنقیح وردالمحتار( شرح المجلة للاتاسی ج۵ ص۱۶۸) والمعتبر فی هذا الباب یعنی مرور الزمان المانع لاستماع الدعاوی لیس هو الا مرور الزمان الواقع بلاعذرو اماالزمان الذی مر بعذر شرعی ککون المدعی صغیراا ومجنونا او معتوها سواء کان له

وصى اولم يكن اوكونه فى ديار بعيدة مدة سفر اوكون خصمه من المتغلبة فلايعتبر مثلا لايعتبر الزمان الذى مرعلى حال صغير المدعى وانما يعتبر من تاريخ وصوله الى حد البلوغ كذالک اذاكان لرجل مع احد المتغلبة دعوى ولم يمكنه الادعاء لامتداد زمان تغلب خصمه ووجد مرور الزمان لايكون مانعا لاستماع الدعوى وانما يعتبر مرورالزمان من تاريخ زوال التغلب ..آه (المجلة المادة ۱۶۶۳ ) لايشترط فى كونه متغلبا ان يكون اميراوالتقييد بكونه اميرا جائر ا اتفاقى اوجرى على الغا لب حتى لولم يكن امير اولامأمو رالكنه صاحب نفوذوله وجاهة عند اوليا ء الا مور وهو مع ذالک شرير يزور الدعاوى الجنائية الكاذبة على من يقاومه اويعانده يكون من المتغلبة بل تغلبه وهوفى هذه الحالة اشد من تغلبه لوكان امير افقد شاهد نامن امثال هؤلاء كفى الله عباده من شرورهم كثير ا ممن استولى على اراضى وعقارات وخلافها من اناس قد منعهم الخوف من شره ان يدعواعليه فى محكمة مافمثل هؤلاء لايكون مرور الزمان مانعا من سماع الدعوى عليهم الااذاكان من تاريخ زوال تغلبهم....آه( شرح المجلة للاتاسى ج۵ ص۱۷۸ )

مولانازمان شاه مولاناعبدالله مولوی عبدالحکیم عفی عنه مولوی احمد نوری عفی عنه مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء دولت اسلامی افغانستان

## حکومت چي موات ځمکه چاته تقسيم کړی رقبه يي دچاده؟

پوښتنه : چې يوه دولتي ځمکه وی اوحکومت بياورته جوړه کړی وی اوبيائې يو چاته دسی ورکړی وی چې دغه مځکه ته ترشل کاله نسی خرڅولای اواصول ئې خوره پس تر۲۰ کاله که تابنه روزلی وه بيائې موږ په قيمت درکوو اوقيمت بی په قسطوراکوی چې قيمت دی راکړی بيباموږ شرعی قباله درکوو خوترشل کاله مخکی کمونستي حکومت راغلی اوکه نه وای راغلی حکومت به قباله ورکولای خواوس ددغه نفرپلاس کی فقط تصرفه وه ده ځمکه خرڅه کړی ايا بيع ئې صحيح ده کيا ؟که نوی صحيح ځمکه حکومت ته رديږی اوکه مخکني نفرته رديږی.

(المستفتی بهاؤ الدين حقانی ۱۳ - ۲ - ۱۳۷۶)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون الله الوهاب

دغه جوړه شوی ځمکه چې حکومت ودغه سړی ته ورکړی ده رقبه ئې دبیت المال ده ځکه چې پرخرڅ کړی ئې نده نو ددغه سړی بیع صحیح نه ده دغه ځمکه بیت المال ته ردیږی لکه هغه موات ځمکه چې حکومت ئې یوسړی ته ورکی چې آباده کړه حصلات ئې خوره اورقبه ئې د بیت المال ده دغه سړی ئې نشی خرڅولای:

وان اذن السلطان اووكيله لشخص باحياء ارض على ان لايكون متملكا بل لمجرد الانتفاع فذلک الشخص يتصرف بتلک الارض كمااذن له لكن لايكون مالک تلک الارض( المجلة المادة ۱۲۷۲ )وانماله حق التصرف فيها انتفاعا حسبما ياذن له السلطان وامارقبتها فمملوكة لبيت المال فلاتورث عنه الميراث الشرعی ولايبيعها كما يبيع سائر املاكه وانما له الفراغ عنها لاخر باذن السلطان كما هوالحكم فی سائر الاراضی المملوكة رقبتهالبيت المال وهی فی تصرف الغير لظاهر (شرح المجلة للاتاسی ج۴ ص۲۰۴)

مولوی احمد نوری عفی عنه مولوی عبدالحکیم عفی عنه مولوی نذاحمد اخلاص برکتی مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء دولت اسلامی افغانستان

**په دولتي ځمکوکي جوړشوی سرایونه حکومت ړنګولای شي کنه؟**

پوښتنه: محترم رئیس صاحب دارالافتاء السلام علیکم محترمه! هغه دولتي ځمکه چې خلقو کورونه پرجوړ کړی دی یاقطعا چااجازه نه وی ورکړی یااجازه لری دسابقه قوماندانانو په وخت کی یاسابق دمحمدداؤد په وخت کي وغیره آیادغه خلق ددغوکورو ځایو څخه موږ منع کولای شو یانوی سرایونه جوړوی ددغو خلقو سرایونه دامرپه امیر نړیدلای شی که څنګه ؟ والسلام. (پوښتنه کوونکی نورمحمد)

بسم الله الرحمن الرحيم

نحمده ونصلی علی رسوله الكريم

امابعد الجواب باسم ملهم الصواب هغه دولتی ځمکه چې دچا شخصی ملکیت نه وی اوپه شهرکی داخل نه وی اودشهر څخه خارج هم. دشهر دانسانانو د بوټوکولو اود حیواناتو

چراګاه نوی که یوڅوک د بادشاه یاوکیل دبادشاه یاقاضي په اجازه دغسی مځکه آباده کړی هغه دده ملکیت ګرزیدلی دی هیڅوک دغه ملکیت دده نسی باطله ولای اوسابقه قوماندانان چونکه هغودبادشاه یاقاضي حیثیت نه درلودی نوددغه قوماندان په اجازه که چاکومه مځکه اباده کړی وی امیرالمؤمنین کولای سی چې هغه ورڅخه قبض کی اوکه پردغه مځکه قرار ورکوی هم یی ورکولای شی اودارنګه داسلامی حکومت په دور کی که دامیرالمؤمنین یادقاضي داجازی څخه بغیرچاکومه مځکه آباده کړی وی امیرالمؤمنین کولای شی چې دغه مځکه ورڅخه قبض کی یا پرهغه باندی قرار ورکی:

الارض الموات هی ارض خارج البلد لم تکن ملکا لاحد ولاحقا له خاصا فلایکون داخل البلد موات اصلاوکذاماکان خارج البلدة من مرافقها محتطبا لاهلها ومرعی لهم لایکون مواتا حتی لایملک الامام اقطاعها وکذلک أرض الملح والقارونحوهما ممالایسغنی عنها المسلمون لاتکون أرض موات حتی لایجوز للامام أن یقطعهالاحد وهل یشترط ان یکون بعیدا من العمران شرطه الطحاوی وفی ظاهر الروایة لیس بشرط ....والصحیح جواب ظاهر الروایة فان الموات اسم لما لاینتفع به فاذالم یکن ملکا لاحد ولاحقا خاصا له لم یکن منتفعا به فکان مواتا بعید اعن البلدة اوقریبا منها ویملک الامام اقطاع الموات والملک فی الموات یثبت بالاحیاء باذن الامام عندابی حنیفة رحمه الله وعندابی یوسف ومحمد رحمهما الله تعالی یثبت بنفس الاحیاء (الهندیة ج۵ ص ۳۸۶)ط رشیدیه وقول الامام هوالمختار ولذ اقدمه فی الخانیة الملتقی کعادتهما وبه أخذ الطحاوی وعلیه المتون والقاضی فی ولایته بمنزلة الامام (ردالمحتار ج۵ ص۳۰۷ )ط بشاور اذااحیا ارضا میتة ان کان باذن الامام ملکها (قاضیخان علی هامش الهندیة ج۳ ص۲۱۹ )والله اعلم بالصواب

مولوی نذاحمد الحقانی مولوی احمد نوری عفی عنه مولوی عبدالستار بن محمد انور مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دار الافتاء دولت اسلامی افغانستان

## په مځکي حکومتونوکي چې کومي دولتي ځمکي قبضه شوی دی څه حکم لري؟

پوښتنه :ومحترم رئیس صاحب ته ددارالافتاء کندهار السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته محترمه څرنګه چې دنجیب دحکومت دسقوط وروسته دولتی ځمکی خلکو پرخپل سرقبضه کړی یاد طالبانو دتحریک مځکی دتوپکیانو په وخت کی توپکیانو پرخلکو خرڅی کړي دی آیاداځمکی

دهغو خلكو چې نن ئې په لاس كې دي ملک ئې گرځي كه يا په دې باب موتوجه وشرعي فيصله ته غوا ړمه والسلام (المستفتى الحاج ملامحمد حسن آخند رئيس تنظيمه ووالي ولايت قندهار)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب ومنه العون على الصواب

سابقه قوماندانان چونكه دباشاه ياقاضي حيثيت نه درلودی نوكه ددوي په وخت چاكومه ځمكه آباده كړې وي امير المؤمنين كولاشي چې هغه ورڅخه قبض كړي يا قرار وركړي اوهم دارنگه داسلامي حكومت په دوركي يادەی ترمخه پخپل سرچا ځمكه قبض كړې وي بغير داجازي دحكومت امير المؤمنين كولائ شي چې دغه ځمكه ورڅخه قبض كړي ياپرهغه باندي قرارور كي ځكه چې داددوی شخصي ملكيت نه گرځي:

ويملک الامام اقطاع الموات ...والملک فى الموات يثبت بالاحياء باذن الامام عندابى حنفية رح وعندابى يوسف ومحمد رحمهما الله تعالى يثبت بنفس الاحياء(الفتاوى الهندية ج۵ ص۳۸۶ )وقول الامام هو المختار ولذاقدمه فى الخانية والملتقى كعادتهما وبه اخذ الطحاوى وعليه المتون (ردالمحتار ج۵ ص۳۰۷)

(تنبيه) دولتي ځمكي وموات ځمكو ته ويل كيږي يانورو آبا دودولتي ځمكوته نه ومرعى اوشخصي مملوكه ځمكوته اومرعى هغه ځمكي بولي چې هغه مقبره وي دخلقو ياد كوچنيانو دلوبو ځاى وي ياد حيوانات دڅر ځاى وي مطلب دا چې منافع دخلقو دپاره وى دامځكي نه حكومت تصرف پكښي كولاى شي نه يې چاته وركولاي شي بلكه دادپاره دمنافع دخلقودی اوهغو ته به پاتيږی اوكه يوچاقبضه كړی وي دهغه څخه به اخيسته كيږی كه څه هم تر۳۶ كاله زيات وقت تيرشوی وی:

ونوع ليس من مرافقها وهو الارض الموات اومايسمى الان املاک الدولة لعامة ( الفقه الاسلامى ج۵ ص۵۴۲) مايكون تبعا لبعض القرى مرعى لمواشيهم ومحتطبا لهم فهى حقهم لايجوز للامام ان يقطعها من احد (تحفة الفقهاء ج۳ ص۳۲۱ وهكذافى الفقه الاسلامى ج۵ ص۵۴۲) لوضبط احد المرعى المخصوص بقرية وتصرف فيه خمسين سنة بلانزاع ثم ادعاه اهل قرية تسمع دعواهم ( مجلة الاحكام مادة ۱۶۷۵ وهكذافى الفتاوى الكاملية ص۱۱۸ والله تعالى اعلم بالصواب



مولوى نورمحمد ثاقب رئيس دار الافتاء دولت اسلامى افغانستان

**په مځکني حکومتونوکي پرخلکو ويشل شوي دولتي ځمکو څه حکم دی ؟**

پوښتنه :دارالافتاء دمحترم رياست څخه (۱) هغه مځکه چې دولتی وی اودطالبانود اسلامی حکومت دمخه دخلق اوپرچم په وخت کی وخلقو ته دحکومت دنقشه اوماستر پلان سره مطابق وخلقوته تقسيم سوی وی دغه تقسيم مدارد اعتباردی اوکنه (۲) په عين شکل دنقشه سره مطابق دتوپکيانوپه دوره کی توزيع حکم څه دی (۳) دخلق اوپرچم د حکومت دمخه چې په عين شکل سره دحکومت دنقشی سره مطابق دماسترپلان دمځی مځکی وخلقوته تقسيم شوی اعتبارلری اوکه يا داتول په هغه دوران کی چې اسنادولری دهغی دوری حکم يی څه دی اوچې اسناد نه لری حکم يی څه دی (۴) اوکه دحکومت دنقشو اوماسترپلان څخه مخالف په تير ودوروکی مځکی تقسيم سی مدارد اعتباردی اوکنه ستا سومحترم حضور څخه غوښتونکی دجواب يو .والسلام مع الا حترام -

(المستفتی مولوی عبد الولی مسئول قضايای دولت)

بسم اللّٰه الرحمن الرحيم

الجواب باسم ملهم الصواب

(۱) په دولت اسلامی کی دمځکی دتقسيم لپاره داضروری ده چې مځکه به دشهر اوقريه څخه خارج اودمسلمانانودمنفعت يعنی دحيواناتو چراګاه اوقبر ستان اودبوټوکولوځای اودکوم شخص شخصی ملک نه وی اودارنګه دمسلمان خليفه اجازه به وی نوحاصل دادی چې دخلق اوپرچم حکومت يو کفری حکومت دهغوتصرفات شرعا معتبرنه دی (ځکه چې دوی دکفرپه فعل باندی راضی وه ) نوهغه کسان چې سند نه لری دهغو په باره کی څه اشکال نشته اوکم خلق چې سند لری هغه فعلاد امير المؤ منين دامت برکاتهم پراجازه مسئله موقوفه ده که امير المؤمنين يي بناء برشفقت ياځه مصلحت ورته پريږدی يايی ورڅخه ضبطوی په دواړو صورتوکی دهغو اختياردی اودماسترپلان شرعا اعتبارنشته.

الارض الموات هی ارض خارج البلد لم تکن ملکا لاحد ولاحقا له خاصا فلايکون داخل البلد موات اصلاوکذا خارج البلدة من مرافقها محتطبا لاهلها ومرعی لهم لايکون مواتا حتی لايملک الامام اقطاعها ويملک اقطاع الموات... والملک فی الموات يثبت بالاحياء باذن الامام عند ابی حنيفة رحمه اللّٰه تعالی (الهندية ج۵ ص ۳۸۵) اذاحياارضا ميتة ان کان باذن الامام ملکها(قاضيخان علی هامش الهندية ج۳ ص۲۱۹)واعتبر محمدعدم ار تفاق اهل القرية به وبه

قالت الثلاثة قلت وهذا ظاهر الروايةوبه يفتى كمافى زكوةالكبرى ذكره القهستانى وكذافى البرجندى عن المنصورية عن قاضيخان ان الفتوى على قول محمد ان اذن له الامام فى ذلك الدرالمختارعلى هامش ردالمحتارج٥ ص٣٠۶ وج٥ ص٣٠٧ ويشترط كونه مسلما الخ قوله (ويشترط كونه مسلما الخ) اى لان الكافر لايلى على المسلم (ردالمحتار ج١ ص۴٠٥) يكفر بوضع قلنسوة المجوس على راسه على الصحيح الالضرورة دفع الحروالبرد و بتحسين امرالكفار اتفاقا (الهندية ج٢ ص٢٧۶ وج٢ ص٢٧٧)

(٢) دتوپکیانوپه دورکی چې ځمکی تقسیم شوی وی که چیری د داسی یو مسلمان شخص په اجازه سره وی چې هغه پریوعلاقه باندی غلبه حاصله کړی وی اوسند موجودوی نودغه تقسیم معتبردی ورنه معتبرنه دی اوداخبره په مشاهده سره یقینی ثابته ده چې د قندهار په علاقه اواطرافوکی دتوپکیانو څخه هیڅ شخص هم مکمل تسلط نه درلودی نوپردغه خبره دمذکوری علاقی دتوپکیانو تصرفات صحیح نه دی:

ثم ان الظاهر ان البلادالتى ليست تحت حكم سلطان بل لهم امير منهم مستقل بالحكم عليهم بالتغلب اوباتفاقهم عليه يكون ذالک الامير فى حكم السلطان (ردالمحتار ج۴ ص٣۴٢)

(٣)دخلق اوپرچم څخه مخکی کوم بادشاه که داسی ځمکه ئې خلقوته ورکړی وی چې پرهغه د موات تعریف صادیق وی اوسند پلاس کی ولری اودارنګه دمسلمان خلیفه اجازه وی نوهغه ددوی ملکیت شمیرل کیږی اګرچې دنقشی اوماستر پلان اعتبار نشته اوکوم خلق چې سند نه لری دهغودقول اعتبارنشته:

ويملک الا مام اقطاع الموات (الهندية ج٥ص٣٨۶)

(۴)مخکی موږ عرض وکی چې دنقشی اوماستر پلان شرعا اعتبار نشته اوپرځمکه به دموات تعریف صادق وی اوسند به پەلاس کی لرې اودارنګه دمسلمان خلیفه اجازه به وی نوکه مذکور شرائط وجود نه لری مسئله په اول دوهم دریم نمبرکی واضحه شوله والله اعلم وعلمه اتم واکمل واحکم

مولوی ندا محمد الحقانی مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دار الافتاء دولت اسلامی افغانستان

## سرکاری ځمکه چي دتوپکیانو په وخت کي چارانیولي وی نو

پوښتنه :ددارالافتاء ټولو محترمو علماء کرامو ته السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته وبعد نطلب منکم الجواب دجبه خاني منطقه چې دقول اردو ملکیت وو بعض کسان داوايي چې مورږ منزلیانو په وخت کی نمري اخستي وي ددکانو دپاره که چیری دوی نمری اخستی وی اوس ددوی په رانیولو سره دوی ته ملکیت ثابتیږی اوکنه که چیری دوی ته ملکیت ثابت نسی موږته په خالی نمره باندی کرایه اخستل جوازلری اوکنه ؟

(المستفتی بازمحمد افغانی)

بسم الله الرحمن الرحيم

د توپکیانو په دورکی چې مځکی تقسیم شوی وی که چیری د داسی یو مسلمان شخص په اجازه سره وی چې هغه پریو علاقه باندی غلبه حاصله کړی وی اوسند موجودوي نودغه تقسیم معتبردي ورنه معتبر نه دي اوداخبره په مشاهده سره یقیني ثابته ده چې دقندهارپه علاقه اواطرافوکی دتوپکیانو څخه هیڅ شخص هم مکمل تسلط نه درلودي نوبناء پردغه خبره دمذکوری علاقی دتوپکیانو تصرفات صحیح نه دي اوسابقه قوماندان چونکه دقاضي حیثیت نه درلودی نوکه ددوی په اجازه چاکومه مځکه اباده کړی وي امیر المؤمنین کولاي شي چې هغه ورڅخه قبض کړی مسئله داده چې په مځکه مملوکه یا موقوفه اویاسلطانیه کښی مستاجر تعمیر بناء کړی په اذن دمالک یادناظر په شرط دقرار نوبانی لره حق دقرار شته په دې شرط چې اجرة مثل دمځکی قطع نظر دبناء څخه اداکوي حاصل دادی په خالی نمره باندي کرایه اخستل جوازلری:

ثم ان الظاهر ان البلا دالتي ليست تحت حكم سلطان بل لهم امير منهم مستقل بالحكم عليهم بالتغلب اوباتفاقهم عليه يكون ذالك الامير في حكم السلطان فيصح منه تولية القاضي عليهم ( ردالمحتار ج۴ ص۳۴۳ )ويملك الامام اقطاع الموات فلو اقطع الامام انسانا فتركه ولم يعمره لايتعرض له الى ثلاث سنين فاذامضى ثلاث سنين فقد عاد مواتا وله ان يقطعه غيره والملك في الموات يثبت بالاحياء باذن الامام عندابی حنيفة رح وعندابی يوسف رح ومحمد رحمهما الله يثبت بنفس الاحياء الخ( الفتاوى الهندية ج۵ ص۳۸۶ وردالمحتار ج۵ ص۳۰۷ )قال في جامع الفصولين وغيره بنى المستاجر اوغرس في ارض الوقف صارله حق القرار وهو المسمى بالكردار له الاستبقاء باجر المثل آه (ردالمحتار ج۴ ص۱۸ )

سئل فی جماعة یملکون مکانااستاجره منهم رجل بازید من اجر المثل وآذنوه بالبناء فیه لیکون له خلوا بحق البقاء والقرار فبنی وعمر حسب الاذن منهم وجعله معد اللصاغة و وضع یده علیه مدة نحو اربع سنوات ثم باع ذالک الخلو لرجل آخر ووضع یده علیه مدة تزید علی خمس عشرة سنة وهو یدفع اجرة المثل وزیادة للمالکین ثم بعد تلک المدة قام المالکون الان یریدون ابطال ذالک الخلو واجارة المکان لغیر ه ویزیدون علیه الاجرة تعنتا فهل اذاکان ذالک الخلو ثابتا باعترافهم واطلاعهم واخذ هم الاجرة تلک المدة لایجابون بماذکر ولایو اجرونه لغیره حیث کان یدفع صاحب الخلو اجرة المثل وزیادة (اجاب) اذاثبت الخلو المذکور مستوفیا شرائط الصحة وواضع الید قائم بدفع اجر مثل ذلک المکان بقطع النظر عما احد ثه فیه لایکون لمالکی المکان المذکور ابطال الخلو بدون وجه شرعی ولااجارة المکان من غیر صاحب الخلو (الفتاوی المهدیة ج۵ ص۴۹)

## تقسیم دمرعي دخلکوترمنځ څنګه دی ؟

پوښتنه: به اداره محترم دارالافتاء شورای مرکزی علماء کرام السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته محترم احترامانه خواهش بلکه عرض است که لطفا واحسانا درحصه مرعی که یک قسم زمین مباحه بوده ومتروکه عمرانات یادمیشود واهالی قریه هامشترکا ازان دریک حرکات محدود ومعلوم استفاده مینمایند وتصرف مالکانه دارن درست نبوده ایاتقسیم ان دربین اهالی جائزاست یانه اگر باشد بکدام طریق؟

اجروکم علی الله بااحترام مع الاکرام-

(المستفتی مولوی لعل محمد ۲۷-۴-۱۳۷۵)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب ومنه الصدق والصواب

جائز نیست برای اهالی قریه هاکه بعض ازانهاویاهمه آنها تحویل وتغییربدهند مرعی رابرای غیرآن منافع که مرعی دراصل برای آن وضع گردیده لهذاتقسیم مرعی دربین اهالی درست نیست ونیز جائزنیست که ان آهالی مرعی راازدیگران منع کنندزیراکی آن مرعی ملک ایشان نیست ونیز برای امام هم جائزنیست که اقطاع آن مرعی بکند برای یک شخص زیراکه درآن ضرراست بمردم وهرگاه که مرعی ملک نیست ودرتقسیم ملک شرکاء شرط میباشدازین جهت هم تقسیم مرعی صحیح نیست

اذابنی اوغرس فی ارض متروکة لمنافع العامة کالطریق والمرعی فانه یؤ مربالقلع فی کل حال ای ولوکان القلع مضر اباالارض اوکان قدبنی اوغرس بتاویل ملک اذلیس لبعض العامة اولکلهم

اذااجتمعوا ان يحولواهذه الارض لغير ماوضعت له في الاصل ١٢( شرح المجلة لسليم باز ص٥٠۴ ) مايكون تبعا لبعض القرى مرعى لمواشيهم ومحتطبا لهم فهي حقهم لايجوز للامام ان يقطعها من احد لان في ذالک ضررا بهؤلاء ولكن ينتفع بالحطب والقصب اللتي فيها هؤلاء وغيرهم وليس لهم ان يمنعوها عن غيرهم لانها ليست بملک لهم (تحفة الفقهاء ج٣ ص٣٢٢ ) شرط المقسوم كونه ملک الشركاء حين القسمة فاذاظهر مستحق للمقسوم بعد القسمة بطلت الخ . (مجلة الاحكام المادة ١١٢٥ )

مولانامحمد مسلم حقانی مولوی عبدالحکیم عفی عنہ مولاناعبداللہ مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دار الافتاء دولت اسلامی افغانستان

## په مرعي كي نه تغير كول جائزدى نه بيع اونه خوک ځني منع كيدلاى شي

پوښتنه : بریاست محترم دارالافتاء مقام شورای مرکزی تحت مکتوب( ۴۶ ) ۲۴-۴-۷۵ مدیریت املاک ولایت فراه استهدا مورصت ورزیده که درولسوالی بکواه یکمقدار اشخاص زیاد مسکونین دائمی آن ولسوالی درساحات لامزروع وعلف چرها بنام مورث خود قلمداد کرده وتوسط اسناد عرفی بدون سلسله دفتراملاک بالای یکدیگر بفروش میرساندکه فروشات آن به چهل ملیون افغانی بائع می شودکه درسال ۱۳۷۵ ازنیروانان موضوع باثبات رسیده است که درقیمت اخذپول خریدوفروش خلاف مقررات که صورت گرفته مقام ولایت درمورد چنوع اجرات عمل نماید که این موضوع تحریر ولایت فراه موجب غور مزید کتب شرعی می نماید که ریاست شمادرموردشان معلومات ابراز نظرمسائل شرعی واضح نمایند۔

( مولوی خلیل الله فیروزی رئیس مقام عالی ریاست تمیز)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون الملک الوهاب :

جائزنیست برای اہل قریہ ہا نہ برای بعض آنها ونہ برای جمیع شان کہ تحویل وتغییربدہند آن زمین راکہ باشد برای منافع عامه مانند مرعی بہ غیرآن منافع کہ آن زمین وضع شدہ باشد برای آن دراصل پس فروختن مرعی درست نیست ونیز جائزنیست کہ اہل قریہ ہا منع کنند

غیرایشان رااز مرعی زیراکه مرعی ملک نیست برایشان وچون مرعی ملک ایشان نیست پس ازین جهت هم فروختن صحیح نمیشود وبرای امام هم درست نیست که اقطاع مرعی را بشخصی بکند زیراکه درآن ضرراست بمردم:

اذابنی اوغرس فی ارض متروکة لمنافع العامة کالطریق والمرعی فانه یؤمر بالقلع فی کل حال ای ولوکان القلع مضرا بالارض اوکان قدبنی اوغرس بتاویل ملک اذلیس لبعض العامة او لکلهم اذااجتمعو الان یحولواهذه الارض لغیرماوضعت له فی الاصل(شرح المجلة لسلیم باز ص۵۰۴ )مایکون تبعا لبعض القری مرعی لمواشیهم ومحتطبا لهم فهی حقهم لایجوز للامام ان یقطعها من احد لان فی ذالک ضررا بهؤلاء ولکن ینتفع بالحطب والقصب اللتی فیها هؤلاء وغیرهم ولیس لهم ان یمنعو ها عن غیرهم لانها لیست بملک لهم (تحفة الفقهاء ج۳ ص ۳۲۲)

(نوت) اگرزمین مذکور موات باشد هم بدون اذن امام وبدون احیاء فروختن آن صحیح نیست

مولوی محمد مسلم حقانی مولوی عبدالحکیم عفی عنه مولوی عبدالله مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء دولت اسلامی افغانستان

**په مرعي کي دسرای جوړول احیاءده کنه ؟**

پوښتنه : په مرعی کي دسکنی لپاره سرای کوټی جوړول احیاء ده کنه ؟

(المستفتی مولوی حمد الله فائز)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون الملک الوهاب

سرای جوړول په مرعی کښی احیاء ده لکن احیاء دمرعی جائز نه ده نه ئې امام اقطاع کولاي سی اونه ئې خلق پخپله احیاء کولاي سی:

اذابنی اوغرس فی ارض متروکة لمنافع العامة کالطریق والمرعی فانه یؤمر بالقلع فی کل حال ای ولوکان القلع مضرابالارض اوقدبنی اوغرس بتاویل ملک اذلیس لبعض العامة اولکلهم اذااجتمعواان یحولوا هذه الارض لغیر ماوضعت له فی الاصل شرح المجلة لسلیم باز ص۵۰۴) ومایکون تبعا لبعض القری مرعی لمواشیهم ومحتطبا لهم فهی حقهم لایجوز للامام ان یقطعها من احد لان فی ذلک ضررا بهؤلاء ولکن ینتفع بالحطب والقصب اللتی فیها هؤلاء وغیرهم ولیس لهم

ان یمنعو ها من غیرهم لانها لیست بملک لهم (تحفة الفقهاء ج۳ ص۳۲۲) ولا یجوزاحیاء ماقرب من العامر بل یترک مرعی لهم ومطرحا لحصائدهم لتعلق حقهم به فلم یکن مواتا (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ج۵ ص۳۰۸)



مولوی عبدالحکیم عفي عنه مولانا عبدالله مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دار الافتاء دولت اسلامی افغانستان

## ارتفاق څه ته وائي

پوښتنه: حقیقت د ارتفاق عبارت له څه شئ څخه ده چې کله کله تری نفع اخلی او که هغه ده چې استغناؤر څخه نه وی یعنی دغه انتفاع بل ځای نه حاصلیږی.

(المستفتی مولوی حمد الله فائز)

رئیس محاکمه ولایت پکتکا

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون الله تعالی

په ارتفاق کی اختلاف دی امام محمد ارتفاق حقیقه معتبروی اوابویوسف ؒ ارتفاق حکمی معتبروی:

ویشترط عندابی یوسف رح کونها بعیدة عن العامر لان الظاهر ان مایکون قریبا من القریة لاینقطع احتیاج اهلها الیه کمرعی مواشیهم وطرح حصائد هم فلایکون مواتا وحد البعد ان یکون فی مکان بحیث لوصیح من اقصاه لایسمع فیها وعند محمد رح ان لاینفع بها اهل العامر ولوقریبة منه (مجمع الانهر ج۲ ص۵۵۷):

اکثر الفقهاء رحمهم الله تعالی ر ایه دامام محمد ؒ مختار کړی ده ظاهر الروایة ئې بللی دی اوفتوی پرکړی ده همدغه قول داوسنی زمان سره موافق دی ځکه خلق زیادت سوه او احتیاج ئې وبناؤ اوزراعت ته ډیرسوا وقول دابی یوسف ؒ هم ددغه قول څخه ډیربعد نه لری ځکه چې نعره داخرڅخه دبناء معتبردی نه داخرڅخه دمعموری زمکی اوبعض فقهاء اوسط اواز معتبر کړی اواکثر فقها اوچت اواز معتبر کړی دی:

واعتبر محمد عدم ارتفاق اهل القریة به وبه قالت الثلاثة وقلت وهذا ظاهر الروایة وبه یفتی کمافی زکاة الکبری ذکره القهستانی وکذافی البرجندی عن المنصور عن قاضیخان ان الفتوی علی قول محمد رحمة

اللّٰه تعالى (الدر المختار على هامش ردالمحتار ج۵ ص۳۰۷) هكذافى البدائع ج۶ ص۱۹۴ والفتاوى الهندية ج۵ ص۳۸۶ )ويعتبر الصوت من طرف الدور لاالاراضى العامرة( الطحطاوى على الدرالمختارج۴ ص۲۱۴ ردالمحتار ج۵ ص۳۰۷ قاضى خان على هامش الهندية ج۱ ص۲۷۸ )وعنه فى رواية اخرى يقوم الرجل فى اخر العمران ويصيح صيحة وسطاالخ (وبعدعدة اسطور) وقال ابوعبدالله الجرجانى رحمه اللّٰه يعتبر الصوت على قدراذان الناس فى العادة من غيران يجهدنفسه (قاضيخان على هامش الهندية ج۱ ص۲۷۸)

مولوی عبدالحکیم عفی عنہ مولوی عبداللہ مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دار الافتاء دولت اسلامی افغانستان

## په قلعه جوړولو احياء ثابتيږي كنه؟

پوښتنه :درمبسوط ذکرکرده که انماالاحياء جعل الارض صالحة للزراعة بناء به این تعریف معلوم میشود که بناء وقلعه عمارت کردن احیاء نیست استفتاء ما این است که بواسطه عمارت قلعه احیاء می آیدیانه اگراحیاء می آید باید درمرافق ومرعی عمارت قلعه نکردد.

(المستفتى مولوى حمدالله فائز)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون الله الوهاب

آن که درمبسوط ذکرکرده انماالاحياء جعل الارض صالحة للزراعة تعریف نوع واحد ازاحیاء است والنوع اخر نیزدارد که درکتب فقه مذکوراست وغیرمخفی است لمن له ادنی تأمل بناء برآن عمارت کردن قلعه درمرعی جائزنیست

مولوی عبدالحکیم عفی عنہ مولوی عبداللہ مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دار الافتاء دولت اسلامی افغانستان

**دارتیاپرمهال په مرعي کي تقسیم یاعمارت کیدای شي کنه؟**

پوښتنه : اگر برای اهالی قریه احتیاج پیدا شود که در مرافق و مرعی عمارات قطعه ها نماید بعد ا تقسیم مرعی صحت دارد یانه اگر ندارد احتیاجات مذکوره چطور رفع کرددو اگر برای بعض اهالی قریه احتیاج عمارت باشد و برای دیگران نباشد محتاجون میتواند که عمارت درمرعی بدون اجازه باقی اهالی نماید (المستفتی مولوی حمدالله فائز)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب حامداومصليا

برای اهالی قریه عمارت کردن در مرعی جائز نیست خواه احتیاج دارد یانه برای جمیع اهالی ونه برای بعض:

اذابنی اوغرس فی متركة لمنافع العامة كالطريق والمرعى فانه يأ مر بالقلع فی كل حال ای ولوكان القلع مضرابا لارض اوقدبنى اوغرس بتأويل ملك اذليس لبعض العامة اولكلهم اذااجتمعواان يحولواهذه الارض لغير ماوضعت له فی الاصل (شرح المجلة لسيلم باز ص۵۰۴) ومايكون تبعا لبعض القرى مرعى لمواشيهم ومحتطبا لهم فهى حقهم لايجوز للامام ان يقطعها من احد لان فی ذلک ضررابهؤلاء ولكن ينتفع بالحطب والقصب اللتی فيها هؤلاء وغيرهم وليس لهم ان يمنعوها عن غيرهم لانهاليست بملک لهم (تحفة الفقهاء ج۳ ص۳۲۲)

عزیز الله مولوی محمد اخلاص برکتی

مولوی عبدالحکیم عفی عنه مولوی عبدالله مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء دولت اسلامی افغانستان

**دمرعي تعريف په مرور دزمان مرعي ملک گرځي كنه په مرعي كي حكومت تصرف كولاى شي كنه اودكلي اومرعي ترمنځ وياله مانع له مرعي والي گرځي كنه؟**

پوښتنه : په حضور دجناب جلالت ماب رئيس صاحب دارالافتاء وعلماء كراموته السلام عليكم ورحمة الله وبركاته محترم څرنگه چې دمرعی په مسئله کښی ځمااشتباه په بعض نقطوکی سته نوکه دلاندي استفتاء مطابق څه معلومات راکړه شی ډیر لطف به وی (۱) مرعی کوم شئ دی په مرور دزمان دچاملک گرځی اوکنه اودارنگه په ابادی سره اوابراءد بعضواعتبارلری که څنگه (۲) حکومت دوقت ئې چاته ورکولای شی که څنگه (۳) هغه

وياله چې حکومت ياخلق ئې وکارې اواهل قريه هم په شريکان وی اوداهل قريه پلونه اوګودرونه پردغه بياله ثابت وی آيادغه وياله دمرعی مانع کيدلاي شی که څنګه؟ فقط په درناوی.
(ستاسوورور مولوی عبد العلی هلمندي)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب والله الموفق للصواب داستفتاء په اول سوال کی دری سوالونه صراحة دی هغه دا(۱) مرعی کوم شئ دی (۲) مروردزمانی اعتبارلري کنه اوپه مروردزمانی دچاملک ګرځی کنه (۳) ابراء د بعض اعتبارلری اوکنه اويوسوال ضمنی دی هغه دادی چې مرعی په ابادی سره دچا ملک ګرځی اوکنه جواب داول جزء دادی (۱) مرعی هغه شئ دی چې مقبره دمړووی ددغه ښار(۲) مرعی هغه ځای دی چې ځای دلوبود کوچنيانووی (۳) مرعی هغه ځای دمواشی ددغه ښاردی تفصيل دادی چی ځمکه پردوه قسمة ده (۱) ځمکه هغه ده چې دچاملک وی (۲) ځمکه هغه ده چې دچاملک نه وی هغه ځمکه چې دچاملک وی هغه بيا پردوه قسمه ده (۱) ځمکه هغه ده چې هغه اباده ځمکه وی (۲) ځمکه هغه ده چې خرابه وی اوهغه ځمکه چې دچا ملک نوی هغه هم پردوه قسمه ده (۱) ځمکه هغه ده چې دمنافع څخه دښاروی اومحتطبا لهم اوځای دمواشی ددغه ښاروی (۲) ځمکه هغه ده چې نه دمنافع څخه دښاروی اونه ځای دمواشي ددغه ښاروی چې دغه ځمکی ته مړه ځمکه وايي نوهغه ځمکه چې دمنافع دښاروی اوځای دمواشی وی هغه مرعی ده لکه په( بدائع الصنائع ج۶ ص۱۹۲ )کی وايي:

الکلام فی الموضعين فی بيان انواع الاراضی وفی بيان حکم کل نوع منها (۱) اماالاول فالاراضی فی الاصل نوعان ارض مملوکة وارض مباحة غيرمملوکة والمملوکة نوعان عامرة وخراب والمباحة نوعان ايضاًنوع هومن مرافق البلدة محتطبا لهم ومرعی لمواشيهم ونوع ليس من مرافقها وهوالمسمی بالموات آه اودارنګه په الفقه الاسلامی کی ليکلی دی( ج۵ ص۵۴۲ ) الاراضی نوعان ارض مملوکة وارض مباحة و المملوکة نوعان عامرة وخراب والمباحة ايضا نوعان نوع هومن مرافق البلد للاحتطاب ورعی المواشي ونوع ليس من مرافقها وهو الارض الموات اومايسمی الآن املاک الدولة العامة والمقصود بالارض العامرة هی التی ينتفع بها من سکنی اوزراعة اوغيرها واماالارض الخراب فهی المعروفة بالارض المملوکة العامرة وهی التی انقطع ماءها اولم تستعمل لسکنی اواستثمار اوغيرها

اوهمدارنګه په تحفة الفقهاء(ج۳ ص۳۲۱ )کی لیکلی:

واماالحكام الاراضى فهى انواع ارض مملوكة عامرة لايجوز لاحد التصرف فيها والانتفاع بها الابرضاصاحبها والثانية ارض خراب ا نقطع ماءها وهى ملك صاحبها لاتزول عنه الاباز الته وتورث عنه اذامات وهذااذاعرف صاحبها وان لم يعرف فحكمها حكم اللقطة والثالثة الارض المباحة وتسمى الموات وهى نوعان اولهمامايكون تبعا لبعض القرى مرعى لمواشيهم ومحتطبا لهم فهى حقهم لايجوز للامام ان يقطعها من احد لان فى ذلك ضررا بهؤلاء ولكن ينتفع بالحطب والقصب التى فيها هؤلاء وغيرهم وليس لهم ان يمنعوها من غيرهم لانها ليست بملك لهم والحد الفاصل ان يسمع صوت من ادنى الارض المملوكة اليه فمالم يسمع صوته فيه فهى ليست بتابعة لقريتهم والثانى مالايكون تبعا لقرية من القرى فهى على الاباحة من احياها باذن الامام فعند ابى حنيفة رحمه الله تعالى تكون ملكا له وعند هما بغير اذن الامام تصير ملكا له ويصير هواحق بهامن غيره ملكا -

جواب ددوهم جزء دادی چې مروردزمانی اعتبار نه لری په مرعی کی لکه په مجلة الاحكام ۱۶۷۵ م کی لیکلی:

لااعتبارلمرور الزمان فى دعاوى المحال التى يعود نفعها للعموم كالطريق العام والنهر والمرعى مثلا لوضبط احد المرعى المخصوص بقرية وتصرف فيه خمسين سنة بلانزاع ثم ادعاه اهل قرية تسمع دعواهم اوهم دارنګه په الفتاوى الكاملية ص۱۱۸ کښی لیکلی سئلت عن الدعوى فى الطريق والنهر والمرعى ونحوها من المنافع العائدة الى العموم هل يعتبرفيها مرور الزمان حتى لاتسمع فيها الدعوى بعدخمسة عشرعام اوبعد ستة وثلاثين سنة فالجواب انه غير معتبر فيها فتسمع الدعوى فيها ولوبعد مرور خمسين سنة كمافى المجلة للاتاسى من المادة ۱۶۷۵-

جواب ددريم جزء دادی چې ابراء دبعضواعتبارنه لری ځکه دغه بعض ملکیت نه لری لکه په الفقه الاسلامی ج۵ ص۵۴۳ کي لیکلی دی:

ولكن ينتفع بالحطب والقصب الذى فى هذه الارض من قبل اهل البلدة وغيرهم و ليس لهم ان يمنعوها عن غيرهم لانها ليست مملوكة لهم آه اوهمدارنګه په تحفة الفقهاء کی وائی(ج۳ ص۳۲۲ )وليس لهم ان يمنعوها عن غيرهم لانها ليست بملك لهم ..آه

جواب داستفتاء ددوهم جزء چې حکومت دوخت ئې چاته ورکولای شی کنه جواب ئې دادی چې نه شی ورکولای لکه په( الفقه الاسلامی ج۵ ص۵۴۲ )کی لیکلی:

الارض الموات نوعان احدهما ماكان من مرافق اهل بلدة يستعمل مرعى لمواشيهم ومحتطبا لهم اومقبرة لموتاهم اوملعبا لصغارهم سواء كانت داخل البلدة ام خارجها فيكون حقالهم لامواتا فلايجوز للامام ان يقطعه لاحد لمايترتب عليه من الاضرارباهل البلدة آه اوهمدارنكه په تحفة الفقهاء (ج٣ ص٣٢٢)كښې ليكلي والثالثة الارض المباحة وتسمى الموات وهي نوعان احدهما مايكون تبعا لبعض القرى مرعى لمواشيهم ومحتطبا لهم فهي حقهم لايجوز للامام ان يقطعها من احد لان في ذلک ضرر ابهؤلاء ولكن ينتفع بالحطب والقصب التي فيها هؤلاء وغيرهم وليس لهم ان يمنعوها عن غيرهم لانها ليست بملک لهم ...آه

جواب داستفتاء ددريم جزء آيا دغه وياله دمرعى مانع كيدى شي كنه جواب ئې دادى هر كله چې مرعى ده منافع څخه دښارسوه اوس كه مرعى دبياله پرهره غاړه وى كه پردى غاړه وى اوكه پرهغه غاړه وى اومواشي پرتلاى شي اووياله مانع نه وى دمواشي نودغه واله مانع دمرعى نه شوه:

والحد الفاصل فيما يعتبر قريبا من البلدة هوالمكان الذى يسمع فيه الزجل صوت الشخص الذى يناديه من اخر ارض مملوكة الخ(الفقه الاسلامى ج٥ ص٥٤٣ )وقال القاضى فخرالدين واصح ماقيل فيه ان يقوم الرجل على طرف عمران القرية فينادي باعلى صوته الى اى موضع ينتهى اليه صوته يكون من فناء العمران لان اهل القرية يحتاجون الى ذالک الموضع لرعى المواشى اوغيره الخ (الفتاوي الهندية ج٥ ص٣٨٦)



مولوى زاهدالحقانى مولوى محمد اخلاص بركتى مولوى عبدالحكيم عفى عنه مولوى احمد نورى عفى عنه مولوى نورمحمد ثاقب رئيس دارالافتاء دولت اسلامى افغانستان

## ددښتونواوغرونولرګي له مباحاتوڅخه دي كنه ؟

پوښتنه: محترم رئيس صاحب دارالافتاء السلام عليكم ورحمة الله وبركاته محترم در منطقه ولسوالى معروف بين اشخاص تمام قريه ها درباره چوب ها كوه ودشت خيلى جنجال ها ميباشد بعضى مردم ميگويد كه چوب كوه ودشت مربوط قريه بايان در تصرف ماد آباواجداد ميباشد بكدام كس نميدهيم وبعض خلق ميگويد كه چوب هاى كوه ها ودشت ها مباح است ازين سبب درين شان

خیلی جنجال ها وجنگ ها میباشد وعلماء کرام هم دوطرف است بعض علماء عرف رااعتبار میدهند وایضاً به تصرف ازقدیم اعتبار میدهند به اتکاء مسائل ذیل مسئله مجمع الرسائل ص۱۱۴ وص۱۳۲ وبعض علماء اعتبار بظاهر الروایات اعتبار میدهند وحوب های کوه ودشت مباح گردانده اند بحکم مسائل ذیل مسئله مادة ۱۳۴۳ ومادة ۱۲۴۴ لهذا موضوع بحضور شامحترم راجع شد طوریکه که لازم دانی هدایت فرمائید والسلام (ازطرف ولسوالی معروف محکمه ابتدائیه)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب ومنه الصدق والصواب

آن حوب هاومانند آن که درکوه ها ودشت های میباشد مباح اند هرکس ازان استفاده میتواند وضررسان نیست نسبت آن ها به یک قریه ویاجماعة تاثابت نشود ملکیت شخصی ایشان ودرآن امورکه منفعت آن عام میباشد مرورزمان معتبرنیست مروقت دعوی قابل سماع میباشد هرچه عرف است پس گفته میشود که هرعرف هم معتبرنیست چنانچه تفصیل درهمان مجموع رسائل ابن عابدین موجوداست درجلد دوم ازص ۱۱۴ تاص ۱۴۷ :

المباح هوالمال الذی لم یدخل فی ملک شخص معین ولم یوجد مانع شرعی کالماء فی منبعه و الکلاء والحطب والسجرفی البراری الخ الاستیلاء علی الکلاء والاجام الکلاء هو الحشیش الذی ینبت فی الارض بغیرزرع لرعی البهائم والاجام الاشجار الکثیفة فی الغابات اوالارض غیر المملوکة وحکم الکلاء ان لایملک وان نبت فی ارض مملوکة بل هومباح للناس جمیعا لهم اخذه ورعیه و لیس لصاحب الارض منعهم منه لانه باق علی الاباحة الاصلیة وهو الراجح فی المذاهب الاربعة لعموم ا لحدیث الناس شرکاء فی ثلاثة الماء والکلاء والنار واما الجام فهی من الاموال المباحة انکانت فی الارض غیرمملوکة فلکل واحد حق الاستیلاء علیها واخذ مایحتاجه منها ولیس لاحد منع الناس منها الخ( الفقه الاسلامی ج۵ ص۵۰۲ )ومثله فی البحرالرائق ج۸ ص۲۱۳ الاشجار التی تنبت بلاغرس فی الجبال المباحة غیر المملوکة مباحة( مجلة الاحکام ۱۲۴۳م) والحطب فی ملک رجل لیس لاحد ان یحتطبه بغیر اذنه وان کان فی غیر ملک فلابأس به ولاتضرنسبته الی قریة اوجماعة مالم یعلم ان ذالک ملک لهم و کذلک الزرنیخ والکبریت والثمار فی المزوج والاودیة مضمرات ویملک المحتطب الحطب بمجرد الاحتطاب وان لم یشده ولم یجمعه (ردالمحتار ج۵ ص۳۱۳ )وکذافی الطحطاوی ج۴ ص۲۱۸ والهندیة ج۵ ص۳۹۲

وشرح المجلة لسليم باز م ۱۲۴۴ يسوغ الاحتطاب من اشجار الجبال المباحة لكائن من كان ويملک الحطب بمجرد الاحتطاب ای بجمعه والربط ليس بشرط( مجلة الاحكام م١٢٥٣ )ليس لواحد قبل اخذالشى المباح واحرازه ان يمنع الاخر عنه( مجلة م١٢٥٥ ومثله فى ١٢٥٦) لكل واحد كائنامن كان ان يقطف فاكهة مالاصاحب له من الاشجار التى فى الجبال المباحة وفى الاودية والمراعى التى لاصاحب لها م( ١٢٥٩ )-

هرچه آن که مرور زمان معتبر نیست:

سئلت عن الدعوى فى الطريق العام والنهر والمرعى ونحوها من المنا فع العائدة الى العموم هل يعتبر فيها مرور الزمان حتى لاتسمع فيها الدعوى بعدخمسة عشر عاماوبعد ست وثلاثين سنة الجواب انه غير معتبر فيها فتسمع الدعوى فيها ولوبعد مرور خمسين سنة كمافى المجلة م١٦٧٥ الفتاوى الكاملية ص١١٨ والله اعلم وعلمه اتم

مولوی احمد نوری عفی عنه مولوی نذ احمد الحقانی مولوی عبدالحکیم عفی عنه مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء دولت اسلامی افغانستان

## دغره له لرگيو خخه خوک منع کولای شي کنه اوتقسيم يکي کول خنگه دی؟

پوښتنه : علماء کرام درین مسئله حکم شرعی چیست مردمان که درمناطق اطراف ولایت کوهستان افغانستان حصه های کوه ها وسله های رابقدرضرورت دائمی زمستانی هرقریه ازمدت قدیم نسبت هیزم وخاروعلف های کوهی راطور متعین تقسیم دارند که هرقریه ازحصه خود تجاوز کرده نمیتواند که به حصه قریه دیگری برود استفاده کند آیا مطابق شرع خواهد بود یاخیر درصورتیکه ازشرع مخالف نباشد حکومت وقت میتواند آن تقسیم راباطل کند یاخیر بینواتوجروا۔ (علماء ولايت غور)

بسم الله الرحمن الرحيم

جواب داستفتاء دارنگه دی په ۳ شیانوکی لکه اوبه اورلرگی په دغوکی تول خلق شریک دی په دی شرط چې داغه ۳ شیان به محرزاوساتلی نوی اوشخصی به نه وی مثلالکه اوبه په کوراومنگی کی به نه وی نوبیاخلق شریک دی اوکه شخصی وی بیاخلق پکښی شریک نه دی اوس که هرچاداغه مشترک شیان تقسیم کړه ویش اوتقسیم ئې صحیح نه دی تقسیم

## دفټ بال والي بال اونورسپورټي لوبوحکم

پوښتنه :څه وايي علماء دين متين په باره دکراته بازی اوفټ بال اوزيباى اندام اووالى بال اوداسى نوری بازی دشريعت غراء محمد ی له مخی جواز لری اوکه څنګه اوکه جواز لري نو په کوم نيت اوشرائطو جوازلری ؟بينوا توجروا

(المستفتى اطلاعات وکلتور قندهار)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب : ومنه الصدق والصواب که دداسی بازی څخه کومه معتد بها فائده مقصودوی بيا جائزدی خوځو شرطونه لری يوداچې په دی کښې کوم امرخلاف شرع خلط نه وی ستر عورت به ضروری وی اوددی بازی په سبب به په ضروریاتوداسلام کښې لکه لمونځ وغيره شو خلل نه واقع کيږی اوبل داچې تشبه بالکفاربه هم نه وی چې په لباس اوطرز وضع کښې انګريزيت وغيره نه وي:

والمصارعة ليست ببدعة الاللتلهى فتكره الخ (قوله والمصارعة ليست ببدعة ) فقد صرع عليه السلام جمعا منهم ابن الاسود الجمحى ومنهم ركانة فانه صرعه ثلاث مرات متواليات لشرطه انه ان صرع اسلم كمافى شرح الشمائل للقارى قال الجراحى ومصارعته عليه السلام لابى جهل لااصل لها (قوله فيجوز فى كل شئ ) اي مما يعلم الفروسية ويعين على الجهاد بلاقصد التلهى الخ اقول قدمنا عن القهستانى جواز اللعب بالصولجان وهو الكرة للفروسية الخ واماشالة الحجر باليد ومابعده فالظاهر انه ان قصدبه التمرن والتقوى على الشجاعة لابأ س به(ردالمحتار كتاب الحظر والاباحة ج۵ ص۲۸۶ طبع باكستانى ) امااذا قصد التلهى اوالفخر اولترى شجاعته فالظاهر الكراهة لان الاعمال بالنيات فكما يكون المباح طاعة بالنية تصير الطاعة معصية بالنية (قوله فيباح فى كل الملاعب ) اى اللتى تعلم الفروسية وتعين على الجهاد الخ وفى القهستانى عن الملتقط من لعب بالصولجان يريد الفروسية يجوزو عن الجواهر قدجاء الاثر فى رخصة المصارعة لتحصل القدرة على المقاتلة دون التلهى فانه مكروه (ردالمحتار ج۵ ص۲۸۵ ) وذكر الاثر المذكور فى ج ۵ ص ۲۷۹ من رد المحتار ايضا-

اوهغه شرطونه چې موږپه سرد فتوی کښې ذکرکړل اوئمدارنګه نورتفصيل داذکرشوی په فتاوى دارالعلوم ديو بنددويم جلد يعنى په امداد المفتيين ص۱۰۰۰ - ۱۰۰۱ - ۱۰۰۲- کښې اودابيان فى المجله په فتاوى دارالعلوم ديو بندج اول يعنى عزيز الفتاوى ص۷۵۱

کښې هم ذکرده.



مولوی عبدالحکیم عفی الله عنه مولانا محمد مسلم حقانی مولانا عبدالله مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء دولت اسلامی افغانستان

## دسګریټ تاش شطرنج اوکتار حکم څه دی؟

پوښتنه: محترم مفتی صاحب السلام علیکم بعد اعرض اینکه از جناب تان درباره حرمت ویا اباحت سگریت وتاش وشطرنج کتار تفصیلا معلومات میخواهم همرای صفحه کتاب های والسلام.

(ازطرف عبد الله خادم تحریک طلباء)

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله رب العالمين وصلى الله على سيدنا محمد وعلى اله وصحبه وسلم

الجواب باسم ملهم الصواب

تاش وشطرنج وکتار هرسه شان مکروه تحریمی هستند ومرتکب مکروه تحریمی همان اندازه گنهکار میشود مثل که بترک واجب گنهکار میشود وسگریت فی نفسه ازجمله مباحات است مگر بخاطر نهی امیر المؤمنین باید ازکشیدن سگریت احتراز واجتناب کرده شود زیراکه اطاعت امام درغیر معصیت واجب است.

تاش کھیلنا بہت برا ہے اوراگراس پرہار جیت روپیہ پیسہ وغیرہ کی ہو توجوا ہے اوربالکل حرام ہے امداد المفتیین ص۱۰۰۲(*)

وکره تحريما والشطرنج (قوله والشطرنج) معرب شدرنج وانما كره لان من اشتغل به ذهب عناؤه الدنيوى وجاء ه العناء الاخروى فهو حرام وكبيرة عندنا وفى اباحته اعانة الشيطان على الاسلام والمسلمين (ردالمحتار ج ۵ ص۲۷۹ وعزيز الفتاوى ص ۷۵۱)

اورجوکہ بعضی کتب حنفیہ میں اس کے نسبت مکروہ لکھا ہے مراد اس سی مکروہ تحریمی ہے جو عملا مثل حرام کے

(*)ترجمه په تاش (پتو) لوبی کول ډیربد دی اوکه پردی دروپی پیسو اونوروګټل بایلل وی نوځماردی اوبیو مخ حرام دی،

ہے استحقاق عقوبت ناری میں اگر چہ علماً فرق ہے کہ منکر اس کا کافر نہیں کما صرح بہ فی ردالمحتار پس ہماری نزدیک ارتکاب اس فعل حرام کا موجب استحقاق عذاب جہنم ہے (۱) امداد الفتاوی ج ۴ ص۲۴۱ عادت دائمی کے طور پرشطرنج کھیلنی والاحنفیہ اورشافعیہ کہ نزدیک بالاتفاق فاسق ہے اوراس کے فاسق اومعلن ہونی میں کسی طور کاشک وشبہ نہیں ہے (۲) مجموعة الفتاوی لمولنا عبد الحی رحمه الله ج۲ ص۲۶۳ –

اللعب بالاربعة عشر مرام وهو قطعة من خشب يحفر فيها ثلاثة السطر ويجعل فی تلک الحفر حصی صغار يلعب بها اه منح قلت الظاهر انها المسماة الان بالمنقلة لكنها تحفر سطرين كل سطر سبع حفر (ردالمحتار ج۵ ص۲۷۹ كتاب الحظر والاباحة)–

ويأثم بارتكابه اي المكروه تحريما كماياثم بترک الواجب الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج۵ ص۲۳۷ –

بیری سگریٹ پینا فی حدذاتہ مباح ہے بدبو منہ میں رہ جائی توبدبو کے وجہ کراہت پیدا ہوتی ہے (۳) **کفایت المفتی** ج۹ ص۱۱۳ –

عن الحمری ان صاحب البحر ذكر ناقلا عن آئمتنا ان طاعة الامام فی غير معصية واجبة فلو امر بصوم يوم وجب (دالمحتار ج۴ ص ۲۸۲ )قال محمد واذاامر الامير العسكر بشئ كان على العسكران يطيعوه الاان يكون المامور به معصية (ردالمحتار ج۴ ص۳۷۳) والله اعلم وعلمه اتم واحكم

## له راديو څخه دقرآن سماع واجب ده كنه؟

پوښتنه: ازطريق راديو قرآن خوانده ميشود سماع واجب هست يانی ؟بينواتوجروا –
(المستفتی برادر شما عبد الواحد )

---

(۱) ترجمه اوکوم چي داحنافو په ځيني کتابو نوکي ددی په اړه مکروه ليکلی دی مرادله هغه څخه تحريمی مکروه دی کوم چي عملا دحرامو په رنګه دی ددوزخ داوردعذاب په مستحق ګرځيدوکی که څه هم علما فرق شته چي منکرددی کافرنه دی کماصرح به فی ردالمحتار نوزموږپه اند ددی حرام فعل ارتکاب ددوزخ دعذاب دمستحق والی باعث دی

(۲) ژباړه : دهميشنی عادت په توګه دشترنج لو ب غاړی داحنافو اوشوافعوپه نزدپه اتفاق سره فاسق اووده په فسق اومعلن والی کي په هيڅ توګه شک اوشبه نشته.

(۳) ترجمه بيړی اوسګريټ څکول فی حدذاته مباح دی بدبويی چي په خوله کي پاتی شی نودبد بويي په وجه کراهت پکي پيدا کيږی.

الجواب والله الموفق للصواب
دریډیو په ذریعه قرآن اوریدل جائز دی کنه اوکه جائزدی نوایاددی دپاره هم هغه آداب اوشرائط دی کوم چې بالمواجه دقاری داورید وپه وخت کی لازمیږی خلاصة الجواب جواب ظاهردی دکوم شئ ویل چې جائزوی دهغه شئ اوریدل هم جائز دی لکن څنګه چې په قاری باندی لازم دی چې مجلس دقراء ت کښی دآداب قرآنی پوره پابندی به کوی هم دارنګه په اوریدونکی باندی هم لازم دی چې په داسی مجلس کښی ریډیو نه چلوی چې هغه ځای کی عام خلق په لهولعب یاشوروشغب یاخپل کاروبارکښی مشغول وی اوقران اورید لوطرف ته متوجه نه وی هرکله چې ریډیو څخه قرآن اوریدل مقصوددی نوپه ادب سره دی ناست وی اوقران دی اوری اودهغی تمامواداېو رعایت دی کوی چې دتلاوت دقرآن دمجلس دپاره لازم وی (آلات جدیده ص۱۶۴)

**پردکانو محصول ایښودل څنګه دی؟**

پوښتنه : ومحترموعلماء کراموته دشوری مرکزی ولایت قندهار السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته امابعد داسی لیکلی کیږی چې زموږپه منطقه کښی داسی یولیک راغلی دی چې تاسی درجه بندی ددکانووکړی چې موږمعلومات څنی وکړی دوی داسی وایي چې ددکان ټوله اټکلی قیمت کیږی چې بیاپرسلو لکو ښپږلکه افغانی حکومت څنی اخلی نواوس دادی تاسی ته معلومات درکی چې دشریعت دنګاه څخه موږته معلومات راکړی چې جوازلری اوکیا ؟موږمعطل کړي دی . (دهلمند ولایت دناد علی ولسوالی)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب ومنه الصدق والصواب
مسئله داده چې کومی پیسی چې حکومتی خلق په نامه دمحصول ددکاندارانو څخه اخلی داشرعی جواز نه لری په(ردالمحتارج۳ص۲۸۱ )کښی لیکلی دی:
ولیس للامام ان یخرج شیئا من یداحد الابحق ثابت معروف وهکذافی الحموی شرح الاشباه والنظائرج۱ ص۳۷۳ اوهمدارنګه په شرح المجلة للاتاسی ج۱ ص۱۴۳ کښی لیکلی دی:
وفعل الامام منوط بالمصلحة والظلم لیس بمصلحة وهکذافی الفقه الاسلامی ج۶ ص۲۸۰ )
اوهمدارنګه په امدادالفتاوی ج۶ ص۳۲۵ کښی لیکلي دی:
(سوال ) (۵۱۷ )شرعا کرور (چنګی) گیری حرام است ونیز محصول شراب وافیون وانواع آن وتیکس خانها ناجائزاست لیکن

(سوال) (۵۱۷) شرعاً کرور (چنگی) گیری حرام است ونیز محصول شراب وافیون وانواع آن وتیکس خانها ناجائز است لیکن ازین وجوهات آمدنی کثیر میباشد اگر ہمہ راموقوف کرده شود درریاست چند کرورہا روپیہ رانقصان میشود درین باب کدام حیلہ شرعیہ است یانہ (تتمہ اولی ۳۱۵) (جواب) ازقواعد مقرر شرعیہ است کہ مصالح بامفسده معصیت معارض نمیتوان شد پس محاصل ناجائز بکدامی مصلحت جائز نمیتوان شد واللہ اعلم وعلمہ اتم واحکم

مولانا احمد نوری عفی عنہ مولانا محمود میوندوال

**پردیوالونو، کاغذونواودموټرانوپربیرغونودقرآن آیتونه لیکل**

پوښتنه آیتونه پردیوال یاپررسمی کاغذانویاپرجنډی دموټرانولیکل په شریعت کي څه ډول ممنوع دی؟

**(المستفتي مولوی شاکری معاون ریاست امربالمعروف)**

**بسم الله الرحمن الرحيم**

**الجواب بعون الله الوهاب دقرانی آیاتویابسم الله یااسماء الله تعالی لیکل پردیوالو باندی غیرمستحسن کاردی یعنی مکروه دی اودغه رنګه لیکل پرمحرابوباندی**

په (البحرالرائق ج۲ ص۳۷) کښې راغلی دی:

وفی النهاية وليس بمستحسن كتابة القرآن على المحارب والجدران لمايخاف من سقوط الكتابة وان توطأ ...آه

وهكذافی الطحطاوی علی الدرالمختار ج۱ ص۲۷۸ لیکلی دی قرآنی آیاتونه یااسماء الله تعالی یانفس حرفونه که څه هم جلاجلاوی پربساط یامصلی دلمانځه مکروه دی

په (فتاوی خانیه علی هامش الهندية ج۳ ص۴۲۵) کښي راغلی دی:

بساط اومصلی کتب علیه فی النسج الملک لله یکره استعماله وبسطه والقعودعلیه ولو قطع الحرف من الحروف اوخیط علی بعض الحروف حتی لاتبقی الکلمة متصلة لاتزول الکراهة لان للحرف المفرد حرمة.. آه-

لیکل دآیاتو یابسم الله یااسم دنبی کریم صلی الله علیه وسلم پرجنډی یااخبارو کی غیر مناسب کاردی باید بغیرده پرضرورت یي ونه لیکی ځکه په غیر مناسب ځایو کی غورځول

المفتی والسائل ص۴۸ کښې راغلي دي:
وبالجملة کل ما فیه تخلل فی تعظیم اسم العظیم اواسم النبی ذی الخلق العظیم لاشک انه یکره والله اعلم-
هغه اخبار ونه یا جنډي چې معظم شیان پکښې لیکلي وي وروسته تر استغناء به یې په پاکه مځکه کې پټه وي اویا به ی په ډیرواوبوکې اچوي هغه معظم شیان به محوکوي اوپه کوڅواولاروکې به يي نه اچوي په نفع المفتی والسائل ص۴۸ کښې راغلي دي:
ویتضرع علیه ان الرسائل التی یستغنی عنها وفیها اسم الله تمحی ثم تلقی فی الماء الکثیر اوتدفن فی الارض الطیبة کذافی نصاب الاحتساب والناس عنه غافلون فانهم عند مایستغنون من الرسائل یخرقونها وینشرون فی الطروق والنجاسات ولا یبالون فی ذلک.



مولوی محمد اخلاص برکتی مولوی نذاحمد الحقانی مولوی عبدالحکیم عفی الله عنه مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء دولت اسلامی افغانستان

## امربالمعروف اونهي عن المنکرڅنګه کیږي؟

پوښتنه : دامربالمعروف والنهی عن المنکر ریاست ددارالافتاء داستاذانو څخه دخپل کار لائحه اوهدایة غواړي اوکوم کارونه چې ضروري وي زمونږدکارپه شان کي زمونږ فهم نه وي هغه هم راته ولیکي. (المستفتی مولوی شاکری معاون ریاست امربالمعروف )

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون خالق الدنیا
چونکې مسئولینو دامر بالمعروف اونهی عن المنکر څوپوښتنې په باب دامربالمعروف اونهی عن المنکر کړی وی هم دغه رنګه ئې طلب دنوروضروری امورو په دغه باب کړی وو نومونږ مخکې ترحل دپوښتنو څه ضروری شیان بیانوو امربالمعروف والنهی عن المنکر فرض کفائې دی یعنی که په مجلس کی بد کاروجوددرلودیوسړی په د غه مجلس کی پردغه بدکار انکار وکی دټوله مجلس غاړی خلاصی دی اوکه هیڅ یوسړی انکار پرو نکړی دټول مجلس خلق ګنهکاردی که یوسړی ځان وامر بالمعروف والنهی عن المنکرته معین کړی اویا امام ئې ورته معین کړی نو بیا پردغه سړی فرض عین دی

معین کړی اویا امام ئې ورته معین کړی نو بیاپردغه سړی فرض عین دی
په التفسیرات الاحمدیة ص۲۰۶ کښې راغلی دی:
اعلم انه قد تقرر بین العلماء ان الامر بالمعروف والنهی عن المنکر من فروض الکفایة والایات الدالة علی فرضیته غیر مقصورة وکذاالاحادیث ففی هذاالباب الخ ثم فی ص۲۰۷ ومن تصدی نفسه للامر بالمعروف والنهی عن المنکر واشتغل بهذه الحرفة اونصبه الامام لاجله یکون ذلک علیه فرض عین ویسمی ذلک محتسبا -
فضائل دامر بالمعروف اونهی عن المنکر اووعیدات پرترک دامر بالمعروف اونهی عن المنکر ډیر زیات دی مګر پرطوردنمونی به دڅوحد یثونوذکر وکړو -
قال النبی صلی الله علیه وسلم ماجمیع اعمال البر عند الجها د الاکنفثة تلقی فی بحر لجّی وماجمیع اعمال البر والجهاد فی سبیل الله عند الامر بالمعروف اوالنهی عن المنکر الاکنفثة فی بحر لجّی وعن ابی بکر الصدیق رضی الله عنه قال سمعت رسول الله صلی الله وسلم یقول ان الناس اذاره وا منکر افلم یغیروه یوشک ان یعمهم الله بعقابه وقال النبی صلی الله علیه وسلم ان الله لایعذب العامة بعمل الخاصة حتی یرواالمنکر بین ظهر انهم وهم قادرون علی ان ینکروه فاذافعلو اذلک عذب الله العامة والخاصة -
امر بالمعروف ونهی عن المنکر یواهم کاردکاروڅخه داسلام دی علامه النووی په شرح کی دمسلم شریف وايي چې باب دامر بالمعروف ونهی عن المنکر یواهم باب دی اکثر خلق په دی باب کی تقصیر کوی اوحال دادی چې دغه باب موقوف علیه دامردین دی ځکه چې خباثت ډیر شی اوګناهونه زیات شی نو بیابه عذاب دالله تعالی عام شی صالح اوطالح لره دپاره دطالب دآخرة لائق کاردادی چې ډیره اعتناء په دغه باب کی وکی دچاسره مداهنت دوجی ددوستی اوصداقت ونکړی اونه يي دپاره داطلب دجاه اوریاست وکړی آداب اوخصال دهغه چاچې امربالمعروف اونهی عن المنکر کوی (۱) په شرح شرعة الاسلام کی وايي چې امربالمعروف اونهی عن المنکر په نرمی کوی دجذ بی څخه به کارنه اخلی ځکه غلظة اوجذبة فسادزیاتوی (۲) اوخپل نفس ته به اطمینان پرصبرورکوی (۳) توثق به پرثواب دالله تعالی کوی ځکه څوک چې توثق پرثواب وکی نو بیاهر څومره تکلیف وده ته اسان ښکاریږی (۴) علا ئق به دخلقوسره کموی (۵) طمع به دخلقوڅخه قطع کوی (۶)اراده به داعلاء دکلمة الله کوی (۷) حلم اوبردوباری به په دغه باب کی کوی (۸) علم

اوپوهنه به په دغه باب کی لری (۹) اولابه خپله عمل په کوی دغه رنګه نورآداب هم دپاره ددغه باب په ډیروکتابوکی په تفصیل سره ذکر شوی دی چې ذکریی په د غه مقام کی نه ځائیږی دپاره دمسئولینودامر بالمعروف اونهی عن المنکر پکارده چې مطالعه د کتابوپه شان کی ددغه باب وکی دغه باب یو اهم کاردی باید په ډیر احتیاط ترسره ورسیږی .



مولوی عبدالحکیم عفی الله عنه مولوی ندا محمد الحقانی مولوی محمد اخلاص برکتی مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء دولت اسلامی افغانستان

## فوټوګان (عکسونه ) اخستل یااستعمالول

پوښتنه : کوم خلک چې بې ضرورته فوټوګان اخلی یاپه حکومتی ځایوکي عکسونه وی دهغوپه شان کي دشریعت څه حکم دی

(المستفتی مولوی شاکری معاون ریاست امربالمعروف )

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب باسم ملهم الصدق والصواب

دلته دوی خبری دی اول جوړیدل دبتانودی دوهم استعمال دهغه شیانو چې بتان پرنقش شوی وی جوړیدل دبتانو مطلقا حرام دی که غټان وی که واړه وی که پرکاغذوی که پردیوال وی که پرفرش وی که مجسمه وی که په قلم وی که په ماشین وی لکن که یي چیری سرپری وونو حرام نه دی کچیري یوازی تصویر دسریادنصف اعلی وو په هغه کی اختلاف دی مولانا مفتی محمد شفیع رحمه الله تعالی په فتاوی دارالعلوم دیوبندامداد المفتیین کښی تصریح په حرمت کړی ده اودحرمت قول یي راجح بللی دی هر چې فوټوګان دضرورت دی لکه فوټوګان دپاسپورټ مولانا محمد شفیع رحمه الله تعالی جائزکړی دی ځکه په وخت دضرورت کي عمل په قول ضعیف جائزدی په ردالمحتار ج۱ ص۴۷۹ کښی راغلی دی:

قال القهستانی وفیه اشعاربان لاتکره صورة الرس وفیه خلاف کمافی اتخاذ ها کذافی المحیط قال فی البحر وفی الخلاصة وتکره التصاویر علی الثوب صلی فیه اولا انتهی وهذه الکراهة تحریمیة وظاهر کلام النووی فی شرح مسلم الاجماع علی تحریم تصویر الحیوان وقال سواء صنعه لما یمتهن اولغیره فصنعه حرام بکل حال لان فیه مضاهاة لخلق الله تعالی وسواءکان فی ثوب اوبساط اودرهم اواناء اوحائط

اوغیرھاآه په (بریقه شرح طریقه محمدیة ج۴ ص۷۴ )کښې راغلی دی ومن آفات الید تصویر صور الحیوانات عن ابن مسعود رضی الله عنه مرفوعا ان اشد الناس عذابا یوم القیامة المصورون صورة ذی روح تام فی نحو ورق اوقرطاس اوحجر لان الاصنام بصورة الحیوان وشمل النهی التصویر علی مایداس ویمتهن کبساط ووسادة وآنیة وطرق ونمط وستروسقف وغیر ها ومن وهم اختصاص النهی بغیر الممتهن فقدوهم خرج بالتام مقطوع نحوراس مما لایعیش بدونه..آه –

په فتاوی دیو بند امداد المفتیین ص۹۹۹ کښې راغلی دی:

*اصل درین مسئله این است که کشیدن تصویر و ساختن آن بالات فوتووغیره مطلقا ناجائز است صرح به العلامة العینی فی شرح البخاری باوضح واتم وهیچ چیزازان مستثنی نه ساختند البته علامه شامی درمکروهات صلوة روایتی ازقهستانی آوردند عبارتش این است:*

ویاتی غیرذی روح لایکره قال القهستانی وفیه اشعار بانه لاتکره صورة الرأس وفیه خلاف کمافی اتخاذه کذافی المحیط –

*ازین عبارت معلوم شد که کشیدن تصویر چهره یاسرباماند آن مختلف فیه است که بعضی حضرات فقهاء تجویز کرده اند اگرچه تحقیق درین باب نیزجانب عدم جواز است که صاحب بدائع بان تصریح کرده اند وروایات حدیث نیزبرعدم جواز صراحة وردشده اند مگر درمسئله پاسپورت که مسلمان بسوی آن محتاج است وبدون کشیدن تصویر قبول کردنش صورت نه بندد بناچارومجبور اگربرقول ضعیف عمل کرده شود جائزباشد...الخ*

هرچې استعمال دبتانودی استعمال دبتانوهم غیر جائز دی لکن بعض استثناءات لری څکه کچیری سردبت کټ شوی وی استعمال ئې جائزده دغه رنګه داسی کوچنی بت چې پرمځکه پروت وی داعضاؤ کامل تمیزیه نظر کی نه راځی که په ځای اهانت کی وی لکه فرش یاپټ وی هم یې استعمال جائزدی په دغه صورتونو کی چې استعمال یې رواوی مانع ددخول دملائکه ووهم نګر ځی په دغه بیت کی چې دغه قسم بوتان موجودوی لمونځ پکښې جائزدی مګرپه یوصورت کی چې بت پر بساط وی سجده پرعین بت لګیږی لمونځ مکروه استعمال یې جائزدی په ردالمحتار (ج۱ص۴۷۹ )کښې راغلی دی:

وکلام النووی فی فعل التصویر ولایلزم من حرمته حرمة الصلوة فیه بدلیل ان التصویر یحرم ولوکانت

الصورة صغيرة كالتي على الدرهم اوكانت في اليد اومستقرة اومهانة مع ان الصلوة بذلک لاتحرم بل ولاتكره الخ ثم قال وفي البحر قالو اواشدها كراهة مايكون على القبلة امام المصلى ثم مايكون فوق رأسه ثم مايكون عن يمينه ويساره على الحائط ثم مايكون خلفه على الحائط اوالستر....آه -

په بل موضع کښې ج۱ ص۴۸۰ راغلي دي:

ظاهر كلام علماء نا ان مالايؤ ثر كراهة في الصلوة لايكره ابقاء ه وقدصرح في الفتح وغيره بان الصورة الصغيرة لاتكره في البيت قال ونقل انه كان على خاتم ابى هريرة ذبابتان آه ولو كانت تمنع دخول الملائكة كره ابقاء هافي البيت لانه يكون شر البقاع وكذاالمهانة ...الخ

په پريکولو کې د سردبت يوازې خيطه پرغاړه کافي نده بلکه خراييدل د سرضروري دي دغه رنګه دسترګو ياحاجبينو خراييدل هم کافي نه دي په ردالمحتار ج۱ ص۴۷۹ کې راغلي دي:

قوله (اومقطوعة الرأس) اى سواء كان من الاصل اوكان لها رء س ومحي وسواء كان القطع بخيط خيط على جميع الرأس حتى لم يبق له اثر اوبطليه بمغرة اوبنحته اوبغسله لانها لاتعبد بدون الرأس عادة واما قطع الرأس عن الجسد بخيط مع بقاء الرأس على حاله فلاينفي الكراهة لان من الطيور ماهو مطوق فلايتحقق القطع بذلک وقيد بالرأس لانه لااعتبار بازالة الحاجبين اوالعينين لانها تعبد بدونها وكذالااعتبار بقطع اليدين اوالرجلين (بحر)



مولوی محمد اخلاص برکتی مولوی نذ احمد الحقانی مولوی عبدالحکیم عفی الله عنه مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء دولت اسلامی افغانستان

## دبيت المال په استعمال کې خيانت څنګه راځي

پوښتنه : دبيت المال استعمالول په کوم ځای کې خيانت بلل کيږي ؟
(دتحقيق مديريت داستخباراتو څانګه )

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب حامدا ومصليا

دبيت المال داستعمال ځايونه ډير زيات دي ځکه بيت المال څلورقسمه دي دهرقسم دپاره خپل مصارف شته چې استعمال يې په خلاف ددغه مصارفو کې خيانت بلل کيږي لکن ددغه اقسام اومصارف تفصيل دلته ضروري نه دي البته دابه ووايو بايد هرشئ دبيت المال چې

مستعملیږی اسلامی غرض او هدف په نظر کی و نیسو-



مولوی محمد اخلاص برکتی مولوی عبدالحکیم عفی الله عنه مولوی نذاحمد الحقانی مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء دولت اسلامی افغانستان

# کتاب الوصیة

## خپلي ښځي ته وصیت په دریمه دمال څنګه دی؟

پوښتنه : محترم رئیس صاحب دارالافتاء ته داعرض وړاندی کیږی چې یو سړی چې خپلی زوجی یعنی ښځی ته وصیت په دریمه حصه دمال سره وکړی ایادغه وضیت صحیح کیږی او کیا ؟

(المستفتی عبد الله)

بسم الله الرحمن الرحیم

محترم مستفتی صاحب نوموړی شخص چې وخپلی زوجی ته وصیت په دریمه حصه دمال سره وکړی نودغه وصیت یی صحت نه لری یعنی نافذندی په رود شرعی ځکه چې داوصیت وارث لره دی اوهغه وارث لره چې په وخت دمرګ دموصی یعنی وصیت کونکی کی هم وارث دی نو دغسی وارث لره وصیت صحیح اونافذنه دی مګر نفاذ لره یی یو طریقه شته هغه داچې نورورثه دموصی اجازه وکړی نوبیا صحیح اونافذدی لکن اجازه دورثه وومبنی پر ۲ شرطوده ۱ یوداچې اجازه کونکی به داهل څخه دتبرع وی (یعنی صحیح عاقل بالغ به وی) اوعالم به وی په هغه شئ سره چې وصیت کونکي په هغه سره وصیت کړی دی ۲ اوبل داچې وارث به اجازه پس له مرګه دموصی کړی وی:

یشترط لنفاذ الوصیة الایکون الموصی له وارثا للموصی عند موت الموصی اذاکان هناک وارث آخر لم یجز الوصیة فان اجاز بقیة الورثة الوصیة لوارث نفذت الوصیة فتکون الوصیة للوارث موقوفة علی اجازة بقیة الورثة لقوله صلی الله علیه وسلم ان الله قداعطی کل ذی حق حقه فلاوصیة لوارث وقوله ایضاً لاتجوز وصیة لوارث الاان یشاء الورثة لاوصیة لوارث الاان یشاء الورثة الخ( الفقه الاسلامی ج۸ ص۴۱) وهکذافی الفتاوی تنقیح الحامدیة ج۲ ص۲۸۶ ویشترط لصحة الاجازة شرطان الاول ان یکون المجیز من اهل التبرع عالما بالموصی به بان

يكون بالغا عاقلا غير محجور عليه لسفه اوعته اومرض موت ولاتصح اجازة وارث لم يعلم بماوصى به الموصى الخ الثانى ان تكون الاجازة بعد موت الموصى فلاعبرة بأجازة الورثة حال حياة الموصى... الخ (الفقه الاسلامى ج۸ ص۴۲)

مولانااحمدنوری عفی عنہ

**دورثاء دتقسيم غوښتني پرمهال آياقاضي دصغيرله طرفه وصي ټاكلي شي؟**

پوښتنه كچيرى بعض ورثه طلب دقسمت وكړى لكن په ورثه كښى صغير موجود ووآياقاضى صاحب كولاى سى چې دصغير دپاره وصى ودروى اوتقسيم وكړى كنه؟ ستاسوځخه دشرعى مسئله طمع لرم ثواب موروزى سه فقط. والسلام.

(المستفتى ملاعبد البصير)

بسم الله الرحمن الرحيم

بعون الله تعالى قاضى صاحب دطرف دصغير وصى درولاى سى چې حصه دصغير قبض كړى لكن په دى شرط چې دوه وارثان يايو وارث اويوموصى له وقاضى ته حاضرسى اوشاهدان پرموت دمورث اوپرعدد دورثه ووتير كړى اومال هم ددغه وارثان سره وى په وخت كښى دوجود ددغه شرائط به قاضى تقسيم وروكړى:

( ولوبرهناعلى الموت وعدد الورثة وهو) اى العقار قلت قال شيخنا وكذا المنقول بالاولى (معهما وفيهم صغير اوغائب قسم بينهم ونصب قابض لهما) نظر اللغائب والصغير (فان برهن) وارث (واحد) لايقسم اذلابدمن حضور اثنين ولو احدهما صغير اوموصى له الخ (الدر المختار على هامش ردالمحتار ج۵ ص۱۸۱ ج۵ ص۱۸۲) قوله بينهم ونصب) افادان القاضى فعل ذلك قال فى المحيط فلو قسم بغير قضاء لم تجز الاان يحضر اويبلغ فيجيز ( ردالمحتار ج۵ ص۱۸۲ ) ولو برهنا على الموت وعدد الورثة والدار فى ايديهم ومعهم وارث غائب اوصبى قسم ونصب وكيل اووصى يقبض نصيبه اى وكيل يقبض نصيب الغائب اووصى يقبض نصيب الصبى ولابدمن اقامة البينة عندابى حنيفة رحمه الله تعالى ولوكانو امشترين وغاب احدهم اوكان العقار فى يد الوارث الغائب اوحضر وارث واحدلم يقسم اى لم يقسم المال المشترك مع غيبة بعضهم فى هذه الصور كلها .....الخ ( تبيين الحقائق ج۵ ص۲۶۷ ) والله اعلم وعلمه اتم واحكم

مولوى احمدنورى عفی عنہ

**بي دقاضي له علمه آياجدصحيح كولاى شي چي ديتيمانوولي وورورد ميت كرځوى**

پوښتنه : محترمو علماؤ سوال دادی چې کوم وقت میت وصی و نه لری یاخویي پلاروی نومحترموعلماء دغه میت مال متروکه ولری اویتیمان هم موجودوی بیانوپلاردمیت چې جد صحیح دصغیر انودی ایادغه جد صحیح ورورد میت په حضودشهود عادله سرپرست دمال دیتیمانو ګرځولای سی کیا؟ اوداسرپرست ګرځول علم دقاضی غواړی کیا؟
(المستفتی عبدالباری)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب ومنه الصدق والصواب
مسئله داده چې پلاردمیت چې جد صحیح دصغیر انووی وروردمیت سرپرست دمال دیتیما نوګرځولای سی په دی لاندی ترتیب سره چې ولی دصغیر پلاردی اوکه پلارنووبیاوصی دپلاردی اوبیاکه هغه نه وو دهغه دوصی وصی به وی اوکه هغه نه ونو بیاجد صحیح دی لکن شهود اوعلم دقاضی نه غواړی ځکه چې دوصی په تعریف کی نفس قبول دوصیت راغلی دی بغیر دعلم قاضی اوشهودوڅخه:

اوصی الی زید ای جعله وصیا وقبل عنده صح فان ردعنده یرتد الخ (الدرالمختار بهامش ردالمحتار ج۵ ص۴۹۴) بمعنی جعل الغیر وصیا الی زیدای جعله وصیا وقبل عنده فان رده عنده ردلانه متبرع فی ذلک فان شاء دام علیه وان شاء رجع اذلیس للموصی ولایة الزام التصرف علی الغیرولیس فی الرجوع تغریر اذیمکنه ان یوصی غیره...الخ ( دررالحکام ج۲ ص ۴۴۷) وولیه ابوه ثم وصیه بعد موته ثم وصی وصیه ثم بعدهم جده الصحیح وان علاثم وصیه ثم وصی وصیه ثم القاضی اووصیه (الدر المختار ج۲ ص۲۰۳ وهکذافی الدر المنتقی شرح الملتقی ج۲ ص ۴۵۴ )اذاکان للقاصر مال کان للاب الولایة علی ماله حفظا واستثمار اباتفاق المذاهب الاربعة فقال الحنفیة تثبت هذه الولایة للاب ثم لوصیه ثم للجد ابی الاب ثم لوصیه ثم للقاضی فوصیه-

( الفقه الاسلامی ج۷ ص۷۴۹ ) والله اعلم وعلمه اتم واحکم

مولوی نذاحمد الحقانی مولوی احمدنوری عفی عنه

**خاوند خپله كور وا لا ددريمي وصي كرځولای شي كنه؟**

پوښتنه :یوه سړی خپله ښځه داسی وصی کړی ده چي زمادمال ددريمي اختيار ستادی

هرڅه چي په کوی نوآیا داوصیت صحیح کیږی او کنه ؟(المستفتی ملاغلام محمد آخند)

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب بعون الملک الوهاب

مړی چي خپله ښځه دخپلی دریمی وصی ګرځولی ده داوصیت صحیح کیږی ځکه چی دلته موصی له په حقیقت کي دده ښځه نه ده بلکه موصی له دلته جهت ده یعني هرهغه فعل دی چي په هغه سره تقرب حاصلیږی:

اتفق الفقهاء على صحة الوصية لجهة عامة كالمساجد ومدارس العلم والمشافى الخ فان لم يوجد شرط من الموصى يصرف على اصلاح وعمارة الجهة الموصى لها انشاء وترميما وخدمة من امام وموذن فى المسجد وشؤو ن المتعلمين فى دورالعلم لان العرف يحمله على ذلك ويصرفه القيم فى اهم مصالح الجهة باجتهاده الخ (الفقه الاسلامى ج۸ ص۶۱ وهکذ افى بدائع الصنائع ج۷ ص ۳۴۱ )والله اعلم وعلمه اتم



مولوی احمد نوری عفی عنه مولوی نذاحمد الحقانی مولانا محمود میوندوال مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء دولت اسلامی افغانستان

# کتاب الفرائض

## دمړی ۲ وروڼه ۲خوندی ۳ لوراني اویوه زوجه په میراث کي څومره څومره برخه لری

پوښتنه : بحضور جناب محترم رئیس صاحب دار الافتاء السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته محترمه! ملاعطا ء الله اخند مړدی پرمیراث باندی یي ورثه نه جوړیږی نوموضوع مو احتراما تاسوته عرض کړه امیددی دشریعت محمدی مطابق دهغه تقسیم خط راجوړکړی ورثه په لاندی ډول دی اول ۲ وروڼه دوهم ۲ خوندی دریم ۳ لورانی څلورم زوجه یونفر امید دی دپورته ورثه تقسیم خط راجوړکړی ترڅو دهغوترمابین مشکل رفع سی تاسوته دی الله جل جلاله ثواب درپه نصیب کړی والسلام.

(مولوی عبد الشکور دلوی ځارنوالی سرپرست)

بسم الله الرحمن الرحيم

په دغه صورت کی دمستفتی مسئله د (۲۴) ده ځکه ذوی الفروض په دغه صورت کی

یو زوجه او دري ۳ لورانی دی دزوجه اتم دلورانو دوه ۲ ثلث دی په سراجی کی راغلی دی:
( واذااختلط الثمن بکل الثانی اوببعضه فهو من اربعة وعشرین ) سراجی ص۱۹-
شپاړس ددرولورانودی دری دزوجة دی پنځه وعصبه ووته چې دوه ورونه اودوی خوندی دی پاته دی کسر پر دوو طائفو راغلی پر لورانو اوعصبه وو قانون دتصحیح دادی چې کسر پردوو طائفو راسی چیری په مابین ددغه دوو طائفو کښی تداخل وونو اکثر په اصلی مسئله کی ضرب کیږی لکه په سراجی ص ۲۳ کښی راغلی دی:(والثانی ان یکون بعض الاعد ادمتداخلا فی البعض فالحکم فیها ان یضرب اکثر الاعداد فی اصل المسئلة )
اکثر شپږدی ځکه ددوو ورونو څخه څلور خوندی جوړیږی حاصل دضرب دشپږو په اصلی مسئله کی ۱۴۴ کیږی طریقه دمعلوم والی دهری طائفی دحصی له تصحیح څخه داده چې نصیب ددغی طائفی له اصلی مسئلې څخه په مضروب کی ضرب کیږی حاصل دضرب یې حصه ددغی طائفی ده لکه په سراجی ص۲۴ کی راغلی دی:
(واذااردت ان تعرف نصیب کل فریق من التصحیح فاضرب ماکان لکل فریق من اصل المسئلة فی ماضربته فی اصل المسألة فماحصل کان نصیب ذلک الفریق




دهری لور حصه (۳۲) کیږی دمجموع (۱۴۴) څخه او دزوجة حصه (۱۸) کیږی دمجموع (۱۴۴) څخه او دهرورور حصه (۱۰) کیږی دمجموع (۱۴۴) څخه او دهری خور حصه (۵) کیږی دمجموع (۱۴۴) څخه

مولوی عبدالحکیم عفی الله عنه مولوی احمد نوری عفی عنه مولوی عبدالله مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء دولت اسلامی افغانستان

**دمړی دوروڼواوخوندوترمنځ تقسیم دمیراث**

پوښتنه :یکنفر فوت گردیده ورثه آن قرار ذیل مانده ازمتوفی دو۲ برادرمانده وسه نفر خواهران مانده وهفت نفر برادرزادگان مانده متروکه ومیراث باندازه حق شرعی مطابق حکم میراث مناسخه مسئله ترتیب فرمائید؟

**مسئله ۷**

**میت**

اخوان لاب وام - اخوات ثلاثه -لاب وام - سبعة اولاد اخوة لاب وام

برای هریک دوحصه -برای هریک یک حصه - محرومون

(المستفتی مولوی احمد الله اخند زاده رئیس دیوان تجارت تمیز )

بسم الله الرحمن الرحیم

اول به داووایو چې دغه مستفتی چې ویلی چې پر طریقه دمنا سخه مسئله ترتیب کړی نومناسخه دلته نشته اودغه لیکل شوی صورت دمسئلی په استفتاء کی صحیح اوصحیح دی ځکه چې په صورت مذکوره کښی دمړی دوه ۲ وروڼه اودری ۳ خوندی دیوه پلاراومور څخه دی خوندی په وروڼو خپلوسره عصبه کرځی اوترکه پر دوی تقسیمږی په تقسیم دللذکر مثل حظ الانثیین سره نومسئله یي درؤوس څخه کیږی دآسانی دمسئلی دپاره رؤوس اعتباریه اوه ۷ دی نومسئله یي داوو ۷ څخه شوه برابرپردوی تقسیمږی:

ومع الاخ لاب وام للذکر مثل حظ الانثیین یصرن به عصبة لاستواءهم فی القرابة الی المیت السراجی ص۱۰ :

اودغه اووه ۷ نفره وریرونه محروم دی په وجوددوروڼو دمړی سره الاقرب فالاقرب یرجحون بقرب الدرجة الخ السراجی ص۱۴ والله تعالی اعلم وعلمه اتم

مولوی احمد نوری عفی عنه مولوی محمد اخلاص برکتی مولوی نذاحمد الحقانی مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء دولت اسلامی افغانستان

**دمناسخي يوصورت**

پوښتنه : ومحترم رئیس صاحب ته ددارالافتاء السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته یوسړی

چې سید محمود آغا نومیړی اوپس دوفات څخه دده دمیراث تقسیم ترډیره وخت پوری نه دی شوی حتی چې وس یی لانور ورثه هم ډیروفات شوی دی اوفعلا څلور کسان پاته دی چې یو ابنُ الابن چې عبد الرسول آغانومیړی اوبل ابن ابن الابن چې سید احمد آغانومیړی اویوه بنت الابن چې راحتو نومیړی اویوه زوجة دابن الابن چې حضرتو نومیړی نوکه ددغه کسانو ترمابین خپل حقوق معلوم شي نوستاسی ډیر لطف اومهربانی به وی .والسلام.

(المستفتی مولوی احمد نوری عفی عنه)

بسم الله الرحمن الرحیم

الجواب بعون ملهم الصواب

اول(۱) سیدمحموداغا مسئله من(۸) تصحیح/۳۲/ ۶۹/۹۶/ ۲۸۸۰۰/۸۶۴۰۰/۲۵۹۲۰۰

میـــــــت

| زوجة | ابن | بنت | بنت |
|---|---|---|---|
| | محمد ایوب اغا | صاجبو | بی بی عائشه |
| ۱ | ۱۴ | ۷ | ۷ |
| ۴ | /۴۲/ | ۲۱ | |
| | | ۲۱۰ | |
| | | ۶۳۰۰ | |

(۷)

ثانی(۲) زوجة مسئلة من ۴ مافی الید ایضاً ۴

میـــــــت

| ابن | بنت | بنت |
|---|---|---|
| محمد ایوب | صاجبو | بی بی عائشة |
| ۲ | ۱ | ۱ |
| ۶ | ۳ | |
| | ۳۰ | |
| | ۹۰۰ | |

ثالث(۳) بی بی عائشة مسئله من ۳ مافی الید ۸ وبینهما تباین

ميـــــــــــت

| اخ | اخت |
|---|---|
| محمد ايوب اغا | صاحبو |
| ۲ | ۱ |
| ۱۶ | ۸ |
| | ۸۰ |
| | ۲۴۰۰ |

رابع(۴) محمد ايوب اغا مسئلة من۸ تصحيح من۴۰ مافى اليد ۶۴ وبينهما توافق بالربع

ميـــــــــــت

| زوجة | اخت | ابن | ابن | ابن | | بنت |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نجمو | صاحبو | عبدالرسول اغا | عبدالوهاب اغا | عبد الرؤف اغا | | راجتو |
| ۱ | | ۱۴ | | | | ۷ |
| ۵ | ليس لها ميراث | ۲۲۴ | مفقود ليس له ميراث | | ۷ | ۱۱۲ |
| ۸ | | ۶۷۲۰ | | ۱۴ | | ۳۳۶۰ |
| ۲۴۰۰ | | ۲۱۰۶۰ | | ۲۲۴ | | ۱۰۰۸۰ |
| | | ۶۴۸۰ | | | | ۳۰۲۴۰ |

خامس(۵) عبد الرؤوف اغا مسئلة من۲۴ تصحيح من۱۲۰ مافى اليد ۲۲۴ وبينهما توافق بالربع

ميـــــــــــت

| ابن | ابن | بنت | زوجة | ام | اخت | اخ | اخ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| سيد احمد اغا | نوراحمد اغا | بعد الموت | حضرتو | نجمو | راجتو | عبد الرسول اغا | عبد الوهاب |
| ۳۴ | ۱۷ | ۱۷ | ۳ | ۲ | | | |
| ۱۹۰۴ | ۳۴ | ۹۵۲ | ۱۵ | ۲۰ | | | |
| ۵۷۱۲ | ۱۹۰۴ | ۲۸۵۶ | ۸۴۰ | ۱۱۲۰ | | | |
| ۱۷۱۳۶ | ۵۷۱۲ | | ۲۵۲۰ | | | | |
| | | | ۷۵۶۰ | | | | |

ليس لهم ميراث

سادس(۶) صاحبو مافی الید ۹۶۰۰

میـــــــــــــت

| ابن الاخ | ابن الاخ | بنت الاخ |
|---|---|---|
| عبد الرسول اغا | عبد الوهاب مفقود | راحتو |
| ۹۶۰۰ | | |
| ۲۸۸۰۰ | | |
| ۸۶۴۰۰ | | |

عبد الوهاب مفقود، راحتو: لیس لهما میراث

سابع(۷) نجمو مسئله من ۳ مافی الید ۳۵۲۰ وبینهما تباین

میـــــــــــــت

| ابن | ابن | بنت |
|---|---|---|
| عبد الرسول اغا | عبد الوهاب اغا مفقود | راحتو |
| ۲ | لیس له میراث | ۱ |
| ۷۰۴۰ | | ۳۵۲۰ |
| ۲۱۱۲۰ | | ۱۰۵۶۰ |

ثامن(۸) بنت عبد الرؤف اغا التی ولدت بعد موته مسئله من ۶ مافی الید ۲۸۵۶

میـــــــــــــت

| اخ لاب وام | ام | اخ لاب | عمة |
|---|---|---|---|
| نوراحمد | حضرتو | سید احمد اغا | راحتو |
| ۵ | ۱ | | |
| ۲۳۸۰ | ۴۷۶ | | |
| | ۱۴۲۸ | | |

سید احمد اغا، راحتو: لیس لهما میراث

تاسع(۹) نوراحمد اغا مسئله من ۳ مافی الید ۸۰۹۲ وبینهما تباین

میـــــــــــــت

| اخ لاب | ام | عمة | عم | عم مفقود |
|---|---|---|---|---|
| سید احمد اغا | حضرتو | راحتو | عبد الرسول اغا | عبد الوهاب |
| ۲ | ۱ | | | |
| ۱۶۱۸۴ | ۸۰۹۲ | | | |

راحتو، عبد الرسول اغا، عبد الوهاب: لیس لهم میراث

حاصل دمناسخی دادی چې ټول مذکور کسانو څخه څلور کسان پاته دی اومجموع حساب (۲۵۹۲۰۰) دی دسید احمد اغاحصه (۳۳۳۲۰ ) د دعبد الرسول اغاحصه (۱۶۸۰۰۰)دحضرتوحصه(۱۷۰۸۰)ده دراحتوحصه(۴۰۸۰۰)ده والله اعلم

مولوی نذاحمد الحقانی مولوی محمد اخلاص برکتی مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء دولت اسلامی افغانستان

## دوراره په موجودیت وریره په میراث کي برخه نه لری

پوښتنه :



متروکه دمحمد یوسف اومتروکه دحلیمه ودغه ورثه ووته چې ۲ وراره ګان او۵ وریری ګانی دی نورورثه نه لری میراث په دغه کسانو کی چاته رسیږی

(المستفتی محترم الحاج عمادالدین اخندزاده صاحب)

بسم الله الرحمن الرحیم

بعون الملک العلی الاعلی

په مذکور استفتاء کی ټول ترکه دمحمد یوسف اوحلیمه ددغه وراړګانو کیږی چې اخترمحمد اوسردار محمد نومیږی چې دوی عصبه بنفسه دهغودی لکه په سراجی ص۱۴ کی لیکلی دی ثم جزء ابیه ای الاخوة ثم بنوهم وان سفلوا اووریر ی ګانی دذوی الارحام څخه دی اوذوی الارحام په څودرجی وروسته دی دعصبة ووڅخه لکه په سراجی ص۳۵ کی لیکلی دی والصنف الثالث ینتمی الی ابوی المیت وهم اولاد الاخوات وبنات الاخوة وبنوالاخوة لام په سراجی ص۴ کی دی (ثم ذوی الارحام الخ) یعنی په څومرتبو وروسته کی دعصبه وڅخه میراث دذوی الارحام دی والله اعلم بالصواب

مولوی احمدنوری عفی عنه مولوی نذاحمد الحقانی مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء دولت اسلامی افغانستان

**دخلوروزامنوادرېولونوترمنځ تقسیم دمیراث**

پوښتنه :حضورعالیقدر محترم رئیس صاحب دارالافتاء احتراما السلام علیکم ورحمة الله (امابعد ) څرنګه چې څوکاله دمخه مرحوم حاجی عبد الشکور په قضاء الهی فوت سوي دی ورثه منحصره په لاندی ډول دي:

مرحوم عبدالشکور

میـــــــــــــــــــــت

| ابن | ابن | ابن | ابن | بنت | بنت | بنت |
|---|---|---|---|---|---|---|
| عبدالرسول عرف حاجی ګل | احمد جان عرف لالاجان | یارمحمد | عبد الواحد | رحم بی بی | ګل اناره | بی بی فاطمه |

فلهذا ستاسودلو مقام څخه هیله مندیو چې دپورته ورثې دکتب معتبره څخه اسهام
او حصص شرعی راته تعین کی والسلام
المستفتی حقیر العباد احمد الله
رئیس دیوان تجارت تمیز
بسم الله الرحمن الرحیم
بعون الملک العلی الاعلی
محترم مستفتی صاحب نوموړی ۳ بنات دمیت عصبه شوي دی په خپلو دغه ورونو سره
چې په استفتاء کی ذکر شوید ی ځکه چې خور په وروړ سره عصبه گرځی لکه په سراجی
ص۸ کی لیکل شوي دی ومع الابن للذکر مثل حظ الانثیین وهو یعصبهن باقی دعصبه
ومسئله ددوی درموس څخه جوړیږی :
قوله وللذکر مثل حظ الانثیین لقوله تعالی یوصیکم الله فی اولادکم للذکر مثل حظ
الانثیین فانه لما لم یبین نصیب البنات عند الاجتماع مع الابن دل علی انه یعصبهن وان
المال یقسم بینهن وبین الابن بطریق العصوبة ویجعل المسئلة من الرؤس بعد فرض الابن
مقام البنتین (الحاشیة المرقومة بالرقم ص۶ علی هامش سراجی ص۸)۔
اوس دلته رموس اعتباریه ۱۱ دی ځکه چې هریو ابن پر۲ بنځو حسابیږی لکه په حاشیة
مذکورة کی په صراحت سره ذکردی نومسئله دددوی د۱۱ څخه کیږی بیاتقسیمیږی پردوی
په داسی شان سره چې دوه دوه کیږی هرابن لره یویو کیږی هربنت لره صورت په لاندی
شکل سره دی

مسئله من ۱۱

میــــــــــــــت

| ابن | ابن | ابن | ابن | بنت | بنت | بنت |
|---|---|---|---|---|---|---|
| عبدالرسول | احمدجان | یارمحمد | عبدالواحد | رحم بی بی | گل اناره | بی بی فاطمه |
| ۲ | ۲ | ۲ | ۲ | ۱ | ۱ | ۱ |

والله وسبحانه وتعالی اعلم
مولوی عبدالحکیم عفی الله عنه مولوی احمد نوری عفی عنه مولوی ندامحمد الحقانی
مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء دولت اسلامی افغانستان

## دمیراث دتقسیم یوصورت

پوښتنه: وحضورته دمحترم رئیس صاحب دارالافتاء السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته وبعد هیله کوم چې په لاندې صورت کې موږته خپل حقوق رامعلوم کې




بسم الله الرحمن الرحیم

بعون ملهم الصدق والصواب

په جواب کې به موږداووایو چې اصل مسئله دمیت مذکور اول ۸ څخه کیږی چې په مسئله کښې یوازې ثمن راغلی دی او په مسئله کې چې یوازې ثمن راشي مسئله کیږی د ۸ څخه لکه په سراجی ص۱۸ کی لیکل شوی دی والثمن من ثمانية الخ داتو څخه دزوجې دمیت لپاره یو کیږی ځکه چې یو په اتو کی ثمن دی او زوجه لره هم ثمن کیږی کله چې میت لره اولادوی اودلته هم میت لره اولادشته اوباقی پاته ۷ حصې داتو څخه څلور وبناتو اویوه ابن لره کیږی ځکه چې دوی عصبه دی او قاعده داده چې پاته حصې دذوی الفروض څخه دعصبه وو کیږی اوس دلته د دوی دحصو پردوی باندې کسر راغلی دی ځکه چې حصې ۷ دی اورؤس اعتبار یه ۶ دی نوتصحیح دمسئله کیږی د ۴۸ څخه بناء پرهغه قاعده مشهوره چې په السراجی ص۲۲ کی لیکل شوی ده:

والثالث ان لاتکون بین سهامهم ورء وسهم موافقة فیضرب کل عدد رؤس من انکسرت علیهم السهام فی اصل المسئلة وعولها ان کانت عائلة .....الخ په ۴۸ کی ۶ کیږی دزوجې او ۷ کیږی دهری یوې بنتې او ۱۴ کیږی دابن صورت دمسئلې په لاندې شکل سره دی



مسئله ددوهم میت د۲۴ ځخه کیږی ځکه چې په مسئله کی ثمن دسدس سره راغلی دی اوپه مسئله کی چې ثمن دسدس سره خلط شی مسئله د۲۴ څخه کیږی لکه په سراجی ص۱۹ کی لیکل شوی دی: واذااختلط الثمن بکل الثانی اوببعضه فهومن اربعة وعشرین د ۲۴ څخه زوجی دمیت لره ۳ کیږی ځکه چې داثمن دی ددغه عددمذکور اوزوجه لره هم دلته ثمن دی اوبنت دمیت لره ددغه عدد څخه ۱۲ کیږی ځکه چې دانصف دی ددغه عددڅخه اویو ی لور لره هم نصف کیږی اوام یعنی مورد میت لره ۴ کیږی ددغه عدد څخه ۱۲ کیږی ځکه چې دانصف دی ددغه عدد څخه اویوی لورلره هم نصف کیږی اوام یعنی مورد میت لره ۴ کیږی ددغه عدد څخه ځکه چې دا۴ عدد سدس دی دهغه عدد مذکور څخه اومور لره هم دلته سدس کیږی اوباقی پاته ددغه عددمذکور څخه ۵ دی دغه ۵ داعیانی خورکیږی ځکه چې داعصبه شوي د ي په لوردمړی سره اوعصبه لره باقی مال دی دذوی الفروض څخه صورت دمسئلی په لاندی شکل دی



مسئـــــله من ۲۴

میـــــت

| زوجه | بنت صغیره | ام | اخت اعیانی |
|---|---|---|---|
| ۳ | ۱۲ | ۴ | ۵ |

**دمیت دښځي دری لوڼواودوڵاره ددری زامنو ترمنځ تقسیم دمیراث**

پوښتنه :دی لاندی نی ووته حصص راته تعین کړی محمد ایوب مرحوم ۲۰ سال قبل بقضاء الهی فوت گردید ورثه زوجه بنت بنت بنت دیگراولادندارد عصبه بنات الاخ ۴ نفر عصبه بناء ابن الاخ ۳ نفر

بسم الله الرحمن الرحیم

بعون ملهم الصدق والصواب

په جواب کی به موږداووایو چې دمرحوم محمد ایوب دورثه ووتقسیم په دی ډول ترسره کیږی چې اصلی مسئله ددوی کیږی د۲۴ څخه ځکه چې په مسئله کی ثمن خلط سوي دی دثلثان سره نوکله چی داسی حال وی مسئله دمذکور عدد څخه کیږی لکه په سراجی ص۱۹ کی لیکل شوي د ی؛

واذااختلط الثمن بکل الثانی اوببعضه فهو من اربعة وعشرین دځلرویشت څخه ثمن دری دی ۳ دزوجی کیږی ۱۶ دوه ثلث دی ده دروبناتوکیږی پنځه۵ پاته کیږی دروړ۳ ابناء ابن

الاخ ته ځکه چې دوی عصبه دی اومابقی مال دذوالفروض څخه دعصبه ووکیږی اوهرچې ۴ بنات الاخ دی هغولره هیڅ شئ نه کیږی دمسئلی مذکوره څخه اوداچې دوی په استفتاء کی په عصبه سره لیکل شوي دی داد مستفتی غلطی ده باقی په مسئله کی اول کسراغلی دی پربنات ځکه چې بنات ۳ دی اوحصص ددوی د اصل مسئلی څخه ۱۶ دی دشپاړس په دروکسر دی ددی کسر دلیری کولودپاره قاعده داده چې نسبت وکتل سی په مابین درؤس دمن انکسر علیهم السهام اودسهامو کی نوکه چیری نسبت دتباین وی لکه دلته کی نوټول رؤس به ووهل سی په اصل مسئله کی ماحصل تصحیح ده مسئلی کیږی نواوس به ۳ ووهل سی په ۲۴ کی ماحصل ۷۲ تصحیح دمسئلی کیږی ددغه عدد څخه دتصحیح دمسئلی څخه ۹ زوجی لره دی ۴۸ درولوټولره دی هری یوی لره ۱۶ کیږی ۱۵ درو۳ ابناء ده ابن الاخ لره دی هریوه لره پنځه کیږی صورت دمسئلی په لاندي شکل سره دی ......

محمد ایوب مرحوم — اصل مسئله من ۲۴ — تصحیح من ۷۲

میت

| زوجه | بنت | بنت | بنت | ابن ابن الاخ | ابن ابن الاخ | ابن ابن الاخ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۹ | ۱۶ | ۱۶ | ۱۶ | ۵ | ۵ | ۵ |

مولوی ندامحمد الحقانی مولانامحمود میوندوال مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء دولت اسلامی افغانستان

## داخت عيني اخوات علاتي اواخوة علاتي ترمنځ تقسيم دميراث

پوښتنه: ومقام ته دمحترم رئیس صاحب دارالافتاء ولایت کندهارته السلام علیکم ورحمة وبرکاته محترمه! دمیرزا عبدالله ۲ ښځې پاته دی چې دیوی ښځې څخه یوزوی علی محمد خان اویوه لورپاته دی اودبلی ښځې څخه ۲ زامن او۲لوڼی پاته دی چې دغه علی محمد خان پخپل شخصی پیسویوسرای رانیولی ووکله چې علی محمد مړسویوه لوریې پاته سوه اولوریې هم وفات وکی اوښځې یې بل میړه وکی اوصرف ده یوه سکه خوراو۲ میریزی ورونه او ۲ ناسکه خوندی پاته دی اوس وماته درویه دشریعت معلومات راکړه چې دغه مورثه سرای دعلی محمد خان دچاکیږی چې زه ستادهدایت سره سم هغه کاروکړم

اوزماغاړی خلاصی شی سوال دادی چې آیادغه سرای یوازی دسکه خورکیږی اوکه دسکه اوناسکه وروڼواوخوندو مشترک ګرځی والسلام بااحترام (المستفتی نعمت الله)

بسم الله الرحمن الرحيم

جواب: داستفتاء دارنګه دی په میراث کی دعلی محمد خان چې میراث یې یو سرای پاته دی ټوله ورثه حق لری چې ورثه یې عبارت دی دیوی خورسکنی ښځه او ۲ خوندی ناسکنی ښځه او ۲ وروڼه ناسکه ښځه دی داغه ټوله حق لری اوحق دویش دمیراث دارنګه دی چې یوی خورسکنی دپاره نیمای دسرای کیږی اونورنیمایي یې د ۲ خوندو اود ۲ وروڼو ناسکه وو کیږی لکن دوه وروڼه څلورشمارل کیږی فرضا اواعتبارا نوټوله عدد ۶ کیږی نوسرای دعلی محمد خان ۱۲ حصی کیږی نیمايي یې د ۱۲ چې ۶کیږی دیوی سکنی خور کیږی اوپاته ۶ حصی شریک دی په مابین د ۲ وروڼو اود ۲ خوندوچې ناسکه دی نوتقسیم یې دارنګه کیږی ۲ حصی د یوه وروردی ۲ حصی د بل ورور دی د شپږ حصو ښځه اویوه حصه دیوی خور ناسکنی ده اویوه بله حصه هم دبلی ناسکنی خورده هکذا فی السراجي واما الاخوات لاب وام فاحوال خمس النصف للواحدة ص۱۰ والاخوات لاب کالاخوات لاب وام ولهن احوال سبع .... ولايرثن مع الاختين لاب وام الاان يكون معهن اخ فيعصبهن والباقى بينهم للذكرمثل حظ الانثيين (السراجی ص۱۱) والثالث ان لاتكون بين سهامهم ورؤسهم موافقة فيضرب كل عدد رؤس من انكسرت عليهم السهام فى اصل المسئله




**دمړی ددریولونو یوه لمسي اوبوی لمسي ترمنځ تقسیم دمیراث**

پوښتنه :زمانیکه وفات سوی دی ۲ لونی یوه عیالداری ورثه دی ثانیه عیالدری یی وفات سوی ده په لاندی شکل سره

مافی الید اتمه دلبرو

میـــــــــت

بی بی امینه -بی بی ایمنه -بی بی حجره- ابن الابن محمد ولی -بنت الابن-معصومه

دغه اتمه ددی یعنی دلبرو پر دغه ورثه وو په کوم ډول ویشل کیږی تکلیف به سی بیا هم داسی وایو جزاکم الله خیر الجزاء فی الدارین آمین ثم آمین یارب العالمین

(المستفتی عبد الغنی ولد حاجی صبغت الله)

الجواب بعون الله تعالی

په جواب کی به وو ایو چې مافی الید ددلبرو نامی ښځی چې اتمه دخپل مورث دزوج څخه پرورثه وو ددی چې هغه ورثه ددی په صورت د استفتاء کی مذکور دی په لاندی ډول ویشل کیږی اصل مسئله کیږی د ۳ څخه ځکه چې په مسئله کی یو ازی ثلثان راغلی دی د ۳ لوڼو دمیت دپاره او په مسئله کی چې یو ازی ثلثان راشی مسئله کیږی د ۳ څخه (فاذاجاء فی المسائل من هذه الفروض احاد احاد فمخرج کل فرض سمیه الاالنصف وهو من اثنین (سراجی ص۱۸) چونکه ثلثان د درو ۳ څخه دوه دی ددوو کسر دی پر درو لوڼو دمیت نو تصحیح دمسئلی کیږی دنو ۹ څخه ثلثان د ۹ څخه شپږ دی شپږ تقسیمیږی پر درو لوڼو دوه دوه صحیح رسیږی او داخبره چې د درو لوڼو لپاره ثلثان کیږی لکه راغلی دی په (سراجی ص۸) کی (والثلثان للاثنتین فصاعدة) باقی دنو څخه دری دی دغه دری کیږی دغه یولمسی او یوی لمسی دپاره چې په صورت دمسئلی ذکر سوي دی په دې شان سره چې دوه کیږی دلمسی او یو کیږی دلمسی ځکه چې دوی هم پر عصبه وو چې تقسیم کیږی نو په هغه مشهوره او معروفه قاعده دمیراث به کیږی چې هغه داده (للذکر مثل حظ الانثیین) نارینه لره دوه چنده دحصی دښځی دی صورت دمسئلی دادی :

اصل مسئله من ۳ تصحیح من ۹ مافی الید آتمه دلبرو

میـــــــــت

| بنت | بنت | بنت | ابن الابن محمد ولی | بنت الابن |
|---|---|---|---|---|
| بی بی امینه | بی بی ایمینه | بی بی حجرة | | معصومه |
| ۲ | ۲ | ۲ | ۲ | ۱ |

مولوی احمد نوری مفتی عنه مولوی نذیر احمد الحقانی مولوی نور محمد ثاقب رئیس دار الافتاء دولت اسلامی افغانستان

## آیا مفقودپه میراث کي ونډه لری کنه؟

پوښتنه :یوسړی چې دپلارپه ژوندکی ورک سی اوبیا پلاروفات سی آیا دغه ورک سړی دپلارپه میراث کی حق لری کنه اوکه چیری وروسته بیا پیداسی اوتقسیم شوی وی نوڅه باید وسی ؟

(المستفتی ملاعبد الباسط)

بعون الله العلی الاعلی

په جواب کښې به داسې ووایو یوسړی چې دپلارپه ژوندکی ورک شی اوبیاپلاروفات شی دغه ورک سړی دپلارپه میراث کی حق لری کله که یوازی ووبل وارث نه ووتول مال به ددغه ورک سړی دپاره یوعادل سړی ته وسپارل شی اوکه ورسره بل وارث هم موجود وو نودده هغه حصه دترکی څخه به یوعادل ته وسپارل شی: ( فیوقف نصیبه ) ای نصیب المفقود (منه) ای من مال من مات قبل الحکم بموته فی ید عدل لامکان حیاته (کلا ) لوانفردوارثا (اوبعضا ) لومعه وارث آخر فلومات رجل وترک ابنا مفقود فقط وقف جمیع الترکة وان معه بنتین اعطی نصف الترکة لهما ووقف النصف الاخر الخ( مجمع الانهر ج۱ ص ۷۱۳ و الفتاوی تنقیح الحامدیة ج۱ ص۱۰۶) -اوپه ردالمحتار (ج۳ ص۳۶۲ )کښې لیکل شوي دی: هذالیس خاصا بالوصیة بل هوحکمه العام فی جمیع احکامه من قسمة میراثه وبینونة زوجة وغیر ذلک الخ- اوکه چیری تقسیم شوی وی بغیر دتوقف اوجلاوالی دحصې دورک شوی زوی اوبیا پیداشی نونقض اوماتوالی دتقسیم به کیږی دده دحصی لپاره مګرکه دی په یوشی راضی شئ نوبیاحاجت نشته نقض لره : بخلاف مااذاظهر وارث آخر اوموصی له بالثلث او الربع فقال الورثة نقض حقه ولاتفسخ القسمة لتعلق حقها بعین الترکة فلاینتقل الی مال اخر الابرضاهما کمافی النهایة الخ (ردالمحتار ج۵ ص۱۸۷ والفقه الاسلامی ج۵ ص۶۸۸ والفتاوی الکاملیة ص۲۳۱ )

مولوی احمد نوری عفی عنه مولوی نذاحمد الحقانی مولوی نورمحمد ثاقب رئیس دارالافتاء دولت اسلامی افغانستان

## دمفقودپه مال به څه کیږی؟

پوښتنه : دمفقود په مالوکښې به څرنګه عمل کیږی ؟ بینواتوجروا

بسم الله الرحمن الرحیم

مفقود کچیری په وقت دوجود کي خپل پرمالوباندی حافظ اووکیل درولی وواوخپل مالونه یی ورسپارلی وه نوهروخت چې ورک سواومفقود سو هغه حافظ یی حافظ دی که خائن نه وو اوکه چیري خائن وونوبیاقاضی لره داشته چې یوثقه امین ورته معین کړی او کچیري مفقود په وخت کښې دوجود پرخپل مالوباندی حافظ نه وودرولی نوبیابه قاضی یوحافظ امین ورته ودروی: ویقیم القاضی من یحفظ ماله ویستوفی غلاته فیما لاوکیل له فیه لان القاضی نصب لمصالح المسلمین نظر المن عجز عن التصرف بنفسه کما قلنا فی الصبی والمجنون والمفقود عاجز بنفسه فیتصرف له القاضی والنظرله فیما ذکرنا...آه(الاختیار لتعلیل المختار ج۳ ص۳۷ )ونقل ابن المؤید عن جامع الفصولین لواخذ القاضی ودیعة المفقودممن هی بیده ووضعها عند ثقة لابأس به آه (ردالمحتار ج۳ ص۳۶۰)وهذابحث ذکره فی البحر حاصله انه انما ینصب اذالم یکن له وکیل فی الحفظ اقامة الغائب قبل فقده لانه لاینعزل بفقده آه (ردالمحتار ج۳ ص۳۶۰)

مولوی احمد نوری عفی عنه مولوی نذاحمد الحقانی

سبحانک لاعلم لنـا الا ماعلمتنـا انک انت العلیم الحکیم.



نورالقرآن علمي خپرندویه ټوله کاسی روډ کوټه